# باطله فرقې

# او صراط مستقیم

پښتو ترجمه د

## ادیانِ باطلہ اور صراطِ مستقیم


پسند فرمودہ

شیخ الاسلام مفتی محمد تقی عثمانی صاحب

رئیس جامعہ دارالعلوم کراچی

زیر نگرانی

شیخ الحدیث حضرت اقدس مفتی محمد نعیم صاحب

مدیر الجامعة البنوریة العالمیة





مکتبہ عزیزیہ

# باطله فرقې

# او صراط مستقیم

پښتو ترجمه د

## ادیانِ باطلہ اور صراطِ مستقیم

پسند فرمودہ


شیخ الاسلام مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظلہم

نائب رئیس جامعہ دار العلوم کراچی


زیر نگرانی


شیخ الحدیث حضرت اقدس مفتی محمد نعیم صاحب مدظلہ

مہتمم الجامعۃ البنوریۃ العالمیۃ



دینی کتب خانه

نام کتاب ○ **باطله فرقې او صراط مستقیم**

پسند کرموده ○ شیخ الاسلام مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظلہم

زیر نگرانی ○ شیخ الحدیث حضرت اقدس مفتی محمد نعیم صاحب مدظلہ

دینی کتب خانه

# اجمالی فهرست

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



........

# د مضامينو فهرست

| صفحه | مضمون | شمېره |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شمیره |
|---|---|---|

| شمېره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | [قادياني فرقه] | ۱۱۲ |
| | د قادياني فرقې تاريخ | ۱۱۲ |
| | قادياني فرقه كله وجود ته راغله | ۱۱۷ |
| | د قادياني فرقه جوړونكي غلام احمد قادياني حالات | ۱۱۷ |
| | دبحث او مناظرې شوق | ۱۱۸ |
| | دده بې حياء خبري | ۱۱۸ |
| | د هغوى د بې حياء خبرو يو مثال | ۱۱۸ |
| | د قادياني فرقې نظريات او عقائد | ۱۱۹ |
| | د قادياني فرقې نظريات او عقائد . د قرآن او حديث څخه د هغې جوابونه | ۱۲۱ |
| | لومړى عقيده: د مرزا غلام احمد قادياني دعوه ده. چې آخر الزمان نبي زه يم | ۱۲۱ |
| | د رسول الله ﷺ په ختم نبوت قرآني شهادت | ۱۲۱ |
| | د رسول الله ﷺ په ختم نبوت د حديثونو ګواهي | ۱۲۲ |
| | په عقيده ختم نبوت باندې كتابونه | ۱۲۳ |
| | دويمه عقيده: د رسول الله ﷺ نه وروسته وحى نده نازله شوې | ۱۲۴ |
| | د رسول الله ﷺ نه وروسته به وحى نه نازليږي د احاديثو څخه شهادت | ۱۲۵ |
| | دريمه . څلورمه .او پنځمه عقيده | ۱۲۷ |
| | شپږمه عقيده: د رسول الله ﷺ په افضليت باندې د احاديثو شاهدي | ۱۲۸ |
| | اوومه عقيده | ۱۲۸ |
| | اتمه عقيده: د رسول الله ﷺ تعظيم د احاديثو څخه ثبوت | ۱۲۹ |
| | د نبي د تعظيم ثبوت د عقائدو د كتابونو څخه | ۱۳۰ |
| | د صحابه كرامو ﷺ د تعظيم حكم د قرآن كريم څخه | ۱۳۰ |
| | د صحابه كرامو ﷺ د تعظيم حكم د احاديثو څخه | ۱۳۱ |
| | نهمه او لسمه عقيده | ۱۳۳ |
| | يوولسمه عقيده: په قرآن كريم كې د جهاد حكم | ۱۳۴ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب دامت برکاتهم ته خوښ کتاب

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى، وَسَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى

اَمَّابَعْدُ! د فتنو پدې وروستي دور کې ډول ډول عجيبه نظريې او عقيدې خپرې شوي. پداسي حالاتو کې د ﴿مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِيْ﴾ [1] چې کوم تفسير د امت په سواد اعظم سره شوی. هغه د اهل سنت والجماعت د عقايدو په نوم مشهور دی. د مولانا مفتي محمد نعيم صاحب مهتمم و شيخ الحديث جامعه بنوريه کراچی د نگرانی لاندې ترتيب شوي کتاب کې د اهل سنت عقيدې ښه په وضاحت سره د قرآن. سنت او سلف صالحينو د اقوالو په رڼا کې ليکل شوي او د هغه نظريو ترديد يې کړی. چې د اهل سنت والجماعت د سواد اعظم (لويې ډلې) سره سمون نه خوري. په هغې کې څه داسې نظريات دي چې د کفر حد ته رسيدلي دي. څه داسې نظريات هم دي. په کومو چې د کفر اطلاق نه کيږی. خو هغه گمراهي ده. څه داسې هم دي چې د ډېر سختوالي له امله حد د غُلُو ته رسيدلي چې گمراهي ترې جوړيږي. ياد شوي ليکوال هغه ټولې نظريې په تفصيل او حوالو سره بيان کړي او د هغو په مقابل کې يې د اهل سنت صحيح عقيدې. فکرونه او حکمونه په ښکاره او مضبوطو دلائلو سره ياد کړي دي. په يکې هره مسئله داسې ده. چې په هغې باندې مفصل کتابونه ليکل کيدی شي: خو مولانا موصوف دا خپاره بحثونه د ملغلرو په څېر راټولي کړي او دا کتاب يې په کوزه کې د سيند يو ځای کولو مصداق گرځولی

ماته د خپلو سفرونو او مصروفياتو په وجه د کتاب نه د مکمل استفادې وخت پيدا نه شو: خو البته د يوې معتدبه برخې د کتلو توفيق راته ملاو شو. هغه ما د لوستونکو لپاره ډير فايده مند موندلی. دعا کوم چې الله پاك دا کتاب د ټولو مؤمنانو لپاره گټور وگرځوي اود احقاق حق اوابطال باطل (دحق د ښکاره کولو او

---

[1] الحاكم جلد اول صفحه ١٢٩، والآجري في الشريعة ٢١، والترمذي : ٢٦٤٠

باطل د ردولو لپاره بهترينه، ذريعه جوړه کړي. لوی څښتن (ﷻ) دي ګران ليکوال ته د نيکو بدله ورکړي آمين

بنده (مولانامفتي) محمد تقي عثماني عفى عنه (دامت بركاتهم العاليه) ۱۸ ربيع الاول ۱۴۳۰هـ

## مقدمه

## (د اديان باطله او صراط مستقيم)

د الله (ﷻ) په نزد صرف يو دين د نجات ذريعه ده. چې د هغه نوم اسلام دی:
﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا ﴾ [۱]، امام طحاوي رحمه الله فرمايي: ﴿ دين الله في السماء والارض واحدٌ وهو دينُ الاسلامِ كما قال الله تعالى ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ [۲،۳]
علامه ابن حزم رحمه الله فرمايي: ﴿الاسلامُ دينٌ واحدٌ وكلُّ دينٍ سِواهُ باطِل﴾ [۴]
دا ممکنه نه ده چې د دين اسلام نه سيوا دي نور دينونه هم صحيح او د نجات ذريعه وګڼل شي. دين، مذهب او نظريات د انسان د ټولو نه لويه سرمايه ده. د همدې له خاطره انسان د خپل سر او مال قربانولو لپاره تياريږي. باطل پرست هم خپل عقايد د نجات ذريعه ګڼي، پداسې حال کې چې هادي عالم ﷺ پنځلس سوه کاله وړاندې اعلان کړی وو: ﴿ مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِيْ ﴾ [۵]، چې د عقيدې په لحاظ صرف هم هغه خلک نجات موندونکي دي چې زما او زما د صحابه کرامو رضي الله عنهم په طريقه روان وي. هم دغه صراط مستقيم دی.
د عقيدو معامله ډيره نازکه ده. د قرآن او حديث څخه دا خبره ثابته ده چې که څوك هر څومره ګناهګار وي: خو که د هغه عقيده او نظريه صحيح وي: نو الله پاك به هغه د خپل وسيع رحمت په ذريعه هغه ته د سزا ورکولو نه وروسته سمدستي جنت ته

---

[۱]) سورة آل عمران آية : ۸۵
[۲]) سورة آل عمران آية : ۱۹
[۳]) عقيدة الطحاوية :۱٦
[۴]) المحلى : ۱۰٤
[۵]) الحاكم جلد ۱ صفحه ۱۲۹، والآجرى فى الشريعة ص ۲۱، والترمذى: ۲٦٤۰

داخلوي، که د هغه عقيده صحيح نه وي؛ نو بيا د هغه لپاره د بخښنې هيڅ لاره نشته.
که د انسان عقيده او مذهب د اسلامي شريعت څخه عليحده وي او بغير د تحقيق نه هغه خپل ژوند تيروي؛ نو ياد ساتی چې د قيامت په ورځ به هغه ته هيڅ برخه نه رسيږي، سېوا د ناکامی نه او همدې خلکو ته قرآن کريم ﴿ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ﴾[1] (سخت زيار ويستونکي او ستومانه به وي) ويلي، چې د هغوی په دنيا کې د خلاصي لپاره شوي تول زيارونه او مشقتونه به په آخرت کې ضايع نه شمارل کيږي
الله پاك انسان ته عقل سليم او فطرت سليمه ورکړی دی، چې ددې په ذريعه هغه د صحيح مذهب تحقيق وکړي، هغه خپل کړي، د همداسې خلکو لپاره دا کتاب "اديان باطله او صراط مستقيم" ليکل شوی، چې د حق د واضحه کېدو نه وروسته هغه سمدستي قبلوي، څکه چې په قرآنکريم کې راغي: ﴿ الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَه ﴾[2]
**ترجمه** : هغه خلک چې خبره اوري او بيا د هغې په غوره برخه عمل کوي.
کتاب د تعصب، ضد، افراط، تفريط نه لرې د اعتدال په طريقه ليکل شوی، زمونږ مقصود د يو مذهب والا زړه خفه کول نه دي، بلکې هغوی سره مو همدردي او خير خواهي ده چې هر يو د فکر کولو وروسته خپله د حق فيصله وکړي، په همدې وجه د کتاب ډول بيخي ساده دی، چې عام سړی هم ترې فايده اخستی شي، هره خبره حوالې سره ليکل شوې ده، چې د اهل علمو لپاره په تحقيق کې بنه مددګار او مرستندويه ثابت شي. د مسلك او مذهب په اړه شپږ اجمالي خبرې ليکل شوي. ① دټولونه لومړی دمطلوبه مذهب په وجود کې د راتلو تاريخ (چې فلانی مذهب کله وجود ته راغلی)
② د هغه مذهب د بنسټګر (باني) نوم او د ژوند حالات.
③ د هغه مذهب بنيادي عقيدې او نظريې.
④ د هغه عقيدو او نظريو د قرآن، حديث او عقايدو د کتابونو نه جواب
⑤ د هغه مذهب په اړه د مفتيانو رايې.
⑥ د زيات تحقيق کونکو لپاره د هغه فرقې په اړه د کتابونو حوالې

---

[1]) سورة الغاشية : ۳
[2]) سورة الزمر : ۱۸

په آخر کې د الله پاك نه غواړم چې دې کتاب ته په خپل دربار کې د قبولیت شرف ورکړي تر څو د ټولې دنیا لپاره د هدایت لویه سرچینه وګرځي .آمین.

ربنا ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم وتب علينا انك انت التواب الرحيم وصلى الله وسلم على رحمة للعالمين سيدنا ونبينا محمد واله وصحبه اجمعين. وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين.

★★★★★★★★★

# [ناجیه فرقه]

## اهل سنت والجماعت

د رسول الله ﷺ وینا ده: ﴿ وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَىٰ ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً ﴾ [1]

**ترجمه** : زما امت به په درې اویا ډلو وېشل کیږي.

یو بل ځای په روایت کې راځي: ﴿ كُلُّهُمْ فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَاحِدَةً ﴾ [2]

**ترجمه** : هغه ټولې ډلې به جهنم ته ځي د یوې فرقې نه سېوا.

په یو بل روایت کې ددې فرقې ناجیې په اړه رسول الله ﷺ فرمایي: ﴿ مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِي ﴾ [3]

**ترجمه** : چې په کوم زه او زما صحابه کرام ﷺ دي.

دې فرقه ناجیه ته اهل سنت والجماعت ویل کیږي.

**اهل** : دلته د اهل نه مراد ، اتباع. مقلدین اشخاص دي.

**سنت** : په معنی د لارې سره راځي او سنت طرز عمل ته هم وایي. لکه په قرآن کریم کې چې دي: ﴿ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ﴾ [4]

**ترجمه**: او ته به د الله پاك په سنت کې بدلون بیانه مومې

---

[1] الترمذی: ۲٦٤۰، وابوداؤد: ٤۵۹٦، وابن ماجة: ۳۹۹۱ .

[2] الترمذی: ۲٦٤۰، والحاکم : جلد ۱ صفحه ۱۲۸.

[3] الترمذی: ۲٦٤۰، والحاکم : جلد ۱ صفحه ۱۲۹ .

[4] سورة فاطر اية : ٤۳ .

په شرعي اصطلاح کې لفظ د سنت. د رسول الله ﷺ په ژوند کې دده وینا او عملي طریقو ته وایي.

**جماعت**: دا په معنی د ډلې سره راځي. دلته ترې د صحابه کرامو رضي الله عنهم جماعت مراد دی. د اهل سنت والجماعت مطلب او مفهوم په اړه علامه سید سلیمان ندوي رحمه الله فرمایي ددې ډلې اطلاق په هر هغه چا کیږي چې د هغوی د عقیدو. عملونو او مسئلو اصلي محور د رسول الله ﷺ صحیح سنت او د صحابه کرامو رضي الله عنهم اثار مبارك وي.

یا داسې ووایې: چا چې په خپل ژوند کې د خپلې عقیدې. عبادات او اخلاقو په اړه هغه لاره خوښه کړه په کومه چې رسول الله ﷺ ټول عمر تلل کړي وو. د رسول الله ﷺ نه وروسته د هغوی صحابه کرام رضي الله عنهم پدغه لاره د تلو نه وروسته خپل منزل مقصود ته رسیدلي.[1]

﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ﴾[2] **ترجمه**: د قیامت په ورځ به ځیني مخونه ښایسته وي.

ددې په تفسیر کې د سیدنا عبدالله بن عمر او سیدنا ابو سعید خدري رضي الله عنهم په څېر صحابه کرام فرمایي چې ددېنه مراد اهل سنت والجماعت دي.[3] سیدنا عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما هم دغه شان فرمایي.[4]

بیا اهل السنة والجماعت اول رسول الله ﷺ خپل مقتدی مني. ددېنه وروسته رسول الله ﷺ خپله ارشاد فرمایي چې ﴿ماانا علیه واصحابي﴾[5]: نو صحابه کرام رضي الله عنهم هم معیار حق مني. خاص کر خلفاء راشدین رضي الله عنهم. د چا په اړه چې خپله د رسول الله ﷺ وینا شتون لري ﴿عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ﴾[6].

**ترجمه**: زما سنت لازم ونیسی او د خلفاء راشدینو سنت کوم چې هدایت یافته دي او هغه د (جامې) په غاښونو باندې ښه کلک ونیسی

---

[1] اهل سنت والجماعت ص ۱۰ .
[2] سورة آل عمران اية : ۱۰٦ .
[3] در المنثور : جلد ۲ صفحه ٦۳ .
[4] تفسیر ابن کثیر : جلد ۲ صفحه ۸۲ .
[5] الترمذی : ۲٦٤۰، والحاکم : جلد ۱ صفحه ۱۲۹ .
[6] ابوداؤد: ج ۲ ص ۲۷۹، ترمذی ۳۸۳، ابن ماجه : ص ٥، دارمی : جلد ٦ ص ۲، مسند احمد ج ٤ ص ۲۷ .

بیا اهل سنت والجماعت ائمه اربعه یعني امام ابو حنیفه. امام شافعي. امام مالك او امام احمد رحمهم الله تول حق تسلیمول او د دوی څخه د یو امام په مسئلو کې اتباع ضروري ګڼل. همدغه شان د اهل سنت والجماعت په نزد د شرعي دلائل څلور دي

① قرآن. ② حدیث. ③ اجماع امت (چې په هغې باندې اتفاق شوی وي) او ④ قیاس (چې د ځینو فقهي مسئلو حل موجودنه وي؛ نود کوموچې حل شته دهغې علت په کتوسره په نوروهم هغه حکم لګوي)

ابن تیمیه رحمه الله فرمایي :( فإن اهل السنة تتضمن النص والجماعة تتضمن الإجماع فأهل السنة والجماعة هم المتبعون للنص والإجماع ) [1].

ترجمه : یعني (په اهل السنة کې) د سنت نه مراد نص دی. یعني کتاب او سنت دی او د جماعت څخه مراد اجماع ده؛ نو اهل السنة والجماعت د نص او اجماع اتباع کوي د څلورو امامانو اتفاق د صحابه کرامو رضي الله عنهم په اتفاق مبني دی. د څلورو امامانو اختلاف د صحابه کرامو رضي الله عنهم په اختلاف بناء دی. په کومو مسئلو کې چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او څلورو امامانو اجماع وي. د هغې سره اختلاف کول هم د اجماع نه وتل دي. په کومو مسئلو کې چې د څلورو امامانو اختلاف وي په هغې کې کوم نوی اختلاف پیدا کول هم د اجماع خلاف دي او څوك چې د دوی څخه وتلي وي هغه د اهل السنة والجماعة څخه نه دي [2]

دېته په ځینو روایاتو کې سواد اعظم ویل شوی. د همدې سواد اعظم د اتباع کولو حکم شوی. لکه څرنګه چې د سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د روایت نه معلومیږي

۱. ( عَنِ ابْنِ عُمَرَ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَجْمَعُ اللهُ هَذِهِ الأُمَّةَ عَلَى الضَّلَالَةِ أَبَدًا وَقَالَ : يَدُ اللهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ فَاتَّبِعُوا السَّوَادَ الأَعْظَمَ ، فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ ) [3].

ترجمه : د سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل الله پاك

[1]) منهاج السنة : جلد ۳ صفحه ۲۷۲ طبعة مصر .

[2]) عقد الجید

[3]) المستدرك للحاكم : جلد ۱ ص ۳۹۵ .

به دا امت کله هم په ګمراهۍ نه راجمع کوي. ويې فرمايل چې د الله پاك مرسته او کومک د جماعت سره وي، لهذا تاسو د امت د سواد اعظم (يعنې لوی جماعت) اتباع کوی او څوك چې د هغې نه بيليږي؛ نو هغه به بيل وي او سزا به يې دا وي چې په جهنم کې به اچول کيږي

۲ ﴿ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ: قَالَ أَبُو سُفْيَانَ سُلَيْمَانُ بْنُ سُفْيَانَ الْمَدَنِيُّ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا يَجْمَعُ اللَّهُ أُمَّتِي عَلَى ضَلَالَةٍ أَبَدًا، وَيَدُ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ هَكَذَا، فَاتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ، فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ ﴾ [۱]

**ترجمه** : ما ته معتمر بن سليمان حديث بيان کړی، وايي: چې ابو سفيان سليمان بن سفيان المدني د عمرو ابن دينار څخه هغه د سيدنا عبدالله بن عمر ﷠ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايل: الله پاك به دا امت کله هم په ګمراهۍ نه راجمع کوي. د الله پاك مرسته او کومک د جماعت سره وي، لهذا تاسو د امت د سواد اعظم (يعنې لويې ډلې) اتباع کوی او څوك چې د هغې څخه بيليږي؛ نو هغه به په جهنم کې هم بيل وي. همدغه شان حاکم يو دريم روايت هم نقل کړی دی :

۳ ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَجْمَعُ اللَّهُ هَذِهِ الْأُمَّةَ - أَوْ قَالَ أُمَّتِي - عَلَى الضَّلَالَةِ أَبَدًا، وَاتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ ﴾ [۲]

**ترجمه** : د سيدنا عبدالله بن عمر ﷠ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل الله پاك به دا امت او يا يې وفرمايل زما امت، به کله هم په ګمراهۍ نه راجمع کوي. لهذا تاسو د سواد اعظم (يعنې لوی جماعت) اتباع کوی بېشکه څوك چې د هغې نه بيليږي: نو هغه به په جهنم کې هم بيل وي

﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: إِنَّ أُمَّتِي لَا تَجْتَمِعُ عَلَى ضَلَالَةٍ، فَإِذَا رَأَيْتُمُ اخْتِلَافًا فَعَلَيْكُمْ بِالسَّوَادِ الْأَعْظَمِ ﴾ [۳]

---

[۱] المستدرك للحاكم : برقم ۴۰۰ .
[۲] المستدرك للحاكم برقم : ۳۹۹ .
[۳] ابن ماجة : ص ۲۸۳ .

**ترجمه** : د سیدنا انس ﷺ نه روایت دی وایي: ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل. او ویل يې: زما امت به په گمراهی نه راجمع کیږي، کله چې تاسو اختلاف ووینی: نو خپل ځان د سواد اعظم سره لازم کړی

## د فرقه ناجیه په باره کې د شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله وینا

﴿ أقول الفرقة الناجية هم الآخذون في العقيدة والعمل جميعا بما ظهر من الكتاب والسنة، وجرى عليه جمهور الصحابة والتابعين...الخ ﴾[1]

**ترجمه** : زه وایم چې نجات حاصلونکې فرقه هم هغه ده کومه چې په عقیده او عمل دواړو کې په هغه څه عمل کوي چې د کتاب او سنت څخه معلومیږي. د جمهورو صحابه کرامو او تابعینو رضی الله عنهم په هغې باندې عمل وي.

## د فرقه غیر ناجیه په باره کې د شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمان

﴿ وغير الناجية كل فرقة انحلت عقيدة خلاف عقيدة السلف أو عملا دون أعمالهم...الخ ﴾[2]

**ترجمه** : او غیر ناجي ډله هغه ده چا چې د سلف یعني صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو د عمل او عقیدې په خلاف یوه عقیده او عمل خپل کړی وي.

هم دغه شان په شرح عقائد کې لیکي:

﴿ قال في شرح العقائد النسفية فبهت الجبائي وترك الاشعري مذهبه فاشتغل هو ومن تبعه بابطال رأي المعتزلة واثبات ما ورد به السنة ومضى عليه الجماعة ﴾[3]

**ترجمه** : په شرح عقائد کې وایي: چې جبائی بې جوابه شو او اشعري د هغوی مذهب پرېښود. بیا هغه او د هغوی متبعین د معتزله د رایه په ردولو کې او د هغه عقیدې په ثابتولو کې مشغول شول کومه چې په سنت سره ثابته ده او په کومه لار چې صحابه کرام رضی الله عنهم روان وو.

---

[1]) حجة الله البالغة : جلد ۱ صفحه ۱۷۰، طبعة میر محمد کارخانه بکراتشي

[2]) حواله سابقه

[3]) حاشية الخيالي على شرح العقائد ص : ۱۹

خلاصه دا چې فرقه ناجيه هغه ده کومه چې په عقائدو او احکامو کې د صحابه کرامو ﷺ په مسلك وي. دقرآن کريم سره سنت نبويه هم صحيح مني او په هغې باندې عمل کوي.

مولانا مفتي بشير احمد صاحب شيخ الحديث جامعه قاسميه مراد آباد (هند) فرمايي: چې ددې ټولو خبرو خلاصه دا چې سړی د سواد اعظم جمهور امت سره وي. دا خبره د ائمه اربعه وو په متبعينو کې موندل کيږي چې په هر دور کې د لويو لويو علماوو او شيخانو مقلدين وو، که ددېنه وروسته غور وکړی شي: نو د سواد اعظم اطلاق د ديوبند د فکر په خلکو کيږي. چې د علماؤ او مشائخو لوی تعداد پدې مکتب فکر کې شامل دي، دې ټولو ته به اهل السنة والجماعة ويل کيږي.[1]

## د اهل السنة والجماعة عقيدې او نظريې

پدې سلسله کې علامه سيد سليمان ندوي رحمه الله فرمايي: چې د هغوی د عقيدو بنياد په دوه خبرو کې جمع دی!

۱: د اسلام ستر داعي رسول الله ﷺ چې د کومو عقيدو او عملونو په اړه امت ته دعوت ورکړی، په هم هغې باندې کلك ولاړ وي.

۲: د الله پاك د ذات او صفاتو په اړه چې قرآن څه بيان کړي وي. يا رسول الله ﷺ چې پدې اړه څه فرمايلي وي. يا د کومې مسئلې چې قرآن کريم تشريح کړې وي. صرف په هغې مسئلې ايمان راوړل واجب دي صرف په عقل. قياس او استنباط سره د نصوصو د رڼا نه بغير د هغې تشريح او تفسير صحيح نه دی. نه په هغې باندې ايمان راوړل د اسلام د صحت لپاره ضروري دي بلکې ممکنه ده چې هغه د گمراهی او ضلالت سبب وي.[2]

هم دغه شان فرمايي چې د اهل سنت د عقيدې د ټولو نه مختصر مضمون خو دا دی

(اشهدان لا اله الا الله واشهدان محمدا رسول الله)

---

[1]) غير مقلدين کے اعتراضات کے ٥٦ جوابات : جلد ١ صفحه ٢٥٣

[2]) اهل السنة والجماعة ص ٤٧، ٤٨

**ترجمه** : زه (په ژبې او زړه سره دا شاهدي ادا کوم چې، د الله پاك نه سېوا بل معبود نشته او محمد ﷺ د الله پاك رسول دی

ددې اولې جملې ته شهادت د توحید او دویمې جملې ته شهادت د رسالت وايي. ظاهره خبره ده کله چې بنده د الله پاك نه سېوا بل معبود نه مني او محمد ﷺ د زړه څخه د الله پاك رسول مني؛ نو ددې معنی دا ده چې د الله پاك له طرفه چې په محمد ﷺ باندې څومره حکمونه نازل شوي. هغه ټول مني: خو ددې اجمال نه وروسته که نور تفصیل څوك غواړي؛ نو هغه دا دی

﴿ آمنت بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الاخر والقدر خیره وشره من الله تعالی والبعث بعد الموت ﴾ **ترجمه** : ما ایمان راوړی په الله پاك او د هغه په فرشتو. د هغه په کتابونو او د هغه په رسولانو او د آخرت په ورځ، پدې خبره چې ښه او بد تقدیر هر څه د الله پاك له طرفه دي او د مرګ نه وروسته په دوباره ژوندي کیدو باندې.

بنده چې کله په رسولانو او کتابونو ایمان راوړ؛ نو ټولې صحیح عقیدې او د الله پاك ټول حکمونه پدیکې داخل شو؛ خو چونکې دا هم مجمل بیان دی. پدې وجه محققین عالمان په دې امورو کې چې هغې ته خاص خیال کول پکار دي. د کتاب او سنت نه یو ځای ته راجمع کړي دي. چې هر مسلمان په هغې باندې ځان ښه پوه کړي او هغه ومني. چې د هغې مطابق د هغه د دین ټول کارونه برابر شي

## اول ایمان بالله

د ټولو نه لومړی مهمه بنیادي عقیده دا ده چې مونږ په الله پاك ایمان راوړو. په الله ﷻ د ایمان راوړلو معنی دا ده: چې مونږ الله پاك د هغه د صفاتو سره ومنو کوم چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ بیان کړي دي. یعنې مونږ دا په زړه سره ومنو او په ژبه اقرار وکړو چې الله پاك یو دی. هغه همېشه دی او همېشه به وي. هغه د چا هم محتاج نه دی او ټول شیان هغه ته محتاج دي. د هغه ټول صفتونه ښایسته دي او هغه د هرې بدۍ څخه پاك دی. هغه په هر شئ قادر دی. هغه اوري او ګوري. هغه د پټ او ښکاره هر شي علم لري، په هغه باندې مرګ نه راځي، په هغه باندې خوب نه راځي، دنیا او د

دنیا ټول شیان مخکې نه وو وروسته الله پاك په خپل مشیت او ارادې سره هغه پیدا کړل. کله چې وغواړي هغه به فنا کړي. هغه کلام کوي. د هغه څوك مددګار او ملګری نشته، د هغه په شان څوك هم نشته، نه د هغه مور پلار شته. او نه د هغه اولاد شته. د هغه د حکم نه یو شی هم بهر نشته، هغه په خپلو بندګانو ډېر مهربان دی. هم هغه پیدا کونکی دی او هم هغه مرګ ورکونکی دی. هم هغه ټول بندګان د افتونو څخه ساتي او هم هغه عزت ورکوونکی. د عظمت او لویي څښتن دی. د ګناهونو بخښونکی دی، زبردست دی ډیر ورکړه کونکی دی. روزي رسونکی دی. د چا روزي چې وغواړي تنګوي یې. د چا چې وغواړي فراخوي. چاته چې وغواړي عزت ورکوي او څوك چې وغواړي هغه ذلیله کوي، څوك چې وغواړي ښکته کوي یې او څوك چې وغواړي پورته کوي یې.

**صفات** : په خالق کې د مخلوق یو صفت هم نه موندل کیږي، دغه شان د الله پاك یو صفت هم په مخلوق کې نه موندل کیږي، په قرآن او حدیث کې بعضې ځایونو کې داسې خبر ورکول شوی، آیا د داسې خبرو وضاحت مطلوب دی؟ نو یا خو د هغې معنی الله پاك ته وسپاری چې هم هغه ددې په حقیقت پوهیږي او مونږ بغیر د لټون او تشریح نه په هغې ایمان راوړو او یقین وکړو، هم دا غوره ده، یا د هغې کومه مناسبه معنی وکړی شي. چې په هغې سره هغه په فهم کې راشي. لکه چې متاخرینو عالمانو اختیار کړې دی.

## ایمان بالقدر:

په عالم کې چې څه خیر او شر راځي، هغه هر څه الله پاك ته د کیدو نه مخکې معلوم وي او د خپل علم سره سم یې پیدا کوي. تقدیر د همدې نوم دی

**جبر او قدر** : بندګانو ته الله پاك فهم او اراده ورکړې ده. چې په هغې سره هغه د ګناه او ثواب کار په خپل اختیار کوي: خو د بندګانو د یو کار د پیدا کولو قدرت نشته، د ګناه په کار باندې الله پاك ناراض او د ثواب په کار هغه خوشحالیږي.

**تکلیف د مَا لاَ یُطاقُ** : الله پاك خپلو بندګانو ته د يو داسې كار حكم نه كوي چې بندګان يې نشي كولی

**عدم وجوب اصلح** : يو شی هم د الله پاك په ذمه ضروري نه دی. هغه چې څه مهرباني وكړي. دا د الله تعالی فضل وي.

## ایمان بالرسالت

الله پاك د خپلو بندګانو د پوهې او هغوی ته د سمې لارې د ښودنې لپاره ډېر انبیاء علیهم السلام رالیږلي، هغه پیغمبران الله پاك په خپلې ارادې او خوښې غوره كړي. هغوی د ټولو ګناهونو څخه پاك او د هغه پیغمبرانو پوره شمیر صرف الله پاك ته معلوم دی.

## معجزات

د هغوی د حقانیت ښكاره كولو لپاره الله پاك د هغوی په لاسونو باندې داسې ګران كارونه كړي، چې په بل چا كې يې د كړنې وس نشته، داسې خبرو ته معجزه ويل كیږي، الله پاك د خپلو فرشتو په ذریعه په خپلو هدایتونو، تعلیماتو او حكمونو باندې خبر كړل او هغه پیغمبرانو اوریدلو سره د خپلې زمانې خلكو ته ورسول. دېته وحی وايي.

پدې پیغمبرانو كې د ټولو نه لومړی سیدنا آدم علیه السلام وو او د ټولو نه آخر سیدنا محمد رسول الله ﷺ دی او باقي په منځ كې، د محمد رسول الله ﷺ نه وروسته به بل چاته نبوت نه ملاویږي. څوك چې د نبوت دعوه وكړي. هغه دروغجن دی. د نبوت او رسالت منصب د محمد رسول الله ﷺ په مباركه هستی ختم شوی، تر قیامته پورې چې څومره انسانان او پیریان دي، د ټولو رسول الله ﷺ پیغمبر دی. او په پیغمبرانو كې د ځینو مرتبه د ځینو نورو څخه لویه ده. په ټولو كې لویه مرتبه زمونږ د خوږ پیغمبر حضرت محمد رسول الله ﷺ دی.

**معراج** : زمونږ رسول الله ﷺ ته الله پاك په ویښه د هغه د بدن مبارك سره د مكې نه بیت المقدس ته، د هغه ځای څخه اووه واړو اسمانونو ته، د هغه ځای څخه چیرته چې

منظوره وې رسولو او بیا یې واپس مکې مکرمې ته راورسولو. دېته معراج وایي [1]

## ایمان بالملائکة

الله پاك خپل ځینې مخلوقات د نور څخه پیدا کړي، چې هغوی یې زمونږ د سترګو نه پنا کړي دي، هغوی ته ملائکې وایي. الله پاك د تدبیر عالم ډېر کارونه په خپله اراده او مشیت سره په څه مصلحت باندې هغوی ته سپارلي دي. هغوی د الله پاك حکمونه په ډېرې ښې طریقې سره سر ته رسوي. د خپلو سپارل شوو کارونو په پوره کولو کې کله هم نافرماني نه کوي. هغوی نه د انسانانو په شان خوراك څښاك کوي او نه د هغوی په شان نر او ښځې دي.

**شیاطین او جنات** : الله پاك خپل ځینې مخلوقات د اور څخه پیدا کړي دي. هغه یې زمونږ د سترګو څخه پنا کړي دي، هغوی ته جنات وایي. په هغوی کې بد او نیکان هر قسم خلق وي. د هغوی اولاد هم کیږي. په هغوی کې تر ټولو زیات مشهور شریر ابلیس یا شیطان دی. کوم چې خلک ګناهونو ته تیاروي او د هغوی په زړونو کې وسوسې اچوي او د الله پاك نافرماني کوي.

**اولیاء** : مسلمان چې کله ښه عبادت کوي، د الله پاك او د هغه د رسول په پاکو سپېڅلیو حکمونو په پوره طریقې سره عمل کوي؛ نو الله پاك د هغه انسان سره محبت کوي. داسې انسان ته ولي وایي.

**کرامت** : د داسې سړي په ذریعه الله پاك ځینې داسې کارونه ښکاره کوي. چې د نورو خلکو څخه نشي کیدی؛ نو داسې خبرو ته کرامت وایي. ولې چې هر څومره لوی شي: خو د نبي د معجزې برابر نشي کیدی. هغه که الله پاك ته هر څومره محبوب شي: خو چې تر څو پورې هغه روغ او ژوندی وي: نو د هغه لپاره په شریعت پابندي فرض ده. لمونځ، روژه او هیڅ فرض عبادت ورته نه معاف کیږي. د ګناه کومې خبرې چې دي هغه ورته نه جائز کیږي. څوك چې د شریعت خلاف روان وي هغه د الله پاك ولي یا دوست کیدی نشي.

---

[1] مسلم : ۱٦۲، واحمد : جلد ۳ صفحه ۱٤۸

**د اولیاؤ کشف** : اولیاء الله ته د راز ځینې خبرې په وینبه یا ویده حالت کې معلومیږي. په هغې کې چې د شریعت کومې موافق خبرې وي هغه قبول دي او کومې د شریعت په خلاف وي هغه رد دي

**بدعت** : الله پاك او د هغه رسول ﷺ د دین ټولې ضروري خبرې په قرآن او حدیث کې خپلو بندګانو ته بیان کړي دي، اوس په دین کې داسې خبره چې په د دین څخه نه وي او ثوک یې کوي، صحیح نه ده. داسې نوي خبرو ته بدعت ویل کیږي. بدعت ډیره لویه ګناه ده.

**اجتهاد** : د دین ځینې خبرې داسې وي چې په قرآن او حدیث کې په صریح توګه نه دي یادې شوي، د دین لویو لویو عالمانو چا ته چې د قرآن او حدیث په علم کې پوره کمال حاصل وو، د خپل علم او فهم په واسطه یې د قرآن او حدیث نه راوویستل او خلکو ته یې د هغې اسرار بیان بیان کړل. هغه بدعت نه دی. د دین داسې عالمانو ته مجتهدین وایي، چې په هغوی کې څلور مشهور امامان دي: ۱: امام ابوحنیفه. ۲ امام مالك. ۳ امام شافعي. ۴: امام احمد بن حنبل ﷺ

## ایمان بالکتاب

الله پاك په خپلو پیغمبرانو په مختلفو ژبو کې واړه او لوی کتابونه نازل کړي دي. چې په هغې کې الله پاك د پیغمبرانو په ذریعه د هغوی امتونو ته په خپلو حکمونو او هدایاتو باندې خبر ورکړی. په هغې کې څلور مشهور کتابونه دي ۱ تورات کوم چې په سیدنا موسی علیه السلام باندې نازل شوی ۲: زبور کوم چې په سیدنا داؤد علیه السلام باندې نازل شوی. ۳: انجیل: کوم چې په سیدنا عیسی علیه السلام باندې نازل شوی. ۴ او قرآن کریم کوم چې زمونږ په نبي کریم ﷺ باندې نازل شوی. دا قرآن کریم آخري کتاب دی. اوس به ددېنه وروسته هیڅ کوم بل اسماني کتاب نه راځي. ددې کتاب د یوې وړې خبرې نه انکار کولو سره انسان کافر کیږي. تر قیامته پورې به د قرآن کریم حکم منل کیږي. په نورو اسماني کتابونو کې ګمراه خلکو پوره لاس وهنه کړې؛ خو د قرآن کریم د ساتنې وعده خپله الله پاك کړې ده. پدیکې هیڅوك هم تبدیلي نشي راوستی.

## صحابي

زمونږ نبي كريم ﷺ چې كومو مسلمانانو ليدلي او د اسلام په حالت كې وفات شوي وي، هغوى ته صحابه ويل كيږي، هغوى د لويو مرتبو څښتنان او بزرگان خلک دي. دې ټولو سره محبت او ښه گمان ساتل پكار دي، كه د هغوى په اړه د جنگ يا اختلاف كومه خبره مخې ته راشي؛ نو هغه بايد د هغوى هيره وگڼي. بدي يې مه بيانوى. پدې ټولو كې لوى صحابه كرام ﷺ څلور دي:

۱: سيدنا ابوبكر صديق ﷺ د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته د هغوى په ځاى كيناستلو. او د دين د پر مختګ ښه بندوبست يې وكړ، پدې وجه هغوى ته لومړى خليفه ويل كيږي، په ټول امت كې افضل دى، د هغوى نه وروسته ۲: سيدنا عمر ﷺ دويم خليفه دى. ۳: د هغوى نه وروسته سيدنا عثمان ﷺ دريم خليفه دى. د هغوى نه وروسته بيا سيدنا علي ﷺ دا څلورم خليفه دى.

## اهل بيت

د رسول الله ﷺ اولاد او بيبيانې ټول د تعظيم وړ دي، په اولادو كې يې د ټولو نه لويه مرتبه د فاطمې ﷺ ده او په بيبيانو كې يې د سيده خديجة الكبرى او سيده عائشه صديقه ﷺ ده، د رسول الله ﷺ بيبيانې د ټولو مسلمانانو ميندې دي. پدې وجه د هغوى احترام كوى او د اهل بيتو سره محبت ساتى.

## د كفر ځينې خبرې

ايمان هغه وخت برابريږي چې د الله پاك او رسول ﷺ ټولې خبرې رشتينې وګڼل شي. عملي جامه ور واغوندي. د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ په يوه خبره كې شك كول يا د هغې دروغژن ثابتول. يا په هغې كې عيب راويستل. يا هغې پورې ټوقې كول. پدې ټولو خبرو د سړي ايمان ختميږي.

د قرآن او حديث ښكاره او واضح مطلب نه منل. د خپل مطلب جوړلو لپاره د هغې نورې نورې خبرې كول د بې دينى خبره ده. گناه حلال گڼلو سره ايمان ختميږي، گناه كه هر څومره لويه وي: خو چې تر څو پورې هغه بده گڼي د ايمان څخه نه وځي؛ خو

ايمان يې کمزورى کيږي، د الله پاك نه نه ويريدل. يا د هغه د رحمت نه مايوسه کيدل کفر دى. د چا نه د غيب خبرو په اړه پوښتنې کول او په هغې باندې يقين کول کفر دى؛ خو انبياؤ ﷺ ته په وحى سره او اولياء کرامو ته په کشف او الهام سره. عامو خلکو ته په استدراج او ارهاص سره يوه خبره معلوميدى شي. د چا نوم اخستلو سره کافر ويل يا لعنت ويل ډير لويه ګناه ده. هو! داسې ويل کيدى شي چې په ظالمانو دې لعنت وي، په دروغژنو دې لعنت وي؛ خو د چا نوم اخستلو سره چې الله پاك او رسول ﷺ لعنت کړى وي، يا يې د هغوى د کفر خبر ورکړى وي. هغوى ته کافر او معلون ويل ګناه نه ده. د ګناه په کولو سره انسان کافر کيږي نه. صرف ګناهګار کيږي. داسې سړى که توبه وکړي او د الله پاك نه ربښتيا معافي وغواړي؛ نو د الله پاك څخه بې د معاف کولو اميد شته او که الله پاك وغواړي؛ نو د توبې کولو نه بې بغير هم معاف کولى شي. (۱)

## د اٰخرت په ورځ ايمان

ددې مقصد دا دى چې د مرګ نه وروسته تر قيامته پورې او د قيامت نه وروسته د جنت او دوزخ چې کوم احوال او واقعات د قرآن او حديث نه ثابت دي. د يو مسلمان فرض دې چې د زړه نه د هغه په صحت باندې يقين وکړي او په ژبه د هغې اقرار وکړي. په ديکې د يوې واقعې نه انکار کول کوم چې په قرآن او حديث سره ثابت دي کفر دى او د هغې نه خپل مطلب راويستل کوم چې د د صفا او صريح مطلب خلاف وي بې ديني ده.

کوم وخت چې په انسان د مرګ آثار ښکاره شي. په هغه باندې د برزخ احوال منکشف کيږي. اوس دا د توبې وخت نه دى. دې وخت کې توبه نه قبليږي. د مرګ کوم مقرره فرشته چې د انسان د بدن نه روح باسي؛ نو د نيکانو خلکو روح په آسانى سره باسي او د بدو خلکو روح ډيره په سختى او تکليف سره وځي او د هغه وخت نه د جزا او سزا معامله هم شروع شي.

---

(۱) العقيدة الطحاوية ص : ۱۱

کله چې انسان مړ شي که دفن کړی شي؛ نو د دفن کولو نه وروسته او که دفن نه کړی شي؛ نو چې په کوم حال کې وي هغه ته دوه فرشتې راځي. پوښتنه ترې کوي چې ستا رب څوك دی؟ ستا دین څه دی؟ او محمد رسول الله ﷺ څوك دی؟ که هغه ایمان والا وي؛ نو صحیح صحیح جواب ورکوي. بیا د هغه لپاره هر قسم سکون دی او فرشته هغه ته ووايي چې په آرامه ویده شه. که هغه مړی د ایمان نه محروم شي: نو هغه د هر سوال په جواب کې هم دا وايي چې ماته معلومات نشته؛ نو بیا هغه سره د سختی او سزا معامله شروع شي. [1]

ځيني خلك الله پاك ددې امتحان نه معاف کړي؛ خو دا خبرې مړي ته معلومې وي. مونږ يې نه شو ليدلی، لکه ويده انسان چې په خوب کې هر څه ويني. آرام او تکليف هغه برداشت کوي او هغه سره ناست بل ويخ انسان د هغې نه بالکل بې خبره وي؟ د مړي لپاره دعا کولو يا څه خيرات ورکولو سره د هغو په بخښلو سره هغه ته ثواب رسيږي او پدې سره هغه ته فايده رسيږي.

الله پاك او د هغه رسول ﷺ چې د قيامت څومره نخښې بيان کړي دي. هغه به ټولې ضرور ثابتيږي. امام مهدي رحمه الله به ظاهريږي او ښه په انصاف سره به بادشاهي کوي. دجال به راوځي. په دنيا کې به ډير فساد کوي. د هغه د وژلو لپاره به سيدنا عيسى عليه السلام د اسمان نه را ښکته کيږي او هغه به وژني. ياجوج ماجوج دوه زبردست او زورور قومونه دي. هغوی به په ټوله ځمکه باندې خپريږي. فساد به کوي. بيا به د الله پاك په قهر هغوی هلاکيږي. يو عجيبه حيوان به د ځمکې نه راوځي او انسانانو سره به خبرې کوي. لمر به د مغرب نه راوځي. قرآن به پورته کړی شي. په لږو ورځو کې به ټول مسلمانان هلاك شي. ټوله دنيا به د کفارو نه ډکه شي. يو د الله پاك نوم اخستونکی به پاتې نشي. ډيرې خبرې به وي. کله چې ټولې نخښې پوره شي: نو بيا به قيامت قائم شي

---

[1]) البخاری : ۱۳۳۸، ومسلم : ۲۸۷۰، واحمد : ۱۲۲۷۳

## قيامت

يوه فرشته چې د هغه نوم سيدنا اسرافيل عليه السلام دی. هغه به د الله پاك په حكم شپيلۍ كې پوكړي، چې په هغې سره به ټولې ځمكې، اسمانونه، لمر ستوري او غرونه ټول مات رامات او دړې وړې به شي، ټول مخلوقات به مړه شي. كوم چې مړه شوي دي. د هغوی روحونه به بيهوشه شي؛ خو الله پاك چې څوك ساتي. هغه به وساتي. يوه موده به په همدې كيفيت كې تيره شي. بيا چې كله الله پاك ته منظوره وي چې ټول عالم دوباره پيدا كړي، دويم كرت به شپيلۍ پوكړی شي. دې سره به بيا ټول عالم وجود ته راشي. مړي به راژوندي شي. د قيامت په ورځ به ټول ميدان ته راجمع شي. د هغه ځای د تكليفونو نه ويريدلو سره به ټول پيغمبرانو ته د سفارش كولو لپاره ورځي. ټول نيك او بد عملونه به راوړل شي. د هغې حساب به كيږي. اعمال به تلل كيږي. چې د چا د نيكو وزن دروند وي هغوی به جنت ته ځي. چې د هغوی نيكۍ او بدۍ به برابر وي. هغوی به په اعراف باندې وي. الله پاك چې څه غواړي هغوی سره به هغه شان معامله كوي. د چا گناهونه چې درانه شي هغوی به جهنم ته ځي. د مسلمانانو به شفاعت كولی شي او كافر به د همېشه همېشه لپاره په جهنم كې سوځي. د نيكانو عمل نامه به په ښي لاس او د بدو خلكو عمل نامه به په چپ لاس وركول شي

رسول الله ﷺ به خپل امت ته په حوض كوثر باندې اوبه وركوي. تر څو هغوی د كوثر په اوبو ښه خړوب شي. هغه اوبه چې د شيدو څخه زياتې سپينې او د شهدو څخه زياتې خوږې وي، خلك به په پل صراط باندې تيريږي. چې نيكان خلک وي هغوی به پدې باندې پورې وتلو سره جنت ته ورسيږي او كوم خلک چې گناهگار دي هغوی به ددېنه دوزخ ته لاندې وغورځيږي.

## دوزخ(جهنم)

جهنم پيدا شوی، د هغې اووه طبقات دي، پديكې ماران. لړمانان. اور او قسم قسم عذابونه دي، په دوزخيانو كې چې په چا كې د ذرې په برابر ايمان هم وي. هغوی به د خپلو بدو اعمالو سزا خوري، د بزرگانو او پيغمبرانو د سفارش نه وروسته به د الله

پاك د رضا مطابق جنت نه داخليږي. اګر كه هغوى هر څومره ګناهګار وي او كوم خلك چې كفار او مشركين دي. هغوى به پكې د همېشه لپاره وي او دا هم درسره ياد ساتى چې په هغوى به مرګ هم هيڅكله نه راځي

## شفاعت

انبياء ﷺ او صالحين به د الله پاك په مرضى د هغه مؤمنو ګنهګارو په حق كې چې د هغوى په باره كې د الله پاك د رضا اشاره وشي. شفاعت كوي او كوم خلك چې كفار اومشركين دي هغوى به پكې همېشه اوسيږي اوپه هغوى باندې به كله هم مرګ نه راځي

## جنت

جنت پيدا شوى دى. د هغې اته طبقې دي. په هغې كې باغونه. نهرونه. ميوې اعلى كوزونه. د سورې والا ونې. د آرام او خوشحالۍ ډول ډول نعمتونه دي. چې د هغې تصور هم انسان په دنيا كې نشي كولى. دا ټول نعمتونه به همېشه وي. يعني نه به الله پاك هغه واپس اخلي، نه به هغه فنا كيږي. جنتيانو ته به د همېشوالي ژوند حاصل وي، هلته به نه چا سره د چا غم وي او نه ويره. نه به پرې مرګ راځي. الله پاك ته اختيار دى چې په وړه ګناه سزا وركوي يا لويه ګناه صرف په خپله مهرباني معاف كړي او بالكل پدې باندې سزا ورنه كړي.

چې دكومو خلكونومونو اخستلو سره الله پاك او رسول ﷺ همېشه جنتي كيدل ښودلي دي.دهغوى نه سېوا دچا د جنتي كيدو يقيني حكم مونږ نه شو لګولى: خو ښه نخښې كتلو سره ښه ګمان كول او د الله پاك د رحمت نه ساتل ضروري دي. په جنت كې تر ټولو لوى نعمت د الله پاك رضا حاصلول او د هغه د ديدار نعمت دى. چې جنتيانو ته به په جنت كې نصيب كيږي.چې د هغې مخكې به ټول نعمتونه ډير معمولي وي.

دنيا كې پدې غرېدلو سترګو باندې الله پاك څوك هم نشي ليدلى. ټول عمر كه هغه هر څومره نيك او بد وي: خو په كوم حالت كې چې مرګ راشي. په كوم حالت باندې يې چې خاتمه وشي. د هغې موافق به جزا او سزا وي. (١)،(١) (اهل سنت والجماعت ج١ ص٨٢ تا ٩٦)

﴿ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ﴾



# [د روافضو فرقه]

## د روافضو فرقې تاريخ

د سيدنا عثمان رضي الله عنه د خلافت په ابتدائي دور کې ټول امت متحد او متفق وو. ددېنه وروسته په مزه مزه انتشار او اختلاف پيدا شو. پدې انتشار خپرونکو کې يو يهودي عالم عبدالله بن سبا هم وو. هغه په ابتداء کې دا ويل چې رسول الله ﷺ به دوباره دنيا ته تشريف راوړي؛ خو د حجاز، شام او عراق والو د هغه خبره بالکل ونه منله. ددېنه وروسته هغه مصر ته لاړ. هلته هغه دا خبرې شروع کړې او ورسره يې د سيدنا علي رضي الله عنه په اړه غلو او مبالغه هم شروع کړه او هغه هم دا خبره د خلکو په ذهن کې واچوله چې د رسول الله ﷺ نه وروسته سيدنا علي رضي الله عنه د خلافت مستحق وو؛ خو هغوی ته دا حق ورنکړی شو او د سيدنا عثمان رضي الله عنه خلاف يې مختلف شکايتونه شروع کړه. تر دې چې سيدنا عثمان رضي الله عنه په مظلوم ډول د شهادت لوړې مرتبې ته ورسېد. بيا هم پدې انتشار کې جنګ جمل او جنګ صفين وشو. په زرګونو مسلمانان شهيدان شو. چې په آخره کې سيدنا علي رضي الله عنه هم شهيد کړی شو (١)

د يهودي عبدالله بن سبا په شروع شوي تحريک کې يو طرفته د سيدنا علي رضي الله عنه په محبت کې مبالغه او بل طرفته د سيدنا معاويه رضي الله عنه سره په بغض کې دا نظريه چې د سيدنا علي رضي الله عنه نه وروسته د هغوی اولاد د خلافت مستحق دي. بله دا چې د رسول الله ﷺ نه وروسته د امامت سلسله ده چې د امت رهنمايي کيږي او بيا په مزه مزه دا نظريات مضبوطيدل. بيا هم دې ډلې د سيدنا حسين رضي الله عنه د شهادت نه وروسته د هغوی خوی زين العابدين رحمه الله څلورم امام تسليم کړ. د زين العابدين رحمه الله د وفات نه وروسته محمد باقر (پنځم) امام ومنل شو. ددېنه وروسته د هغوی خوی جعفر صادق رحمه الله ته (شپږم) امام وويل شو. ددېنه وروسته د جعفر صادق رحمه الله په وارث کې اختلاف پيدا شو. په شروع کې جعفر صادق رحمه الله خپل خوی اسماعيل خپل وارث کړ:

---

(١) (اهل سنت والجماعت ج١ ص٨٢ تا ٩٦)

(٢) تقريب التهذيب: جلد ١ صفحه ٦٩٦

خو کله چې هغه د جعفر صادق رحمه الله په ژوند وفات شو؛ نو هغوی خپل بل ځوی موسی کاظم رحمه الله خپل دیني وارث وټاکی
یوې ډلې وویل چې اصل وارث اسماعیل دی، پدې وجه به دا د امامت سلسله هم په هغوی کې روانه وي؛ نو د هغوی ځوی محمد اسماعیل هغوی امام ومنلو. اوس دوی د اسماعیل په نسبت سره اسماعیلي بلل کیږي او بلې ډلې وویل چې امام جعفر صادق موسی کاظم خپل وارث جوړ کړی دی؛ نو هغه اصل وارث شو او دوی ته موسویه ویل کیږي.
بیا دوی د موسی کاظم علیه السلام په اولاد کې د امامت قائل شو. د هغوی نه وروسته د هغوی ځوی علی رضا اتم امام او بیا محمد تقي نهم امام او علي نقي لسم امام او بیا حسن عسکري دا یوولسم امام جوړشو او دولسم امام مهدي دا غائب دی. قیامت ته به نزدې ظاهریږي، ددې دولسو امامانو د وجې شیعه ګانو ته اثناعشریه ویل کیږي. (١)

## د شیعه فرقې د باني عبدالله بن سبا یهودي حالات

عبدالله بن سبا یهودي د یمن د دار الحکومت صنعاء اوسیدونکی وو. د مور نوم یې جشن وو د هغه پلار په سازش او منصوبه بندی کې یو غټ مثال درلود، دی د خپل عمر په ابتدائي دور کې په یمن کې اوسېده؛ خو وروسته مدینې منورې ته راغی. بیا هغه په سیاسي او مذهبي دواړو طریقو سره د اسلام د کمزورې کولو کوشش وکړ
په دې اړه صاحب د کشف الحقائق فرمایي
" سیاسي محاذ یې داسې ګرم کړ چې د مصر امیر. امیر حسین د سیدنا عثمان غني رضی الله عنه او د هغوی د عاملینو خلاف په دروغه او بې بنیاده تهمت لګولو سره د عوامو په زړونو کې د هغوی خلاف د نفرت او دشمنی جذبات داسې روښانه کړه چې هغه معزول کړی شو. د نظام حکومت ددې خرابوالي نه وروسته اسلامي سلطنت کمزوری کیدلو. د مسلمانانو په خپل منځ کې انتشار او تفرقه پیدا شوه. مذهبي محاذ یې داسې ګرم کړی وو چې د دین فطرت صفا او ساده او واضح عقائدو کې

(١) شرح العقائد ص ١٥٥، ١٥٦، والنبراس : ٣١٢، ٣١٣

بدلون راوستل شو، په توحيد او رسالت باندې حمله وشوه. د اسلام بنيادي حقائق مسخ کولو سره عوام گمراه شو، دغه شان د مسلمانانو وحدت هم ختم کړی شو. په دوی کې به اعتقادي تفرقه اچولو سره د فرقه بندی تخم وکرل شو. چې دوی په بيلو بيلو فرقو او ډلو ووېشل شي. (١)

دغه شان عبدالله بن سبا دا کار په بصره کې هم شروع کړ. بيا يې په کوفه کې او بيا په مصر کې دا کار شروع کړ. (٢)

په مزه مزه دا خلک ډيريدل. بيا دا يوه ډله جوړه شوه چې په سر د ځمکې ښکاره شوه. د هغوی سوچ تخريبي وو، چې د هغې له امله هغوی خو کرته په کوفه او دمشق کې د جلا وطنی وخت تير کړ. آخره کې يې په مصر کې استوګنه اختيار کړه. د هغه ځای نه هغه د اسلام خلاف نظرياتي جنګ شروع کړ او هغه اعلان وکړ چې د سيدنا عيسی عليه السلام په شان به رسول الله ﷺ هم واپس راځي. سيدنا علی رضي الله عنه د رسول الله ﷺ وصي وو. د چا نه چې سيدنا عثمان رضي الله عنه خلافت په زوره واخست. اوس د انصاف تقاضا دا ده چې د هغوی حکومت ختم کړی شي.

هم دغه شان ابن سبا د سيدنا عثمان رضي الله عنه د شهيد کولو لپاره د مصر خلک تيار کړه.

په کتاب الملل والنحل کې امام شهرستاني ليکي: چې ابن سباء او د هغه جماعت سيدنا علی رضي الله عنه ته خدای ويل شروع کړه؛ نو سيدنا علی رضي الله عنه هغوی په مدائن کې بنديان کړه. هغوی د سيدنا علي رضي الله عنه د شهادت نه وروسته دا ويل شروع کړه چې سيدنا علي رضي الله عنه نه دی شهيد شوی، بلکې هغه خو د الهي نور يوه برخه وه. هغوی خو په وريځو کې ژوند تيروي......د وريځو غرارې (شور) دا د سيدنا علی رضي الله عنه امارت دی. د هغې چمك د سيدنا علي رضي الله عنه چابك دی، هغوی چې کله دوباره ځمکې ته راشي؛ نو د دنيا څخه د ظلمونو په ختمولو سره به عدل او انصاف عام کړي. (٣)

**وفات**: د سيدنا علي رضي الله عنه د خلافت نه پس هغه مړ شو

---

١) کشف الحقائق: ٢٧

٢) طبری ابن جرير: جلد ٣ صفحه ٣٧٨

٣) الملل والنحل: جلد ١ صفحه ٢٠٤، ٢٠٥

# د شیعه فرقې نظریې او عقیدې

د اهل سنت والجماعت د شیعه فرقې سره اختلاف په ډیرو شیانو کې دی. البته څو مهم اختلافات یې دا دي.

١: قرآن کریم اصل نه منل

٢: د امامت درجه د نبوت نه لویه ده.

٣: د رسول الله ﷺ د دنیا د رخصتیدلو نه وروسته د څلورو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه سبوا (معاذ الله) ټول مرتد کېدل.

۴: په کلمه طیبه کې بدلون.

۵: متعه (زنا) جائز ده، بلکې د اجر او ثواب باعث ده

۶: په عقیده رجعت باندې ایمان راوړل هم واجب دي.

**نوټ**: ددېنه پرته نورې هم ډیرې عقیدې او نظریې شته چې د شیعه فرقې د اهل سنت والجماعت سره اختلاف دی؛ خو بنیادي عقیدې او نظریې هم دا دي کوم چې پورته ذکر شوي دي.

## [د شیعه فرقې نظریې او عقائد، د قرآن او حدیث څخه د هغو جوابونه]

## لومړی عقیده: د قرآن په باره کې

ددې په اړه د شیعه ګانو په کتابونو کې مختلفې خبرې شته. هغه ټولې د اهل سنت والجماعت په نزد کفر دي، تقریبا دوه زره روایات د شیعه ګانو په کتابونو کې موجود دي چې د هغې نه معلومیږي، دا قرآن کریم بدل شوی دی، هغه روایات د شیعه ګانو په نزد صحیح دي. د انکار پکې هیڅ ګنجائش نشته (١)

مثلا: کوم قرآن کریم چې سیدنا جبرائیل علیه السلام په رسول الله ﷺ باندې نازل کړی وو، په هغې کې دیارلس زره آیتونه وو. (٢)

✿ .... د اصل قرآن کریم سره محبت ساقط شوی دی. (٣)

---

١) اصول کافی: ٦٧١، بحواله بینات: ٥٦، اصول کافی: جلد ٢ صفحه ٤١٤

٢) اصول کافی: ٦٧١

٣) صافی شرح اصول کافی

✿ .... په قرآن کريم کې داسې خبرې هم شته چې الله پاك نه دي کړي. [1]

✿ .... موجوده قرآن کريم د دين د اولياؤ دشمنانو جمع کړي دي [2]

✿ .... د موجوده قرآن کريم ترتيب د الله پاك د رضا خلاف دی [3]

✿ .... د سيدنا علي رضي الله عنه نوم د قرآن کريم د ډيرو مقاماتو نه ويستل شوی [4]

✿ همدغه شان سيد نعمت الله الموسوی الجزائري ليکلی دی

قرآن کريم چې څنګه نازل شوی وو. هغه د رسول الله ﷺ د وصيت مطابق صرف امير المؤمنين علي رضي الله عنه د هغوی د وفات نه وروسته شپږ مياشتې مشغول او سيدو سره جمع کړی وو، د جمع کولو نه وروسته يې هغه خلکو ته راوړلو کوم چې د رسول الله ﷺ نه پس خلفاؤ جوړ کړی وو. علي رضي الله عنه وفرمايل: څنګه چې د الله پاك کتاب نازل شوی وو هغه دا دی: نو په هغوی کې سيدنا عمر بن الخطاب رضي الله عنه ووېل

مونږ ته ستا او ستا ددې قرآن ضرورت نشته؛ نو امير المؤمنين حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه وفرمايل: چې د نن نه پس به تاسو هيڅ کله و نه وينی او نه به يې بل څوك وليدی شي، ترڅو پورې چې زما د ځوی مهدی عليه السلام ظهور وشي. پدې قرآن کې ډير زيادت دی او دا د تحريف نه خالي دی .... کله چې مهدي ظاهر شي: نو موجوده قرآن به د آسمان طرفته اوچت شي او هغه قرآن به راويستلو سره پيش کوي. کوم چې امير المؤمنين راجمع کړی وو. [5]

**جواب** : د اهل سنت والجماعت عقيده د قرآن کريم په باره کې دا ده چې دا داسې مقدس کتاب دی چې څنګه نازل شوی دی. تر ننه پورې پدیکې د يو حرف زيادت هم نه دی شوی او څوك چې ددې خلاف عقيده ساتي هغه بالاتفاق د اسلام نه خارج دی. [6]

---

[1]) احتجاج طبرسي ص : ٢٧

[2]) احتجاج طبرسی ص : ٣٠

[3]) فصل الخطاب : ٣٠

[4]) ديباچه تفسير صافی: ٧٥

[5]) انوار النعمانية : جلد ٣ صفحه ٣٥٧

[6]) د زيات تحقيق لپاره ددې کتابونو مطالعه مفيد ده : ..... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## دويمه عقيده: د امامت درجه د نبوت نه لويه ده

د امامت درجه د نبوت نه زياته ده. ددې عقيدې په باره کې هم د شيعه ګانو په کتابونو کې مختلفې خبرې ليکل شوي دی. هغه ټولې د اهل سنت والجماعت په نزد کفريه دي

مثلا خميني ليکلي دي.

زمونږ د مذهب ضروريات يعنې بنيادي عقائدو کې دا عقيده هم ده چې زمونږ د امامانو هغه مقام دی. کوم ته چې تر اوسه پورې يوه مقربه فرشته او هيڅ مرسل نبي نه شي رسيدلی [1]

باقر مجلسي ليکي

ددې ائمه کرامو درجه د نبوت نه لويه ده [2].

"امام معصوم وي د الله پاك خاص تائيد او توفيق د هغه سره وي. الله پاك هغوی سيده ساتي. هغه د غلطی. هيرې او خطاء نه محفوظه ساتي. الله پاك د معصوميت ددې نعمت سره هغوی مخصوص ساتي. ددې لپاره چې هغه د الله پاك په بندګانو د هغه حجت وي او د هغه په مخلوق باندې شاهد وي [3].

---

..... بقيه حاشيه د تير مخ:]

١: اضافه تحريف قرآن د مولانا عبدالشکور لکهنوی رحمه الله تعالی.

٢. شيعه سنی اختلافات اور صراط مستقيم، د مولانا محمد يوسف لدهيانوی

٣: ايمان بالقرآن کامل. مولانا الله يار خان

٤: تاريخی دستاويز ..... مولانا ضياء الرحمن فاروقي رحمه الله تعالی

٥: شيعه او قران ..... نا معلوم مرتب

٦: اقامة البرهان علی ان الشيعة اعداء القران: د مولانا عبدالشکور لکهنوی رحمه الله تعالی

٧: نهاية الخسران لمن ترك القرآن : د مولانا عبد الشکور لکهنوی رحمه الله

٨:تنبيه : د مولانا عبدالشکور لکهنوی رحمه الله تعالی

٩: شيعه کی ترتيب قرآن کی حقيقت، د مولانا ابو معاويه نور حسين عارف صاحب

[1]) الحکومة الاسلامية : ص ٥٢

[2]) حيات القلوب ( باقر مجلسي ) ٣/ ص ٢٠١

[3]) اصول الکافی ص : ١٢١

د رسول الله ﷺ نه وروسته سیدنا علي ﷺ امام وو. د هغوی نه پس حسن امام وو. د هغوی نه پس حسین امام وو. د هغوی نه پس ثوك چې ددې خبرې نه انکار کوي هغه داسې دی لکه چې هغه د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ د معرفت نه انکار وکړي.
[1]

غلام حسین نجفي لیکلي دي.

د سیدنا علي ﷺ د افضلیت بعد النبي ﷺ منکر کافر دی [2].

(دغه شان نورې هم ډیرې خبرې د امامت په باره کې موجود دي)

**جواب** : د مسئله امامت په باره کې اهل سنت والجماعت فرمايي چې دا عقیده هم کفر ده.

پدې مسئله کې استاد محترم مفتي اعظم پاکستان مفتي ولي حسن ټونکي صاحب ﷫ فتوی لیکلې ده [3].

د صحابه کرامو ﷢ د دور نه تر دې وخته پورې د امت اجماع ده چې رسول الله ﷺ آخري نبي دی، د رسول الله ﷺ نه وروسته به هیڅ نوی نبی نه پیدا کیږي. لهذا د نبوت خصوصیات، وحی، شریعت او عصمت وغیره تر قیامته پورې بند دي.

دا شیعه ګان اګر چې ښکاره د ختم نبوت انکار نه کوي؛ خو د پردې شا ته دا خلک د اجراء نبوت قائل دي. ځکه چې د هغوی د امامت عقیده د ختم نبوت انکار لره مستلزم ده. لهذا دا خلک په حقیقت کې د تقیه د وجې د خپلو امامانو لپاره د نبي لفظ استعمالولو نه ځان ساتي: خو په حقیقت کې دا خلک د خپلو ائمه وو لپاره د نبوت خصوصیات ثابتوي. یعنې خپل ائمه منصوص. د خدای مفهوم او هغوی ته د وحی او شریعت راتلو قائل دي. بل دا چې هغوی نه د شریعت د احکامو د منسوخ

---

[1]) اصول الکافی ص : ۱۰٦

[2]) تحفه حنفیه ص ۱۷، (غلام حسین نجفي) د زیات وضاحت لپاره شیعه سني اختلافات اور صراط مستقیم او تاریخي دستاویز وغیره کتابونه کتل کیدی شي. چې په هغې کې د اصل کتابونو د کتاب د پاڼې عکسونه هم درج شوي دي.

[3]) پدې فتوو باندې د هند او پاکستان علماء کرامو تصدیق او توثیق فرمایلی دی.

کولو اختیار هم ورکوي. بلکې د روح الله خمیني د لیك مطابق ائمه د الوهیت درجې ته رسیدلي دي. دا خو سراسر کفر او شرك دی. روح الله خمیني په خپل کتاب الحکومة الاسلامیة کې لیکلي دي چې:

﴿ فان الامام مقام محمود او درجة سیلیة وخلافة تکوینیة تخضع لولایتها وسیطرتها جمیع وارث هذا الکون ولن من ضروریات مذهبنا ان لائمتنا مقاما لا یبلغه ملك مقرب ولا نبی مرسل الی ان قال وروی عنهم ان لنا مع الله حالات لا یسعها ملك مقرب ولا نبی مرسل ومثل هذه المنزلة موجودة لفاطمة الزهراء علیها السلام ﴾ (١)

**ترجمه**: بېشکه مقام محمود لویه درجې او په خلافت تکویني باندې د امامانو د ولایت خاصه ده. د ټول کائنات وارثان دي او زمونږ د مذهب د ضروریاتو څخه ده چې زمونږ د امام هغه مقام دی کوم چې نه د یوې مقربې فرښتې دی او نه د نبي مرسل. د هغوی نه نقل دي چې مونږ الله پاك سره پداسې حالاتو کې یو چې هغه هیڅ مقربې فرښتې او نبي مرسل ته حاصل نه دی. دا مقام فاطمة الزهرا ته حاصل دی. (٢)

د دوی د کفر ثابتولو لپاره دا حواله پوره ده.

## دریمه عقیده: د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته سېوا د څلورو صحابه وو څخه پاتې ټول صحابه کرام رضی الله عنهم مرتد شوي وو

د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د څلورو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه سېوا (معاذ الله) باقي ټول مرتد شوي وو. ددې دعوې په باره کې هم د شیعه ګانو په کتابونو کې مختلفې خبرې ملاویږي. هغه هم د اهل سنت والجماعت په نزد کفریه خبرې دي.

مثلا باقر مجلسي لیکي: د رسول الله ﷺ د دنیا نه رخصت کیدو نه وروسته سېوا د څلورو کسانو ۱: علي رضی الله عنه. ۲: مقداد رضی الله عنه. ۳: سلمان فارسي رضی الله عنه. ۴: ابوذر رضی الله عنه. ټول

(١) الحکومة الاسلامیة ص ٥٢

(٢) پدې اړه هم مستقل او ډیر کتابونه لیکل شوي. چې د څینو نومونه یې په لاندې ډول دي: ١: شیعه سني اختلاف اور صراط مستقیم د مولانا محمد یوسف لدهیانوی، ٢: شرح مسائل امامت نمبر اول، دوم، مولانا عبدالشکورلکهنوی،٣:شیعه کے نزدیك حقیقت امامت مولانا ابو سعادیه نور حسین عارف صاحب.

مرتد شو [۱]

غلام حسین نجفي لیکي چې

هغه چې تاسو سره د پوهې د صحابه صحابه چغې جوړې کړې دي. په هغوی کې څو ستاسو په قول درې خلفاء غوره دي او څومره سوه کلونه وشو. تر ننه پورې ستاسو د لوی نه لوی عالم هم ددې غریبانانو ایمان پورې نشي ثابتولی [۲].

علامه خمیني وایي چې

ابو بکر. عمر او د هغوی ملګري د زړه نه مؤمنان نه وو. هغوی خپل ځان د حکمرانی په لالچ کې د رسول الله ﷺ په دین پورې تړلی وو [۳].

همدغه شان په جامع کافي کې دي چې:

ابوبکر او عمر (رضي الله عنهما) قطعي کافران دي. پدې دواړو باندې د الله پاك. فرشتو او ټولو انسانانو لعنت دی [۴].

په جهنم کې یو صندوق دی چې په هغې کې دولس کسان بند دي. شپږ د مخکې امتونو نه او شپږ ددې امت نه ... د دې امت شپږ کسان دا دي: دجال. ابوبکر. عمر. ابو عبیده بن الجراح. سالم مولی حذیفه. سعد بن ابي وقاص [۵].

غلام حسین نجفي لیکلي دي:

کوم عمل چې د نوح او لوط علیهما السلام بیبیانو ددې دواړو نبیانو خلاف ادا کړی وو. هم هغه عمل عائشه بنت ابي بکر او حفصه بنت عمر (رضي الله عنهن) د خپل خاوند پیغمبر اسلام حضرت محمد ﷺ خلاف ادا کړ [۶].

هم دغه شان غلام حسین نجفي لیکلي دي

---

[۱]) حیات القلوب : ٤٦، باقر مجلسي

[۲]) تحفه حنفیه ص ۵۵

[۳]) کشف الاسرار ص ۱۱۲

[۴]) الجامع الکافي کتاب الوصیه: ص ٦۲

[۵]) جلاء العیون : ١٦

[۶]) سهم سهوم : ۲۸

د هيڅ ويونکي لپاره پديکې شك نشته چې هغه دي د عمر ﷺ په کفر کې شك وکړي. د الله او رسول لعنت دي وي په عمر او په هغه سړي کوم چې هغه مسلمان گڼي او په هغه سړي باندې کوم چې په عمر باندې لعنت ويلو کې توقف کوي [1]

دا قسم نورې هم ډيرې خبرې د شيعه گانو په کتابونو کې موجودي دي!

**جواب** : د صحابه کراموﷺ په باره کې د اهل سنت والجماعت عقيده ده چې د انبياؤ ﷺ نه پس دوی د ټولو انسانانو نه غوره دي. د ټولو صحابه کراموﷺ نه الله پاك راضي شوی دی، دا خبره د قرآن کريم په ډيرو آيتونو او احاديثو کې د يوې لوې ذخيرې نه معلوميږي. مثلاً

## د صحابه کراموﷺ د ايمان په اړه د قرآن کريم شاهدي

﴿ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ [2]

**ترجمه** : او هغه خلک چې مخکې کيدونکي دي (ايمان ته) اولني مسلمانان دي. د مهاجرينو او انصارو څخه، هغه کسان چې د دوی تابعداري يې په ښه طريقې کړې ده. الله پاك د هغوی نه راضي دی او هغوی د الله پاك نه راضي دی. د هغوی لپاره يې جنتونه تيار کړي دي. چې د هغې د لاندې به نهرونه بهيږي. همېشه همېشه به په هغې کې وي. دا لويه کاميابي ده.

همدغه شان د قرآن کريم په بل آيت کې راغلي دي!

﴿ لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا وَيَنْصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ [3]

**ترجمه** : د هغو غريبانانو وطن پرېښودلو لپاره کوم چې د خپلو کورونو او مالونو څخه راويستل شوي. د الله پاك د فضل او رضا غوښتلو لپاره. د الله پاك او د هغه د

---

[1]) تحفه حنفيه : ۴۱

[2]) سورة التوبة ايت ۱۰۰

[3]) سورة الحشر ايت ۸، ۹

رسول ﷺ د مرستې لپاره. هم دا خلک رشتیني دي. هغه خلک چې ځای نیسي پدې کور کې او ایمان راوړي د ځان نه مخکې سره هغوی محبت کوي. د هغه خلکو سره چې د هغوی طرفته یې هجرت کړی دی او په خپل زړه کې تنګسیا نه مومي د هغه شي څخه کوم چې دې مهاجرینو ته ورکول شي. مقدم ساتي هغوی په خپل ځان باندې اګر چې هغوی باندې پخپله لوږه وي. څوک چې د نفس د لالچ نه وساتل شو. یقینا هم هغوی کامیاب دي.

همدغه شان په قرآن کریم کې د الله پاک ارشاد دی

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ ﴾[1]

**ترجمه** : او کله چې وویل شي هغوی ته چې ایمان راوړی څنګه چې ټولو خلکو ایمان راوړی دی: نو وایي چې آیا مونږ ایمان راوړو څنګه چې بیوقوفو ایمان راوړی دی پوه شی چې هم دوی بیوقوف دي؛ خو نه پوهیږي.

همدغه شان په قرآن کریم کې ډیر آیتونه دي چې په هغې کې د صحابه کرامو د ایمان داره کېدو زیري ورکول شوي دي. په دریو باندې اکتفاء شوې ده. د اوږد والي د وجې نه د منونکو لپاره هم درې کافي دي. همدغه شان په احادیثو کې هم یوه لویه ذخیره د صحابه کرامو رضی الله عنهم په استقامت علی الحق باندې شاهد دي

## د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ایمان په احادیثو کې شاهدي

۱ : ﴿ وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَفَعَ يَعْنِي النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ وَكَانَ كَثِيرًا مِمَّا يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ «النُّجُومُ أَمَنَةٌ لِلسَّمَاءِ فَإِذَا ذَهَبَتِ النُّجُومُ أَتَى السَّمَاءَ مَا تُوعَدُ وَأَنَا أَمَنَةٌ لِأَصْحَابِي فَإِذَا ذَهَبْتُ أَنَا أَتَى أَصْحَابِي مَا يُوعَدُونَ وَأَصْحَابِي أَمَنَةٌ لِأُمَّتِي فَإِذَا ذَهَبَتْ أَصْحَابِي أَتَى أُمَّتِي مَا يُوعَدُونَ» ﴾[2]

**ترجمه** : د سیدنا ابو برده رضی الله عنه څخه روایت دی فرمایي چې رسول الله ﷺ خپل سر مبارک د آسمان طرفته پورته کړ. لکه څرنګه چې د هغوی به اکثر عادت (د وحی په انتظار کې) وو. بیا یې ارشاد وفرمایلو: چې ستوري د آسمان لپاره د امن او سلامتی

---

[1]) سورة البقرة : ۱۳

[2]) مسلم : ۲۵۳۱، احمد : جلد ٤ ص ۳۹۸، وابو یعلی : ۷۲۷٦

باعث دي. کله چې دا ستوري ختم شي: نو د آسمان لپارد به هغه شی راشي. د کوم چې وعده شوې ده. (یعنې قیامت، او زه د خپلو صحابه کراموﷺ لپاره امن او سلامتي يم. کله چې زه لاړ شم: نو صحابه کرام ﷺ به په هغه شي کې اخته شي د کوم چې وعده شوې ده. زما صحابهﷺ د امت لپاره د امن او سلامتی باعث دي. چې کله دوی د دنیا نه پورته شي: نو زما په امت به هغه څه راشي د کوم چې دوی سره وعده شوې ده

يو بل ځای کې نبوي ارشادﷺ دی:

۲ ﴿ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ قَالَ عِمْرَانُ فَلاَ أَدْرِي أَذَكَرَ بَعْدَ قَوْلِهِ قَرْنَيْنِ، أَوْ ثَلاَثًا؛ ثُمَّ إِنَّ بَعْدَكُمْ قَوْمًا يَشْهَدُونَ، وَلاَ يُسْتَشْهَدُونَ وَيَخُونُونَ، وَلاَ يُؤْتَمَنُونَ وَيَنْذُرُونَ، وَلاَ يَفُونَ وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ ﴾[1]

**ترجمه** : د سیدنا عمران بن حصینﷺ نه روایت دی چې رسول اللهﷺ ارشاد وفرمایلو د ټولو نه غوره خلک زما د دور دي. بیا هغه خلک کوم چې دوی سره نزدې وي. بیا هغه چې د هغوی سره متصل وي. سیدنا عمرانﷺ فرمایي چې ما نه دا معلومه نه ده چې رسول اللهﷺ د ځان نه وروسته د دوه قرنو ذکر وکړ که د درې وو. بیا به د هغې نه وروسته داسې خلک وي چې هغوی به قسمونه خوري. حال دا چې د هغوی نه به قسم نه شي غوښتلی. خیانت به کوي امانتدار به نه وي. د الله لپاره به نذرونه کوي: خو پوره کوي به یې نه. په هغوی کې به خوړب والی ښکاره کیږي

۳ ﴿ عن عليٍّ قال: قلتُ يا رسولَ الله! إن نزل بنا أمرٌ ليس فيه بيانُ أمرٍ ولا نهيٍ فما تأمرنا؟ قال: شاوروا فيه الفقهاءَ والعابدينَ ولا تمضوا فيهِ رأياً خاصَّةً ﴾[2]

---

[1] بخاري جلد ۱ صفحه ۵۱۵، مسلم: جلد ۲ صفحه ۳۰۵، دا حدیث متواتر دی ددې حدیث نه انکار نشي کیدی.

[2] مجمع الزوائد: جلد ۱ صفحه ۱۷۸، و کنز العمال جلد ۲ صفحه ۳۴۱.۳۴۰ (قال الهیثمي رجاله موثقون من اهل الصحیح)

**ترجمه** : سيدنا علي بن ابی طالب ﷺ نه روايت دی فرمايي: چې ما عرض وکړ. يا رسول الله ﷺ! که چیرته مونږ ته یوه داسې مسئله راپیښه شي چې په هغې کې د امر یا نهی څه فرمان د مخکې نه موجود نه وي؛ نو تاسو دې باره کې مونږ ته څه حکم کوئ؟ رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو: هغه وخت د فقهاؤ او عابدينو سره مشوره کوه او د يو خاص سړي په رايه باندې عمل مه کوه.

ددې حديث څخه معلومه شوه چې د صحابه کرامو ﷺ اجماع حجت دی د همدې له امله محدثين دا د باب الاجماع په ضمن کې ذکر کوي.

دا قسم احاديث نور هم ډير موجود دي. د اوږد والي د وجې نه ذکر نه کړی شو. هغه څوک يې چې مني دا درې هم ورلره کافي دي.

## د صحابه کرامو ﷺ په ایمان د عقیدوي کتابونو شاهدي

د همدې له امله د اهل سنت والجماعت عقائد دا دي چې امام ابو حنيفه ﷫ پدې طرز باندې ذکر کړی دی:

﴿ افضل الناس بعد النبيين عليهم السلام ابوبكرِ الصديقُ رضى الله تعالى عنهُ ثُمَّ عمرُ بنُ الخطابِ رضىَ الله تعالى عنه ثُمَّ عثمانُ بنُ عفانَ رضى الله تعالى عنهُ ثُمَّ عليٌّ بنُ ابى طالبٍ رضى الله تعالى عنه عابدينَ ثابتينَ على الحقِّ ومع الحقِّ ولا نذكر احداً منَ الصَّحابةِ الا بخيرٍ ﴾ (١)

**ترجمه** : د رسول الله ﷺ نه وروسته د ټولو انسانانو نه غوره سيدنا ابوبکر صديق ﷺ دی، بيا عمر بن الخطاب ﷺ دی بيا عثمان بن عفان ﷺ دی بيا سيدنا علی بن ابی طالب ﷺ دی. دا حضرات همېشه په حق باندې وو. د حق سره وو. مونږ د صحابه کرامو ذکر نه کوو. مګر په خير سره

په العقيدة الطحاوية کې علامه طحاوي ﷫ فرمايي

﴿ ونحبُّ أصحابَ رسولِ الله صلَّى اللهُ عليهِ وسلَّم ولا نفرطُ في حبِّ أحدٍ منهم ولا نتبرأُ مِن أحدٍ مِّنهُم ونُبغضُ مَنْ يُّبغِضُهُم وبغيرِ الحقِّ يذكرهم ولا نذكرهم إلا بخيرٍ وحبهم دينٌ وإيمانٌ وإحسانٌ وبغضهم

(١) الفقه الاكبر مع الشرح : ١٠٨، ١١٦، طبعة الرشيدية.

كفرٌ ونفاقٌ وطغيانٌ ﴾[1].

**ترجمه**: او مونږ د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره محبت ساتو. په هغوی کې د چا په محبت کې هم افراط او تفریط نه کوو. د یو صحابي رضی الله عنه نه هم براءت نه کوو. مونږ د داسې انسان سره بغض ساتو. کوم چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره بغض ساتي. هغوی په بدی باندې یادوي او مونږ د خیر نه سېوا د هغوی ذکر نه کوو. هغوی سره محبت ساتل دین او احسان دی او هغوی سره بغض ساتل کفر. نفاق او سرکشي ده.

همدغه شان علامه طحاوي رحمه الله په عقیدة طحاویة کې فرمايي:

﴿ وإن العَشَرَةَ الَّذِينَ سَمَّاهم رسولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم، نشهدُ لهم بالجنة على ما شهد لهم رسولُ الله صلى الله عليه وسلم - وقولُه الحقُّ - وَهُمْ: أبوبكرٍ، وَعمرُ، وعثمانُ، وعليٌّ، وطلحةُ، والزبيرُ، و سعدٌ، وسعيدٌ، وعبدُالرحمنِ بنُ عوفٍ وأبُو عبيدةَ بنُ الجرَّاحِ وهو أمينُ هذهِ الأمةِ رَضِيَ اللهُ عنهم أجمعينَ، وَمَنْ أحسنَ القولَ فِي أَصْحَابِ رسولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم وأزواجِه وَ ذُرِّيَّاتِه فقد بَرِئَ مِنَ النِّفَاقِ ﴾[2].

**ترجمه**: او د کومو لسو صحابه کرامو رضی الله عنهم نومونه چې رسول الله ﷺ اخستلي او هغوی ته يې د جنت زيرى ورکړى، مونږ د هغوی لپاره د رسول الله ﷺ په شهادت باندې د جنت شهادت ورکوو. د رسول الله ﷺ ارشاد حق دى. د هغه عشره مبشره نومونه دا دي: ۱: حضرت ابو بکر. ۲: حضرت عمر. ۳: حضرت عثمان. ۴: حضرت علي. ۵: حضرت طلحه. ۶: حضرت زبیر. ۷: حضرت سعد. ۸: حضرت سعید. ۹: حضرت عبدالرحمٰن بن عوف. ۱۰: ابو عبیدة بن الجراح رضی الله تعالی عنهم. کوم چې ددې امت امین دی. کوم انسان چې د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو. ازواج مطهرات او د هغوی اولاد سره محبت ساتي هغه د نفاق نه بري دی

او د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دفاع باندې هم علماء کرامو ډېر کتابونه لیکلي دي، په دې اړه ددغو کتابونو مطالعه ډېره فایده منده ده.

---

[1]) عقیدة طحاویة: ص ۱٤/ ۱۵.

[2]) عقیدة طحاویة: ص ۱۵

۱: اصحاب ثلاثه ....... مولانا اکرام الدين دبير
۲: دفاع صحابه .... مولانا قاضي مظهر حسين چکوال
۳: عدالتِ حضرات صحابه کرام .....حضرت مولانا حافظ مهر محمد ميانوالي
٤: معيار صحابيت .... علامه خالد محمود صاحب
۵: اسلام مين صحابه کرام کی آئینی حيثيت .... علامه ضياء الرحمن فاروقي رحمه الله
٦: گستاخ صحابه کی شرعی سزا ..... علامه ضياء الرحمن فاروقي رحمه الله
۷: فضائل اصحاب ثلاثه ...... مفتي بشير احمد پسروری صاحب
۸: صحابه کرام پر شيعه کی اعتراضات او ان کي جوابات:- سيد مشتاق علی شاه صاحب.
۹: عظمت صحابه ... مولانا دوست محمَّد قريشي.

## په کلمه طيبه کي تحريف

د ﴿ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ﴾ په ځای ﴿ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ عَلِيٌّ وَلِيُّ اللّٰهِ وَصِيُّ رَسُوْلِ اللّٰه وخليفته بِلَا فَصْلٍ ﴾ ده. [1]

## پنځمه عقيده:

## متعه کول جائز دي

متعه کول نه صرف جائز. بلکې د اجر او ثواب باعث ده چا چې يو کرت هم متعه (زنا) وکړه هغه به جنت ته داخل شي. [2]

همدغه شان د متعې دومره ثواب دی څومره چې د لمانځه. روژې. زکوة. حج او خيرات کې هم نشته. [3]

همدغه شان د متعه کونکو لپاره د فرشتو دعا او د متعه نه کونکو لپاره تر قيامته پورې د فرشتو لعنت وي. [4]

---

[1]) اديان عالم اور فرقه هاى اسلام .... سيد علی حيدر نقوی.... وسيله انبياء تائب حسين کريانوی : ص ۱۷۹
[2]) تحفة العوام ... للمفتی سيد احمد علی صاحب قبله دام عليه
[3]) عمالة حسنة، ترجمة رسالة المتعة .... باقر مجلسي ... ص ۱۵
[4]) برهان المتعة .... الحاج ابو القاسم ص ۵۱

همدغه شان ایمان نه کامل کیږي. تر څو پورې چې متعه ونکړي [۱]
څوك چې څلور کرته متعه (زنا) وکړي. هغه (معاذ الله) د رسول الله ﷺ درجې ته رسیږي [۲]

**جواب** : متعه حرامه ده:

متعه ویل کیږي د یوې ښځې سره تر ټاکلي مودې پورې نکاح کول [۳]

د اهل سنت والجماعت په نزد متعه ناجائز او حرامه ده [۴]

د شیعه ګانو په نزد متعه صرف جائز نه بلکې د اجر او ثواب باعث ده

اهل سنت والجماعت د قرآن. حدیث. اجماع او قیاس ټولو نه ددې ناجائز کېدل بیانوي. مثلاً:

## د متعې حرمت د قرآن کریم څخه

په قرآن کریم کې راغلي دي: ﴿ وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴾ [۵]

**ترجمه** : او هغه څوك چې دخپلو شرمګاهونو حفاظت کوي. مګر د خپلو بیبیانو نه. یا هغه چې د دوی لاسونه یې مالکان دي (یعني وینځې) نو په هغوی باندې هیڅ ملامتیا نشته.

په قرآن کریم کې د شهوت پوره کولو لپاره دوه خایونه متعین دي

﴿ إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ ﴾ [۶]

**ترجمه** : مګر دا چې خپله ښځه او وینځه یې وي

---

[۱] برهان المتعة ... ص ٤٥
[۲] مطالب متعة .... ص ٥٢
[۳] تحرير الوسيلة ... ج ٢ ص ٢٩٠
[۴] هداية : ج ٢ ص ٢٩٢
[۵] سورة المؤمنون : آيت ٥، ٦
[۶] سورة معارج : ايت ٢٩، ٣٠

## د متعې حرمت په احاديثو کې

پدې سلسله کې متواتر احاديث دي. چې د هغې له امله انکار ترې کول جائز نه دي. مثلاً

١ ﴿ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ زَمَنَ خَيْبَرَ ﴾ [1]

**ترجمه** : د سيدنا علي رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ د ښځو د متعه کولو او د کورنيو خرو نه د خيبر په زمانه کې منع وفرمايله.

٢ ﴿ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ قَالَ: رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ أَوْطَاسٍ فِي مُتْعَةٍ ثَلاثًا ثُمَّ نَهَى عَنْهَا ﴾ [2]

**ترجمه** : د سيدنا سلمه بن اکوع رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ په غزوه اوطاس کې درې ورځې د متعې اجازت کړی وو. بيا يې ددېنه منع وفرمايل

٣ ﴿ عَنْ رَبِيعِ بْنِ سَبْرَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي قَدْ كُنْتُ أَذِنْتُ لَكُمْ فِي الاِسْتِمْتَاعِ مِنَ النِّسَاءِ وَإِنَّ اللَّهَ قَدْ حَرَّمَ ذَلِكَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴾

**ترجمه** : ربيع د خپل پلار محترم څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل اې خلکو ما تاسو ته د ښځو سره د متعې کولو اجازت درکړی وو: خو اوس الله پاک هغه تر قيامته پورې حرامه کړه.

## د متعې حرمت د اجماع امت په نظر کې

د متعې په حرمت باندې د امت اجماع هم ده. د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه واخله تر ننه پورې سبوا د روافضو څخه ټول امت دېته حرام وايي

[1] البخاري : ٤٢١٦، و مسلم : ١٤٠٧، والترمذي ١١٢١، والنسائي : جلد ٦ صفحه ١٢٥

[2] مسلم : ١٤٠٥، واحمد : جلد ٤ ص ٥٥، والدارقطني جلد ٣ ص ٢٥٨، والبيهقي : جلد ٧ صفحه ٢٠٤



# د قیاس له مخې د متعې حقیقت

**قیاس** : د قیاس تقاضا هم دا ده. چې متعه حرامه ده. ځکه چې دې سره به په نسب کې ګډوډي پیدا کیږي. د نسب په اړه په شریعت محمدي ﷺ کې ډیر اهتمام راغلی دی.

**سوال** : متعه کله حرامه شوې. د دې په اړه مختلف روایتونه راغلي. د ځینو څخه معلومیږي چې د خیبر په موقع متعه حرامه شوې. د ځینو څخه معلومیږي چې دا اعلان د فتح مکې په موقع شوی. د دواړو روایتونو څخه معلومیږي چې د غزوه اوطاس په موقع باندې متعه حرامه شوې ده او په ځینو روایتونو کې غزوه تبوك هم راغلې ده.

**جواب ۱** : د متعې د حرمت اعلان بار بار راغلی دی. چا چې په کومه غزوه باندې د متعې د حرمت حکم واوریدی، هغه هم د هغه غزوې طرفته دغه حکم منسوب کړی.[١]

**جواب ۲** : د خیبر په ابتدائي حالت کې متعه حرامه شوې وه. بیا د فتح مکې په موقع د محدود وخت لپاره اجازه ورکول شوه، بیا د همېش آن تر قیامته پورې متعه حرامه شوه.[٢]

# شپږمه عقیده: د رجعت عقیده

ددې عقیدې مطلب دا چې په رجعت باندې ایمان راوړل هم واجب دي. تر دې چې کله امام راووځي. هغه وخت به مؤمنان. کافران او منافقین ټول ژوندي وي. هر یو به خپل داد او انصاف ته رسیږي او ظالم ته به سزا او تعزیر رسیږي.[٣]

---

١) شرح مسلم للنووی : جلد ١ صفحه ٤٥٠

٢) حاشیه ترمذی... د متعې په اړه د زیات تحقیق لپاره وګوری : (١) فتح الملهم جلد ٣ ص ٤٤٤، (٢) التعلیق الصبیح ج ٤ ص ٢٢، (٣) عمدة القاري ج ٤ ص٤٠٤، (٤) بذل المجهود : ج ٣ ص ١٦، (٥) رساله تحقیق متعه مولانا مفتی بشیر احمد پسروری، (٦)حرمت متعه ... قاضی ثناء الله پاني پتي وغیره.

٣) تحفة العوام، وحق الیقین : ص ١٤٠، ١٤٥

# په رجعت باندې ایمان راوړل واجب دي

﴿ فیجب الایمان باصل الرجعة اجمالا ﴾ د اخبار متواتره او ډېرو شیعه متقدمینو او متاخرینو علماؤ د کلام څخه تاته معلومه شوه چې اصل رجعت حق دی او ددې منکر د مؤمنانو د ډلې څخه خارج دی [1]

تر دې چې کله امام ظاهر شي. هغه وخت به مؤمنان. کافران او منافقین ټول ژوندي وي او هر یو به خپل داد او انصاف نه رسیږي او ظالم ته به سزا او تعزیر رسیږي

مطلب دا چې کله هغه غائب امام مهدي د غار نه راشي: نو هغه وخت به رسول الله ﷺ. ام المومنین سیده فاطمة الزهراء. حسن او حسین رضي الله عنهما. ټول امامان او د هغوی نه علاوه ټول خواص مؤمنان ژوندي کیږي. ټول به د امام مهدي په لاس بیعت کوي. بیا به امام ابوبکر او عمر راژوندي کوي او د شروع نه واخله تر آخره پورې بې چې څومره ګناهونه کړي وي، د هغو اعمالو سزا به ورکول کیږي. [2]

سیده عائشه رضي الله عنها به راژوندې کوي او په هغې باندې به حد جاري کوي. [3]

په قرآن کریم کې راځي:

﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّن يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴾ [4]

دا واقعه د رجعت په اړه ده. [5]

د امام د ظهور په زمانه کې د قیامت نه وړاندې راژوندي کېدلو ته رجعت وایي دا عقیده د امامیه مذهب د ضروریاتو څخه ګڼل کیږي. [6]

---

[1]) احسن الفوائد في شرح العقائد ص : ٣٢٢

[2]) بصائر الدرجات ص ٨٠، ٨١، بحار الانوار جلد ١٣ ص ٦٢٥، حق الیقین ص ٣٦٢، انوار نعمانیه جلد ٢ ص ٨٦، فصل الخطاب : ص ٨٥

[3]) حق الیقین : ص ٣٤٧، حیاة القلوب : ج ٢ ص ٦١١، بحار الانوار جلد ١٣ ص ٥٧٦

[4]) سورة النمل : آیت ٨٣

[5]) صافي : ج ٢ ص ٢٣٧، ترجمه مقبول: ص ٧٦٤، قمي : ج ١ ص ١٣١، حق الیقین ص : ٢٣٦

[6]) چوده ستاري : ص ٦٠

د امام جعفر صادق رحمه الله څخه روایت دی چې هغه انسان زمونږ څخه نه دی کوم چې زمونږ په رجعت باندې ایمان نه لري [1]

**جواب**: خو د اهل سنت والجماعت عقیده دا ده چې د قرآن او ارشادات نبوي ﷺ نه معلومیږي چې د مرګ نه وروسته که مؤمن وی او که کافر وي. په دنیا کې به څوک هم نه شي ژوندي کولی . صرف په قیامت کې به بې الله پاك ژوندي کوي او هغوی ته به جزا او سزا ورکوي.

## د رجعت د عقیدې په کفر کیدو حوالې

١ ﴿ یجب اکفار الروافض ... فی قولهم یرجع الاموات الی الدنیا ولقولهم فی خروج امام باطن هؤلاء﴾ [2]

## [د اهل روافض فرقې په اړه د مفتیانو رائې!]

## د سیدنا علي رضی الله عنه فتوی !

که زه خپل شیعه ګان وګورم: نو دوی ټول په ژبې سره دعوه کونکي او خبرې جوړونکي به راوځي. که زه د دوی امتحان واخلم: نو دوی ټول به مرتد راوځي [3]

د امام مالك رحمه الله فتوی

﴿ لیغیظ بهم الکفار ﴾ [4] د لاندې فرمایي چې د روافضو د کفر قرآني دلیل دا دی چې دوی صحابه کرامو رضی الله عنهم ته په کتو سره سوځي. پدې وجه دوی کافران دي [5]

د قاضي عیاض رحمه الله فتوی:

---

[1]) من لا یحضره الفقیه ج ٣ ص ٢٩١، حق الیقین ص ٣٣٦

[2]) فتاوی تتارخانیة ج ٥ ص ٣٦٥، طبعة قدیمي کتب خانه، المتنأنة فی مرمة الخزانة : ص ٦٠٥، الطریقة المحمدیة، فتاوی بزازیة.

[3]) روضة کلیني : ١٠٧، بحواله احسن الفتاوی : جلد ١ ص ٨٤

[4]) سورة الفتح : آیت ٢٩

[5]) الاعتصام : ج ٢ ص ١٢٦١، روح المعانی پاره ٢٦

په کتاب الشفاء کې قاضي عیاض رحمه الله فرمايي کوم سړی چې داسې خبره کوي چې په هغې باندې امت ته د ګمراهی نسبت کیږي او د صحابه کرامو رضي الله عنهم تکفیر ترې لازمیږي. مونږ هغه ته په قطعیت سره کافر وایو. همدغه شان څوك چې په قرآن کریم کې د بدلون یا زیاتوالي اقرار کوي هغه ته قطعي کافر وایو [1].

**د شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله فتوی**

په غنیة الطالبین کې شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله فرمايي چې د شیعه ګانو د ټولو ډلو پدې اتفاق دی. چې د امام تعین د الله پاك په واضح حکم سره کیږي. هغه معصوم وي. سیدنا علي رضي الله عنه د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه افضل دی. د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه وروسته سیدنا علي رضي الله عنه د امام منلو د وجې نه د څو کسانو نه علاوه ټول مرتد شوي [2].

## د امام فخر الدین رازي رحمه الله فتوی:

په تفسیر کبیر کې فرمايي: د رافضیانو له طرفه د قرآن کریم د تحریف دعوه د اسلام باطلونکې عقیده ده [3].

## د علامه کمال الدین بن عصام رحمه الله فتوی !

"فتح القدیر" کې علامه کمال الدین فرمايي: چې که رافضي د ابوبکر صدیق او عمر فاروق رضي الله عنهما د خلافت منکر دي: نو هغوی کافر دي [4].

## د شیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله فتوی:

په الصارم المسلول کې فرمايي. چې که څوك د صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان کې ګستاخي کول جائز ګڼي: نو هغوی کافران دي. د صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان کې ګستاخي کونکی د وژلو مستحق دی. څوك چې د صدیق اکبر په شان کې کنځلې کوي: نو هغه

---

[1]) کتاب الشفاء : جلد ۲ ص ۲۸٦، ۸۲۱ وغیره
[2]) غنیة الطالبین : ص ۱۵٦ تر ۱٦۲ پورې.
[3]) تفسیر کبیر : ۱۱۸
[4]) فتح القدیر باب الامامت ص ۸

کافر دی. د رافضي ذبیحه هم حرامه ده. حال دا چې د اهل کتاب ذبیحه حلال ده. خو د روافضو ذبیحه پدې وجه ناجائزه چې د شرعي حکم په لحاظ سره دوی مرتد دي [۱]

## د صاحب فتاوی بزازیه فتوی:

د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما د خلافت منکرین کافران دي. عثمان، علي، طلحه، زبیر او عائشه رضی الله عنهم ته کافر ویونکي ته کافر ویل واجب دي [۲]

## د ملا علي قاري فتوی:

په شرح فقه اکبر کې فرمایي: کوم سړی چې د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما د خلافت نه انکار وکړي: نو هغه کافر دی، ځکه چې ددې دواړو په خلافت کې خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع ده [۳]

## د مجدد الف ثاني فتوی:

په مختلفو مکتوباتو کې روافضو ته کافر ویلي. یوه مستقله رساله یې په هغوی باندې لیکلې ده، چې د هغې نوم یې "رد روافض" ایښی دی. په هغې کې لیکي پدیکې شك نشته چې ابوبکر او عمر رضی الله عنهما په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې تر ټولو غوره دي. دا خبره ظاهره ده چې هغوی ته کافر ویل. د هغوی کمي بیانول د کفر زندیقیت او ګمراهي سبب دی [۴]

## د فتاوی عالمګیري د لیکونکو فتوی:

روافض که د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما په شان کې ګستاخي کوي. په هغوی لعنت کوي: نو کافران دي. روافض د اسلام د دایرې څخه وتلي دي. کافران دي او د دوی هغه حکمونه دي. کوم حکم چې په شریعت کې د مرتدینو دی [۵]

---

[۱] الصارم المسلول ص: ٥٧٥

[۲] فتاوی بزازیه: جلد ۳ ص ۳۱۸

[۳] شرح فقه اکبر: ص ۱۹۸

[۴] رد روافض: ص ۳۱

[۵] فتاوی عالمګیري: ج ۲ ص ۲٦۸

## د شاه ولی الله محدث دهلوي رحمة الله علیه فتوی:

په خپل کتاب مسوی شرح موطاء امام محمد کې لیکي چې که څوك ځان ته مسلمان وایي؛ خو د ځینو داسې دیني حقیقتونو څخه چې د هغې ثبوت د رسول الله ﷺ نه قطعي دی، داسې تشریح او تأویل وکړي. چې د صحابه کرامو، تابعینو او اجماع امت خلاف وي؛ نو هغه ته زندیق ویل کیږي او هر هغه څوک هم زندیق دی څوک چې وایي: ابوبکر او عمر رضي الله عنهما د جنتیانو څخه نه دي. ددې مطلب دا دی چې د رسول الله ﷺ نه وروسته به چا ته هم نبي نشي ویل کیدی: خو د نبوت چې کوم حقیقت دی. یعني یو انسان د الله پاك له طرفه مبعوث کیدل، د هغه د اطاعت فرض کیدل او د هغه معصوم کیدل، دا ټول زمونږ امامانو ته حاصل دي؛ نو داسې عقیده ساتونکي خلک زندیقان دي او د جمهورو متأخرینو احنافو او شوافعو رحمهم الله پدې اتفاق دی چې دا واجب القتل دي. (١)

## د صاحب در مختار فتوی:

په ابوبکر او عمر رضي الله عنهما کې یو ته بدې ردې ویونکی یا په هغوی کې په چا باندې لعن طعن کونکی کافر دی او د هغه توبه به نه قبلیږي. (٢)

## د علامه شامي رحمة الله علیه فتوی:

څوك چې په سیده عائشه رضي الله عنها باندې تهمت لګوي یا د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د صحابیت څخه انکار کوي؛ نو د هغه په کفر کې هیڅ شک نشته. (٣)

## د مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمة الله علیه فتوی:

مولانا رشید احمد ګنګوهي په هدایت الشیعة کې فرمایي: چې شیعه ګان بې ادبه دي، که هغوی د توحید کلمه په ژبه وایي؛ نو ددې په وجه دوی ته مسلمان نشي ویل

---

(١) مسوی شرح موطاء محمد
(٢) در مختار
(٣) شامی: ج ٢ ص ٢٩٤

کېدی. (١)

## د مولانا انورشاه کشميري رحمه الله فتوی:

پديکې د چا هم اختلاف نشته چې په ابوبکر صديق، عمر فاروق، عثمان غني رضي الله عنهم کې د چا د خلافت څخه منکر کافر دی. (٢)

## د مولانا احمد رضا خان بريلوي فتوی:

په خپل کتاب رد الرافضة کې ډير په تفصيل سره ليکي: چې د هغې مختصر بيان دا دی: څوك چې حضرت ابو بکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما اگر که د هغوی نه د يو په شان کې گستاخي کوي، اگر چې صرف دومره وي چې هغوی امام او خليفه نه مني، د معتبرو کتابونو او د حنفي فقهې د تصريحاتو او د عامو ائمه ترجيح او فتوی په تصحيحات کې دوی مطلقاً کافران دي. (٣)

## د شيعه فرقې په اړه د زيات تحقيق لپاره د لاندې ذکر شويو کتابونو څخه فايده اخستلای شی

د شيعه فرقې په اړه بېشماره کتابونه ليکل شوي دي. چې د ځينو کتابونو نومونه يې دلته ذکر کوو.

- .... تحفه اثنا عشريه .... محدث الهند مولانا عبدالعزيز دهلوي
- .... شيعه سني اختلافات اور صراط مستقيم .... مولانا محمد يوسف لدهيانوی رحمه الله
- .... تاريخی دستاويز .... ابو ريحان ضياء الرحمن فاروقي رحمه الله
- .... الشيعة والقرآن .... علامه احسان الهی ظهير رحمه الله
- .... الشيعة والتشيع .... علامه احسان الهی ظهير رحمه الله
- .... الشيعة واهل السنة .... علامه احسان الهی ظهير رحمه الله
- .... هدية الشيعة .... مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله تعالی

---

[١]) هداية الشيعة : ص ١٤

[٢]) اکفار الملحدين : ٥١

[٣]) رد الرافضة

- .... ارشاد الشيعة .... مولانا محمد سرفراز خان صفدر صاحب رحمه الله
- ..... حقیقت شیعه .... مولانا مهر علی
- .... تاریخ مذهب شیعه .... مولانا عبدالشکور مرزا پوری
- .... ایرانی انقلاب، امام خمینی اور شیعیت ....، مولانا محمد منظور نعمانی رحمه الله
- .... تحفه امامیه .... مولانا حافظ مهر محمد میانوالی
- ..... عقائد شیعه .... مولانا حافظ مهر محمد میانوالی
- .... شیعه کیوں مسلمان نهیں؟.... مولانا قاضي مظهر حسین چکوال رحمه الله
- .... فقه جعفریه اور مسلمان .... مولانا حافظ مهر محمد میانوالی
- .... شیعه کی اسلام سے بغاوت .... قاری اظهر ندیم
- .... شیعه مذهب اکابرین امت کی نظر میں .... نامعلوم مرتب
- .... مذهب شیعه .... مولانا الله یار چکڑیالوی
- .... قاتلان حسین کی خانه تلاشی .... مولانا عبد الشکور فاروقي لکهنوی رحمه الله
- .... ارتداد شیعة .... مولانا عبد الشکور فاروقي لکهنوي رحمه الله
- .... عظیم فتنه .... مولانا قاضي مظهر حسین چکوال رحمه الله





# [فرقه اسماعيليه]

## د فرقه اسماعيليه تاريخ

فرقه اسماعيليه د شيعه ګانو يوه فرقه ده.
کله چې د اسلام شعاوې په هر طرف په خپريدو شروع شو؛ نو ځينو خلکو د منافقت په طور اسلام قبول کړ، ددې لپاره چې په مسلمانانو کې ننوځي او هغوی ته نقصان ورسوي، په هغوی کې يو يهودي عالم عبدالله بن سبا وو. هغه د سيدنا علي رضي الله عنه سره په غير معمولي عقيدت او محبت کې د غُلُوْ اظهار وکړ او د هغوی د ما فوق البشر هستی ثابتولو لپاره يې کوششونه وکړه. سيدنا علي رضي الله عنه په شروع کې هغوی پوه کړ او په نه منلو يې د مدينې منورې نه وويستل او مدائن ته يې جلاوطن کړه، دې سړي د شيعيت بنياد کېښود، چې د هغې نه وروسته اسماعيليه فرقه په وجود کې راغله، په شروع کې دا دواړه فرقې د امام جعفر رحمه الله پورې امامانو باندې متفق وو: خو بيا په هغوی کې اختلاف پيدا شو، چې امام جعفر صادق خپل ځوی اسماعيل رحمه الله د خپل ديني وارث په حيث جوړ کړ؛ خو د اسماعيل په ۱۳۲ھ کې د امام جعفر صادق رحمه الله په ژوند کې وفات شو، د هغه نه وروسته امام جعفر صادق خپل دويم ځوی موسی کاظم خپل وارث جوړ کړ. کله چې امام جعفر صادق رحمه الله وفات شو؛ نو اوس په اهل تشيع کې اختلاف پيدا شو. يوې ډلې وويل: چې مونږ خو به اووم امام اسماعيل ځوی محمد منو؛ نو دا خلک د اسماعيل بن جعفر رحمه الله د نسبت د وجې نه اسماعيلي بلل کيږي. بيا د وروسته خلکو لپاره د امامت سلسله د محمد بن اسماعيل په اولاد کې جاري شوه، تر ننه پورې هم دا سلسله شروع ده، اوس يو کم پنځوسم امام په دنيا کې د کريم آغا خان په نوم سره موجود دي.

## د اسماعيليا نوائمه ووته يو نظر

| ۱ | سيدنا علي رضي الله عنه | ۲ | سيدنا حسين رضي الله عنه |
|---|---|---|---|
| ۳ | حضرت زين العابدين رحمه الله | ٤ | حضرت محمّد باقر |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٥ | حضرت جعفر صادق | ٦ | اسماعیل |
| ٧ | محمد بن اسماعیل | ٨ | وفی احمد |
| ٩ | تقی محمد | ١٠ | رضی الدین عبداللہ |
| ١١ | محمد المهدی | ١٢ | القائم |
| ١٣ | المنصور | ١٤ | المضر |
| ١٥ | العزیز | ١٦ | الحاکم بامر اللہ |
| ١٧ | الطاهر | ١٨ | المستنصر باللہ |
| ١٩ | نزار | ٢٠ | هادی |
| ٢١ | مهتدی | ٢٢ | قاهر |
| ٢٣ | علی ذکر الاسلام | ٢٤ | جلال الدین حسن |
| ٢٥ | علاء الدین محمد | ٢٦ | رکن الدین خیرشاه |
| ٢٧ | شمس الدین محمد | ٢٨ | قاسم شاه |
| ٢٩ | اسلام شاه | ٣٠ | محمد بن اسلام شاه |
| ٣١ | مستنصر باللہ | ٣٢ | عبد السلام |
| ٣٣ | فریب مرزا | ٣٤ | ابو ذر علی |
| ٣٥ | مراد مرزا | ٣٦ | ذوالفقار علی |
| ٣٧ | نور الدین علی | ٣٨ | خلیل اللہ علی |
| ٣٩ | نزار | ٤٠ | سید علی |
| ٤١ | حسن علی | ٤٢ | قاسم علی |
| ٤٣ | ابو الحسن ولی | ٤٤ | خلیل اللہ علی |
| ٤٥ | حسن علی | ٤٦ | علی شاه |
| ٤٧ | سلطان محمد شاه | ٤٨ | علی سلمان خان |
| ٤٩ | کریم الحسینی | ٥٠ | کریم آغا خان |

# آغا خاني فرقه کله وجود ته راغله؟

حضرت جعفر صادق رحمه الله خپل ځوی محمد اسماعیل خپل نائب جوړ کړ او دا ۱۳۳ هجري وو، د هغه وخت نه دا فرقه وجود ته راغلې



# د آغا خان شاه کریم الحسیني د ژوند حالات

د آغا خان پیدایش په ۱۳ دسمبر ۱۹۳۶ء کې د ځینو په نزد په ممبی کې او د ځینو په نزد په فارس کې شوی دی.

**جانشین**: ۱۹۵۷ء کې چې کله د دریم آغا خان امام سلطان محمّد شاه وفات وشو: نو اوس اختلاف پیدا شو چې اوس به دده جانشین څوك وي. په خلکو کې دوه ډلي دي چې د هغه د ځوی علی سلطان خان چې ده ته شهزاده علي خان هم ویل کیږي. هغوی ۴۹ (یو کم پنځوسم) امام مني او دویمه طبقه یې پکې داسې دي چې د هغوی په نزد شاه کریم الحسیني ۴۹ (یو کم پنځوسم) امام مني او ځیني یې وایي چې دریم آغا خان د خپل مرگ په وخت وصیت کړی وو. چې زما جانشین به شاه کریم الحسیني وي. په دیکې د شیعه مسلم اسماعیلي کمیونتي فایده ده.

**د آغا خان د ویلو وجه**: ددې وجه دا ښودل شوي. کله چې د دوی پنځه څلویښتم امام خلیل الله (متوفی ۱۲۳۳) د یو سازش په ډول ووژل شو. چې په هغې د اسماعیلیانو د خوشحالولو لپاره د خلیل الله د دوه کالو ماشوم چې د هغه نوم حسن علي وو. هغه ته د آغا خان لقب ورکول شو. چې پدې سره هغه آقا خان محلاتي بلل شروع شو او ایراني بادشاه هغه سره د خپلې لور واده هم وکړ: خو د بادشاه فتح علي د وفات نه وروسته حسن علي شاه آغا خان محلاتي ته په ایران کې ډیر مشکلات راپیښ شو. پدې وجه هغوی ایران پرېښو او د هندوستان په ممبی کې یې استوگنه غوره کړه. بیا چې کله دلته راغلو؛ نو د آقا خان نه د آغا خان په نوم مشهوره شو (۱)

---

(۱) آغا خانیت علماء امت کی نظر میں .... ص ۱۰

**تعلیم** : د تعلیم په دوران کې یې جانشیني په وجود کې راغله. د امامت اهمه ذمه داري ورته د طالب علمی په زمانه کې ملاو شوه، پدې وجه په تعلیم باندې یې ډیر اثر پریوت. تعلیم یې موقوف شو؛ خو په ۱۹۵۸ء کې هغوی دوباره تعلیم شروع کړ او د B-Aآنرز په دوران کې پرنس کریم آغا خان تحقیقي مقالې هم ولیکلې.

**واده** : هغوی په اکتوبر ۱۹۶۹ء کې د سلیمه نومې جینی (چې د هغې مخکې نوم ماډل سیلي وو کومه چې اول د مذهب په لحاظ سره عیسایي وه) هغې سره یې واده وکړ. چې د هغې نه یې درې بچې پیدا شو. ۱: پرنس زهره. ۲: پرنس رحیم. ۳: او پرنس حسین، بیا یې پنځویشت کاله وروسته هغې ته طلاق ورکړ. پرنس آغا خان سلیمه ته ۵۰ ملین پونډ روپی ورکړې چې په هغې کې ۲۰ ملین پونډ نقدې او دیرش ملین پونډ کالي هم شامل وو. د اخباراتو په قول په یورپ کې د چا د طلاق په صورت کې هم دومره لوی مال یوې ښځې ته نه دی ملاو شوی.[1]

**د دنیا مالدار ترین سړی** : آغا خان دې وخت کې د دنیا په مالدارو خلکو کې یو دی. آغا خان کریم پرنس انګریزي او اټالوی ژبه په روانی سره وایي: خو په عربی او اردو ژبو کې یې روانګي نشته؛ خو د خپلو خیالاتو اظهار پرې کولی شي.

**مشغولتیا**: د هغوی په مشغولتیا کې اسونه زغلول او اسکیوټنګ، فټ بال. ټینس او کشتي شامل ده، په اسکیوټنګ کې هغوی د ایران د طرف نه نمایندګی کولو سره اولمپك چیمپین جوړ شو.

**القابات** : د انګلستان ملکه الزبتهـ هغه ته د هزبائي نس لقب ورکړ، مخکې شاه ایران رضا پهلوي ورته د هز رائل هائي نس لقب ورکړ.

خلورم پرنس کریم آغا خان اوس تقریبا د اویا کالو په عمر کې دی او ژوندی دی.

---

[1]) روزنامه جنګ کراچی ۹ اپریل ۱۹۹۵

# د آغا خاني فرقې (اسماعيلي) د نظرياتو او عقائدو کيسه هم د هغوی په ژبه

﴿ مولاناشاه کريم الحسيني الامام الحاضر الموجود ارحمنا واغفرلنا ﴾

(دی، ايچ، ار، ايچ پرنس آغا خان فيډرل کونسل برائ پاکستان)

ريلجيس (مذهبي کميټي) نيو جماعت خانه. بريټيو خانه. بريټيو روډ. کراچی ۳

## آغا خاني مذهب د عباداتو پيغام

حقيقي مؤمنانو ته يا علي مدد!

بيان دا دی چې مونږ خلک آغا خاني يو. زمونږ تعلق د اسماعيلي تنظيم سره دی. چې د هغوی ذمه داري خلکو ته مذهبي معلومات ورکول دي. مونږ ته چې په جماعت خانو کې د مکهي صاحب په سرپرستی کې کوم تعليم راکولی شي. د هغې په رڼا کې مونږ آغا خاني، بندګي، عبادت، کوم چې په جماعت خانو کې کوو. د هغې مکمل وضاحت موږ په تفصيل سره ليکو!

۱: زمونږ سلام دی، يا علي مدد او زمونږ د سلام جواب دی. مولا علي مدد. (۱)

۲: زمونږ کلمه ده: اشهدان لااله الاالله واشهدانّ محمداً رسول الله واشهدان علي الله (۲)

۳: مونږ ته د اودس ضرورت نشته. ځکه چې زمونږ زړونه په اوداسه سره پاک وي.

۴: د لمونځ په ځای په هر آغا خاني باندې درې وخته دعا فرض ده. چې جماعت خانې ته په راتلو سره يې ادايګي کيږي. د پنځه وخته فرض لمونځ په بدل کې په آغا خاني باندې درې وخته دعا فرض ده. چې زمونږ په دعا کې د قيام او رکوع ضرورت هم نشته. زمونږ لپاره قبلې ته د مخ کولو ضرروت نشته. مونږ هر طرفته مخ کولو سره خپله دعا کولی شو. چې د هغه لپاره په دعا کې د حاضر امام تصور کول ضروري دي. (مونږ د دعا کتاب پدې پيغام کې ورسره در ليږو چې تاسو يې خپله هم ولولی او

---

(۱) سبق نمبر ۲ صفحه ۷ سکهشن مالا درسی کتاب برائے مذهبی نائب اسکولز

(۲) سکهشن مالا، مطبوعه اسماعيليه ايسوسی ايشن برائے هند بمبئ

نورو روحاني ورونو ته يې هم ورکړي).

۵: روژه خو په اصل کې د سترګې، غوږ او ژبې وي، په خوراك څښناك سره روژه نه ماتيږي، زمونږ روژه د ورځې يوه حصه وي هغه هم چې سهار لس بجې ماتولی شي. هغه هم که مومن يې ساتل غواړي، کنه نو روژه فرض نه ده: خو په ټول کال کې چې د کومې مياشتې سپوږمی هم د جمعې د ورځې وي په هغه ورځ مونږ روژه نيسو

۶: د زکوة په ځای مونږ په ګټه کې په روپی باندې دوه انې فرض ګڼو. په جماعت خانې کې يې بيا ورکوو

۷: حج زمونږ د حاضر امام ديدار دی (هغه په دې وجه چې په ځمکه باندې د خدای عکس صرف حاضر امام دی).

۸: مونږ سره خو د قرآن ويونکی يعنې حاضر امام موجود دی. مسلمانانو سره خو خالي کتاب دی. (۱)

۹: زمونږ د سهار او ماښام ګناهونه د مکهي صاحب څاڅکي اچولو سره معاف کوي. په مونږ کې يو سړی روزانه جماعت خانې ته نشي تللی: نو د جمعې په ورځ د ټولې مياشتې ګناهونه د مياشتې ليدو په شپه د پيسو په ورکولو سره څاڅکي اچولو او آب شفاء څښلو سره معاف کولی شي، که څوك د جمعې په ورځ هم جماعت خانې ته نشي تلی: نو د ټولې مياشتې ګناهونه د مياشتې په اوله شپه پيسې ورکولو. څاڅکي اچولو او آب شفا څښلو سره معاف کولی شي (۲)

۱۰: زمونږ د بندګی يعنې عبادت طريقه دا ده چې:

حاضر امام مونږ ته يو ذکر يعنې اسم اعظم راکړي. چې د هغې په عوض کې مونږ پنځه اويا روپی هغه ته ادا کوو. چې د هغې بندګي مونږ د شپې په آخري برخه کې کوو. د پنځو کالو د عبادت معاف کولو مونږ پنځه سوه روپی او د دولس کالو د بندګی معاف کولو لپاره مونږ دولس سوه روپی او لائف ممبر (پوره ژوند) د بندګی معاف کولو لپاره پنځه زره روپی مونږ په جماعت خانو کې ورکوو.

---

(۱) فرسان نمبر ۵۳، کلام امام حسين، حصه ۲ صفحه ۲۹۳

(۲) سکهشن مالا درجه سوم، سبق نمبر ۶ ص ۲۱، ۲۲، مطبوعه اسماعيليه ايسوسی ايشن برائے هند بمبئ

**نوراني** : د حاضر امام د نور د حاصلولو لپاره اووۀ زره روپی مونږ په جماعت خانو کې ورکوو چې په هغې سره مونږ ته د حاضر امام نور حاصلیږي.

**فدائین** : د قیامت په ورځ په حاضر امام باندې د خپل ځان د بخښلو لپاره (یعنې د حاضر امام د نور سره د خپل نور د یو ځای کولو خرچه ۲۵ زره روپی. مونږ په جماعت خانو کې ورکوو.

**نانډي**: خیرات ته وایي، زمونږ په کورونو کې پخېدونکي بهترین خوراکونه. غوره جوړې او کالي مونږ په جماعت خانو کې خیرات (نانډي) ورکوو.

جماعت خانو والا هغه نانډي نیلام کړي. د هغې روپی بیا په جماعت خانو کې جمع کوي.

۱۱: د امامت درجه د نبوت نه لویه ده.

۱۲: د هغوی امام په خدای کې (نعوذ بالله) حلول کړی دی، پدې وجه امام په حقیقت کې خدای دی، هم هغه ته سجده کوي. [1]

۱۳: د قیاس او اجماع هیڅ حقیقت نشته. ځکه چې هر وخت امام یا نائب امام موجود وي، څه چې هغه فرمایي بس هم هغه نص قطعي دی. [2]

## دآغا خاني فرقې د نظریو او عقیدو جوابونه د قرآن او حدیث څخه

### لومړی عقیده:

سلام یا علي مدد او د سلام جواب مولا علي مدد دی.

بلکې هر وخت کیناستلو او پاڅیدلو پر مهال د کور نه د وتلو او کور ته د راتلو پر مهال او د ملاقات په وخت. غرض دا چې هر وخت یا علي مدد ویل پکار دي.

[1] سبق نمبر ۱ ص ٤، سکهشن مالا نمبر ۱ منظور شده درسی کتاب برائے ریلجنس، نائٹ اسکولز

[2] کلام الهی اور فرمان امام ص ۱۱ بحواله آغا خانیت کیا ہے ؟

**جواب** : د مسلمانانو په نزد د سلام الفاظ دا دي چې سلام کونکی ﴿ السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ﴾ او جواب ورکونکی ﴿ وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته ﴾ ووایي. هم دا خبره د قرآن او حدیث څخه معلومیږي.

## دویمه عقیده

زمونږ کلمه ده ﴿ اشهدان لااله الاالله واشهدان محمد رسول الله واشهدان علی الله ﴾

**جواب** : اهل سنت والجماعت فرمایي: چې د مسلمان لپاره لازم دي چې د کلمې الفاظ صحیح ووایي او د کلمې الفاظ دا دي : ﴿ لااله الاالله محمّدٌ رسولُ اللهِ ﴾ ددېنه علاوه بله کلمه ویونکی د اهل سنت والجماعت په نزد مسلمان نه دی.[1]

## دریمه عقیده

د اودس مونږ ته ضرورت نشته، ځکه چې زمونږ د زړه اودس وي. په همدې وجه به اول په جماعت خانو کې د اودس ځایونه جوړ وو: خو اوس دا نظریه بدله شوې چې د زړه اودس وي، پدې وجه اوس په جماعت خانه کې د اودس ځایونه نه جوړوي

همدغه شان غسل هم د هغوی په نزد نشته، که د جنابت غسل وي یا غسل د احتلام یا د ښځو د ناروغی څخه د فارغېدوو روسته وي. د ماشوم د پیدایش نه وروسته وي. یا د کور والي کولو نه وروسته په یو حالت کې هم غسل ضروري نه دی. سهار وختي جماعت خانې ته حاضري لازمي وي.

**جواب** : د مسلمانانو په نزد پدې ټولو حالتونو کې غسل کول فرض دي.

## څلورمه عقیده

د پنځه وخته لمونځ په ځای درې وخته دعا کومه چې په جماعت خانه کې ضرور ادا کول پکار دي، هم دومره کافي ده، چې په هغې کې قیام، رکوع، قبلې ته د مخ کولو ضرورت هم نشته.

---

[1]) رد المحتار : جلد ۱ ص ۳۸۳ و ٤٤۱، و فتح باب العناية : جلد ۱ ص ۳۱۰

د آغا خان د عبادت کولو نوم دعا ده. پدې وجه ویل کیږي. چې د دین لومړی بنیاد دا دی چې د همیشه لپاره جماعت خانې ته حاضریدل او هلته دعا کول. [1]

دغه دعا د ختمولو نه مخکې دا دعا لوستل کیږي:

﴿ مولاناشاه کریم الحسینی الامام الحاضر الموجود ارحمنا واغفرلنا ﴾ [2]

دا معامله د آغا خان تصویر ته مخامخ کیږي. د دعا نه وروسته اسماعیلي کوم چې ښي او چپ طرفته ناست خلک وي. که نر وي او که ښځې مصافحه کوي. په ژبه باندې شاه جو دیدار وایي، معنی یې دا چې تاسو ته دې د حاضر امام اغا خان دیدار نصیب شي. [3]

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد د لمانځه یو خاص کیفیت دی. چې په هغې کې قیام. رکوع، سجده، قعده هر څه وي. ددې لمانځه نه انکار بالاتفاق کفر دی.

## پنځمه عقیده

روژه د سترګو. غوږونو او ژبې وي، په خوراك څښاك سره روژه نه ماتیږي. آغا خاني خلک وایي چې په لوږې سره انسان ته هیڅ نه ملاویږي. ثواب خو جماعت خانې ته تلو سره ملاویږي. [4]

**جواب** : او د اهل سنت والجماعت په نزد د روژې وخت د سبا سهاز نه واخله د لمر تر پریوتلو پورې وي. دې دوران کې د خوراك څښاك او ښځې سره د ملاقات نه د خپل ځان بندولو نوم روژه ده.هم دا حکم په قرآن اوحدیث کې دی اودروژې نه انکار کفر دی.

## شپږمه عقیده

د زکوة په ځای د ګټې نه په روپۍ کې دوه آنې فرض ګڼلو سره جماعت خانې کې جمع کول. په دې باندې دا وعده ده چې که همدا لسمه برخه مز علی ته ورکړی: نو ستاسو

---

[1]) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ٢٦٠

[2]) آغا خان مسلمان کیسے؟ ص ٢٦٠

[3]) حقیقت اسماعیلیه یا اسماعیل طریقت ص ٥٩

[4]) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ٢٦٨

په آل، اولاد او مال کې به برکت وي او هغه حسین علي به ستاسو ایمان سلامته ساتي، ځکه چې زمونږ دا مز علي د پوره کائناتو مطلق خالق دی. (۱)

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد زکوة په سلو کې دوه نیمې روپۍ فرض دی او ددې لپاره نصاب هم مقرر دی.

## اوومه عقیده

حج د امام حاضر د دیدار نوم دی، پدې دیدار کې د هغوی عقیده دا وي، چا ته چې د حاضر امام دیدار نصیب شي؛ نو د هغه مخکې ټول ګناهونه معاف کیږي او د حج ثواب ورته ملاویږي او دېته مبارك دیدار ویل کیږي. (۲)

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد حج په اسلامي رکنونو کې یو اهم رکن دی او دا په هر هغه سړي فرض دی چې په هغه کې د بیت الله استطاعت وي.

مولانا یوسف لدهیانوي رحمه الله فرمايي: چې آغا خاني، د پنځه واړه ارکانو اسلام څخه منکر دي؛ نو د دوی د اسلام او مسلمانانو سره څه تعلق دی؟ او دا د مسلمانانو یوه ډله ځنګه منل پکار دي؟

## اتمه عقیده

مونږ سره خو خبرې کونکی قرآن دی، مسلمانانو سره خالي کتاب دی، د آغا خانیانو عقیده ده چې سیدنا عثمان رضي الله عنه معاذ الله قرآن کریم بدل کړی وو. هغه اصل قرآن اوس د حاضر امام سره دی، څوك چې ترې پوښتنه کوي، هغوی ته یې اوروي. بله دا چې د قرآن کریم څلویښت سپارې وي، لس سپارې د امام په کور کې دي. (۳)

دې لسو پارو ته اتهروید وایي د امام په ژبه لس سپارې دي

حاضر امام خبرې کونکی قرآن دی، پدې وجه د هغه د فرمان مطابق عمل کول پکار دي، د هغه په فرمان عمل کونکی به په دنیا کې کامیابه وي، د امام لاس د خدای د

---

۱) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ۲٦۹

۲) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ۲۷۲

۳) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ۲٥۲

لاس برابر دی، د امام مخ د خدای د مخ برابر دی. د امام دیدار د خدای د دیدار برابر دی.[۱]

**جواب** : ددې په مقابله کې د اهل سنت والجماعت عقیده دا ده چې د قرآن کریم یو یو حرف چې څنګه نازل شوی وو، هم هغه شان تر ننه پورې محفوظ دی. تر قیامته پورې به همدغه شان محفوظ وي. ځکه چې ددې د حفاظت ذمه داري خپله د کائناتو ستر خالق اخستلې.

## نهمه عقیده

مکهي (مذهبی مشر) د ګناهونو بخشش کوي. اوښکې تویول ډیر ضروري دي او د ثواب باعث دي او اوښکې تویول ضروري دي. مثلاً:

۱: د دیرشو روپیو په جماعت خانه کې جمع کولو سره د پیدایش نه لس ورځې وروسته دا د رحمت باران کیږي.

۲: د جماعت خانې په هر مجلس کې د شمولیت نه مخکې کم از کم یوه روپی او د زیاتو هیڅ حد نشته جمع کول ضروري دي.

۳: په واده کې د ځوم او ناوې مکهي صاحب ته پنځوس روپی ادا کولو نه پس هغه ته سجده کول لازم دي، واضحه دې وي چې د جماعت خانې مکهي صاحب ته د امام د قائم مقام مرتبه حاصل ده، همدغه شان کومه سجده چې مکهي صاحب ته وشي. هغه په اصل کې امام حاضر آغا خان ته کولی شي.[۲]

**جواب** : د مسلمانانو عقیده ده چې د ګناهونو د معاف کولو حق صرف الله پاك ته حاصل دی او سجده هم د الله پاك نه سیوا بل چا ته کول حرام دي.

## لسمه عقیده

د آغا خانیانو د عبادت خاصه طریقه ده.

**جواب**: دا هم دمسلمانانو ددعوې بالکل خلاف ده. د قرآن او حدیث بالکل مخالفه ده،

---

۱) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ۲۵٤

۲) آغا خان مسلمان کیسے ؟ ص ۲۷۵

غير الله ته د عبادت په نیت سجده کولو سره انسان بالاتفاق کافر کیږي

## يولسمه او دولسمه عقيده

د امامت درجه د نبوت نه زیاته ده. د آغا خانیانو په کتابونو کې د امام یولس صفات لیکل شوي دي، چې لاندې لیکل شوي[1]

۱. امام د الله پاك د علم خزانه دار او د علم نبوت وارث وي

۲. د هغه جوهر سماوي او د هغه علم علوي وي

۳. د هغه په نفس باندې د اخلاقو هیڅ اثر نه کیږي. ځکه چې د هغه تعلق د هغه عالم سره دی، کوم چې د اخلاقو نه خارج دی.

۴. په هغه او د الله پاك په نورو بندګانو کې هم هغه فرق دی. کوم چې د حیوان ناطق او حیوان غیر ناطق کې دی.

۵. په هره زمانه کې د یو امام موجودیدل ضروري دي.

۶. صرف امام ته په دنیا باندې د حکومت حق حاصل دی.

۷. په هر مؤمن د امام پېژندګلو ضروري ده.

۸. امام معصوم وي، د هغه نه خطاء نه کیږي.

۹. د امام د پېژندګلو نه بغیر نجات ممکن نه دی.

۱۰. د الله پاك کوم اوصاف چې په قرآن کریم کې راغلي دي، د دېنه حقیقتاً زموږ ائمه مراد دي.

۱۱. ائمه وو ته په شریعت کې د ترمیم او تنسیخ اختیار حاصل دی.[1]

**جواب** : دا ټولې خبرې د اهل سنت والجماعت په نزد شرکیه خبري دي. په قرآن او احادیثو کې ددې رد موجود دی او ددې عقیدې بطلان هم ظاهر دی.

## دیارلسمه عقیده

د قیاس او اجماع ضرورت نشته. وجه یې دا ده چې امام یا نائب امام هر وخت موجود

---

[1] اسماعیلیه اورعقیده امامت کاتعارف ص۱۰۸، وکذا شیعة (علامه سید محمّد حسین طباطبائي) ص ۸۳.

وي، د هغه وينا قطعي حکم وي او د هغه حکم منل په هر حال کې ضروري وي. پدې وجه اوس د قیاس او اجماع ضرورت نه پيښيږي.

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد د شریعت څلور اصول دي:

۱: قرآن. ۲: حدیث، ۳: اجماع، ۴: او قیاس

په څه باندې چې د صحابه کرامو ﷺ او د وروسته خلکو اتفاق راشي هغې ته اجماع ويل کيږي.



## د آغا خاني (اسماعیلیه) فرقې په اړه د مفتیانو صاحبانو رایې

### د مولانا محمّد یوسف لدهیا نوي رحمة الله علیه فتوی

**الاستفتاء** :

څه فرمايي علماء دین ددې مسئلې په اړه چې زمونږ د علاقې چترال نه علاوه په ګلګت. کراچي او نورو علاقو کې اسماعیلي (آغاخاني) فرقې سره د تعلق لرونکو خلکو لوی تعداددی، چې ځانته مسلمانان وايي؛ خودهغوی عقائد او نظریات دا دي.

۱: د هغوی کلمه ﴿ اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله واشهد ان امیر المومنین علی الله ﴾ ده.

۲: دا خلک آغا خان خپل امام مني او هم هغه د ټولو شیانو. د هر بنه او بد مالك مني او د هغه ویناوې او حکمونو ته د سپیڅلي فرمان نوم ورکوي او د هغه فرمان منل د ټولو نه لوی فرض ګڼي.

۳: په ظاهره کې د شریعت پابندي نه کوي. بلکې آغا خان ته قرآن ناطق. کعبه. بیت المعمور او هر څه وايي. د هغوی په کتابونو کې دي. په ظاهري قرآن کې چې چیرته لفظ الله راغلی دی. ددې څخه مراد امام زمان (آغا خان) دی.

۴: د پنځه وخته لمونځ نه منکر دي، ددې په ځای د درې وخته دعا ګانو قائل دي.

۵: د مسجد په ځای د جماعت خانې په نوم باندې خپل مخصوص عبادت خانې جوړوي.

۶: زكوة، شرعي زكوة نه مني، د هغې په ځاى د خپل هر قسم مال لسمه برخه د مال د واجباتو او د شوند، او آغا خان په نوم وركوي.

۷: د رمضان المبارك د روژې څخه منكر دي.

۸: د بيت الله شريف د حج څخه منكر دي، د هغې په ځاى د آغا خان ديدار ته حج وايي.

۹: د السلام عليكم په ځاى د هغوى مخصوص سلام يَاعَلِيْ مَدَدْ دى.

۱۰:دسلام جواب يې دوعليكم السلام په ځاى ديَاعَلِيْ مَدَدْ په جواب كې مَوْلَاعَلِيْ مَدَدْ دى.

اوس سوال دا دى چې:

۱: ددې عقائدو او نظرياتو باوجود آيا دې فرقې ته مسلمان ويل صحيح دي؟

۲: د دوى د جنازې لمونځ جائز دى؟

۳: دوى سره نكاح كول جائز ده؟

۴: د هغوى ذبيحه حلاله ده؟

۵: آيا هغوى سره د مسلمانانو په شان معامله كيدلى شي؟

مهرباني وكړى جواب راكړى او زمونږ مسلمانانو پريشاني ختمه كړى!

اَجْرُكُمْ عَلَى اللهِ.

**الجواب** : **اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى!**

۱: كوم انسان چې د اسلامي تعليماتو او د آغا خاني فرقې د عقائدو او نظرياتو څخه خبر وي، د هغه به پديكې هيڅ شك نه وي. چې آغا خاني جماعت هم د قادياني جماعت په شان زنديق او مرتد دي، د اولني دور څخه واخله تر ننه پورې ټول اهل علم د دوى په كفر، ارتداد، زنديقيت او الحاد باندې متفق دي، كوم خلک چې د جهالت او ناخبرى له امله آغا خانيان هم د مسلمانانو يوه ډله ګڼي. د هغوى بې علمي او بې خبري د افسوس وړ ده.

۲: د آغا خانيانو دعوت همېشه پټ، رازداري او د يوې خاصې حلقې پورې تړلى وي او هغوى ته كله هم ښكاره د خپلو باطلو عقائدو او نظرياتو د نشر او اشاعت جرأت نه

کیږي؛ خو په موجوده دور کې د مسلمانانو کمزوري، د عوامو او حکامو د غفلت له امله ددې باطني غلو حوصلې اوچتې شوي او هغوی داسې منصوبې جوړوي چې د هغې په ذریعه د مسلمانانو د ایمان خوږه سرمایه هم لوټ کړي.

۳: پدې سازشي منصوبو کې د رفاهي (کومکي) ادارو په نوم خطر ناک جال خپور کړی دی، چې د ټولو نه زیاته کامیابه شیطاني حربه گڼل کیږي. ځکه چې د حکمرانانو نه واخله تر عوامو پورې د ټولو ځټونه، د زرو د بت وړاندې ښکته کیږي. د دین او ایمان غلو ته د مسلمانانو د خدمت سرکاري او عوامي سند ملاویږي او هغوی ته په مسلمانانو کې د خپلو زندیقانه نظریاتو او کافرانه عقائدو د خپرولو موقع بغیر د څه بندیز نه ملاویږي.

۴: پدې حالاتو کې د آغا خان فاونډیشن قیام د مسلمانانو د ملي وجود لپاره یو وژونکی زهر دی، ددې رکنیت قبلول، دې سره تعاون کول او ددوی څخه مرسته اخستل د ایماني غیرت د جنازې د ویستلو برابر دي او دا یو داسې اجتماعي جرم دی چې د هغې سزا به د الله پاك د قهر او عذاب په شکل باندې نازلیږي.

۵: مسلمانانو لره ددې جال څخه د ساتنې لپاره په حکومت فرض دي چې هغوی ددې ادارې د قیام اجازت منسوخ کړي. د عامو مسلمانانو فریضه ده چې هغوی ددې سازشي فاؤنډیشن (مرستندویه ادارې) بالکل لاس په سر شي، ددې علاقې د علماء کرامو او صالحینو دا فریضه ده چې هغوی خلکو ته دا سازش په ډاګه کړي او حکومت ته ددې په خلاف احتجاج وکړي. ځوك چې ددې فاؤنډیشن ستاینه کوي او یا هم ورسره څه مرسته کوي، هغوی به سبا د قیامت په ورځ د الله او رسول ﷺ د باغیانو په صف کې ولاړ وي.

مَنْ كَثَّرَ سَوَادَ قَـــوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ — لَعَمْرِي لَقَدْ نَبَّهْتُ مَنْ كَانَ نَائِمًا

وَاَسْمَعْتُ مَـنْ كَانَتْ بِهِ اُذْنَانِ — وَلِلّٰهِ الْـــحَمْدُ اَوَّلاً وَّآخِرًا

..........

## د مولانا مفتي رشيد احمد لدهيانوي رحمة الله عليه فتوى

آغا خاني مرتد او زنديق دي، د آغا خانيانو د اسلام سره هيڅ تعلق نشته. دا خلک بېشکه کافران او مرتد دي. واجب القتل دي. لهذا د داسې خلکو پدې خطرناکه منصوبه کې مرسته کول په حقيقت کې د څو پيسو ټکو په خاطر خپل ايمان خرڅول دي. په اسلامي حکومت باندې فرض دي چې ساده مسلمانانو ته د مرتدينو د کفر د پنجو څخه خلاصی ورکړي، د اسلام دې دشمنانو ته عبرت ناکه سزا ورکړي. د هغه ځای په عالمانو، صالحينو او با اثره خلکو باندې فرض دي چې زر تر زره پدې اړه خپل مؤثر اقدامات وکړي. په عوامو باندې ددې خلکو کفر او زنديقيت ښکاره کول لازم دي. چې د کفارو پدې خطرناک جال کې راګېر نه شي. د هغه ځای مسلمانان دې په دې باندې پوه کړی شي، چې په آغا خاني اداره کې شرکت که په هره درجه کې وي، هر ډول مرسته او کومک ورسره کول او د دوی سره د عام کاريګر وغيره په حيث کار کول ناجائز او حرام دي. فقط والله اعلم

## دارالافتاء جامعه فاروقيه کراچی فتوی

**الجواب ومنه الصدق والصواب:**

فرقه آغا خانيه په اجماع د مسلمانو سره کافر دي. د زنديق حکمونه به په هغوی باندې جاري کيږي. ځکه چې هر وخت هغوی پدې کوشش کې وي چې په څه طريقه مسلمانانو ته نقصان ورسوي، هغوی د هيڅ مسلمان خير خواهي نه مخکې غوښته او نه يې اوس غواړي، بلکې مسلمانانو ته نقصان رسول او هغوی ته چل ورکول د هغوی په نزد عين عبادت او د ثواب کار دی. امام ابن کثير رحمه الله په البداية والنهاية کې ليکلي دي. تاتاريانو چې کله په دمشق باندې حمله وکړه: نو دې اسماعيليانو د هغوی ملګرتيا وکړه او د مسلمانانو د تباه کولو ناکامه کوششونه يې وکړه. دا فرقه کله هم د مسلمانانو دوست کيدی نشي. د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ دشمنان دي؛ نو اوس ظاهره خبره ده چې د يو مسلمان لپاره څنګه د هغوی دوستي يا د هغوی په فاونډيشن يا د هغوی په يو محفل کې شرکت کول جائز دي. حال دا چې الله پاك په

نص قطعي سره دا حرام کړي دي، الله پاك فرمايي:

﴿ لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ ﴾ (١)

**ترجمه** : ته به بيا نه مومې هغه قوم چې ايمان لري په الله پاك او په وروستنی ورځې. چې هغوی دي محبت وکړي، د هغه چا سره چې د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ سره دشمني کوي، اګر چې هغه د هغوی پلار، ځامن. ورونه او قبيلې والا وي. هم دا خلک دي چې د هغوی په زړونو کې الله پاك ايمان ليکلی دی.

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللهُ عَلَيْهِمْ مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ أَعَدَّ اللهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (٢)

**ترجمه** : آيا تا ندي ليدلي هغه خلک، چا چې دوستي وکړه د داسې قوم سره چې په هغوی باندې الله پاك ناراضه دی، نه هغوی په تاسو کې دي، نه د هغوی څخه دي. سره د علمه په دروغه قسمونه خوري او الله پاك د هغوی د عذاب لپاره سخت عذاب تيار کړی، ډير بد دی هغه عمل چې دوی يې کوي.

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ ﴾ (٣)

**ترجمه** : ای ايمان والو! زما او خپل دشمنان په دوستی مه نيسی! چې تاسو هغوی ته د دوستی پيغام ورکړی، حال دا چې هغوی د حق څخه منکر دي.

ددې آيتونو څخه صراحتاً معلومه شوه، چې د مشرکينو او د دين د دشمنانو سره دوستي ساتل جائزه نه ده او نه د هغوی څخه مالي مرسته قبلول جائز دي. د سيدنا سليمان عليه السلام واقعه الله پاك ذکر کړې ده، چې هغوی د مشرکانو هديه قبوله نه کړه!

﴿ فَلَمَّا جَاءَ سُلَيْمَانَ قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ فَمَا آتَانِيَ اللهُ خَيْرٌ مِمَّا آتَاكُمْ بَلْ أَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُونَ ﴾ (٤)

**ترجمه** : کله چې سليمان عليه السلام ته راغلو؛ نو هغوی وفرمايل: چې آيا تاسو ماته د مال

---

١) المجادلة : ٢٢، ٢٣

٢) المجادلة : ١٤ څخه تر ١٥ پورې پاره ٢٥

٣) سورة الممتحنة ايت ١: پاره ٢٨

٤) سورة النمل : ٣٦

لالچ راكوی، هغه مال كوم چې الله پاك ماته راكړى دى. هغه ستاسو د وركړې څخه غوره دى، بلكې هم تاسو په خپل مال باندې خوشحاله شی.

څینې وخت رسول اللهﷺ د تاليف قلب او مصلحت لپاره مشركانو ته تحفې وركړې، د هغوی څخه يې هم قبولي كړي، د علامه آلوسيؒ تحقيق هم دا دی چې كه په ديني مصالحو او امور دينيه وو كې خلل پريوځي؛ نو د هغوی هديه قبلول جائز نه ده. [1] په عمدة القاري [2] كې علامه عينيؒ او په سنن ابي داؤد كې امام ابوداؤدؒ د كعب بن مالكؓ او عياض بن حمادؓ وغيره څخه روايت نقل كړی. چې په هغې كې رسول اللهﷺ ارشاد فرمايلی ﴿اني لا اقبل هدية مشرك﴾ (زه د مشركانو هديه نه قبلوم) او ﴿اني نهيت عن زبد المشركين﴾ (زه د مشركانو د هداياوو څخه منع شوی يم) ددې تصريحاتو څخه معلومه شوه چې هغوی سره دوستي هم جائز نه ده. د هغوی امداد قبلول هم جائز نه دي. ځكه چې دا نه په حقيقت كې هديه ده او نه مرسته بلكې د مسلمانانو د ګمراه كولو او بې دينه كولو يو سازش دی. چې د عيسايي تنظيمونو په طرز باندې چلول كيږي.

علامه انور شاه كشميريؒ د ابوبكر رازيؒ د احكام القرآن په حوالې سره ليكلي دي چې:

﴿ وقولهم في ترك قبول توبة الزنديق يوجب أن لا يستتاب الإسماعيلية وسائر الملحدين الذين قد علم منهم اعتقاد الكفر كسائر الزنادقة وأن يقتلوا مع إظهارهم التوبة ﴾ [3]

**ترجمه** : د هغوی قول د زنديق د توبې په نه قبلولو كې دا چې د اسماعيلي توبه نشي قبلولی. د ټولو ملحدينو په څېر د هغوی كفر هم معلوميږي. د ټولو زنادقه وو په څېر دي د توبې د اظهار باوجود ووژل شي.

كله چې د اسلام په نظر كې د هغوی توبه او اسلام قبول نه دی: نو ظاهره خبره ده چې نه د هغوی څخه كومه مالي مرسته اخستل د هديې په صورت كې قبلول جائز دي او نه

---

[1] روح المعانی

[2] عمدة القاري: جلد ۱۳ صفحه ۲۶۷

[3] احكام القرآن جلد ۱ صفحه ٥٤ بحواله اكفار الملحدين ص ۳۷

د هغوی په فاونډیشن او انجمن کې شرکت کول جائز دي، د نورو کفارو په مرسته هغوی نشي قیاس کیدلی، ځکه چې هغه امداد په حکومتي سطح ملا ویږي. په هغې باندې د عامو مسلمانانو د ژوند او دین د متاثره کېدو خطره نشته. په مذکوره مرستې سره د عامو مسلمانانو د انفرادي ژوند د متاثره کیدو سخته ویره ده. د مسلمانانو د مرتد او زندیق جوړیدو قوي احتمال دی. لهذا هغوی سره شرکت او د هغوی د مرستې قبلول حرام دي. ﴿مَنْ كَثَّرَ سَوَادَ قَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ﴾ (چا چې د یو قوم تعداد زیات کړ؛ نو هغه هم د هغوی څخه دي)
په علماء کرامو او عامو دیندارو مسلمانانو ددې بندول فرض دي. کنه نو هغوی به الله پاك ته ددې جواب ورکوي. فقط

﴿وَاللهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ﴾

نظام الدین شامزئ (رحمه الله)

دار الافتاء جامعه فاروقیة کراچي: ۲۵



## د دارالعلوم کراچی نمبر ١٤ فتوی

آغا خانیان د دایره اسلام څخه خارج دی. کافر دی زندیق دی. د قرآني نصوصو مطابق کافران د مسلمانانو بدترین دشمنان دي. همدغه شان د کافرانو سره محبت او ملګري ورسره کول ناجائز او حرام دي. هر هغه شی چې د حرام کار لپاره سبب جوړ شي. هغه هم حرام دی او تاریخ پرې شاهد دی چې همېشه کافرانو په مختلفو سازشونو سره مال. زر او د متاع دنیا لالچ کولو سره د مسلمانانو د ایمان لوټ کولو ناپاکه کوششونه کړي. پدې وجه د آغا خانیانو په ترقیاتي کارونو باندې مسلمانانو ته چل ورکول. د هغوی په مزه مزه خپل مسلك ته نزدې کول یو لوی سازش دی. ددېنه علاوه که دوی سره د قرض وغیره معاملات وساتل شي؛ نو ساده مسلمانان به دوی د مسلمانانو یوه ډله وګني. ډیرو مسلمانانو ته اوس هم د دوی د کافر کیدو علم نشته. د هغوی د ایمان او اسلام خلاف کیدل ظاهر دي. لهذا د آغا خان فاونډیشن کارکن

جوړيدل قطعا حرام او ناجائز دي. په مسلمانانو باندې واجب دي چې د کفر او زندقې لپاره هيڅ قسم نرمي اختيار نه کړي. د علاقې په عالمانو. صالحو او با اثره خلکو لازم دي چې هغوی خلکو ته د نصيحت په توګه خبرداری ورکړي. تر څو د کارکن کيدو نه څانونه وساتي او په حکومت باندې زور واچوي. تر څو هغوی د آغا خانيانو په کارونو ښه نظر ساتي او کوم خلک چې د فاؤنډيشن د کارکن جوړيدو خلکو ته ترغيب ورکوي. هغوی اول پوه کړی. که هغوی په ترغيب ورکولو سره منع شي: نو ډيره غوره ده. کنه نو هغوی سره دي تعلق پرې کړی شي

دلايل وګوری: ﴿ إِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴾ [١]

**ترجمه**: بیشکه کافران ستاسو ښکاره دشمنان دي

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ﴾ [٢]

**ترجمه**:اي مومنانو! دهغه کسانونه چې ستاسو نه وړاندې ورته کتاب ورکړی شوی وو اودکافرانو څخه چې ستاسو دين يې په ټوقو او استهزاء نيولی دی دوستان مه نيسی:

﴿ وللعلامة المحقق عبد الرحمن العمادی فيهم فتوى مطولة وذكر فيها أنهم ينتحلون عقائد النصيرية والإسماعيلية الذين يلقبون بالقرامطة والباطنية الذين ذكرهم صاحب المواقف ونقل عن علماء المذاهب الأربعة أنه لا يحل إقرارهم في ديار الإسلام بجزية ولا غيرها ولا تحل مناكحتهم ولا ذبائحهم ﴾ [٣]

**ترجمه** : د علامه عبد الرحمن عمادي په اوږده فتاوی کې چې د نصرانيه او اسماعيليه کوم عقائد ذکر شوي دي. هغه فرمايي: چې په څلور واړه مذاهبو کې د هغوی د لاس ذبيحه او هغوی سره نکاح کول ناجائز ګرځولې ده. وَاللّٰهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى اَعْلَمُ

محمد خالد دار الافتاء دار العلوم کراچی

۱۴۰۴/۵/۱۶۱۴هـ

---

[١] النساء : ۱۰۱

[٢] المائده : ۵۷

[٣] الشامية : جلد ۳ صفحه ۳۹۸، مطبوعه يوبی.

## د دار الافتاء دار العلوم نعیمیه فتوی

د آغا خاني (اسماعیلیانو) دعقائدو په اړه چې څه ویل کیږي که صحیح وي: نو په هره داسې معامله کې چې په هغې سره اسلامي عقائد او اعمال مؤثر کیږي. د هغوی څخه مرسته او کومک حاصلول قطعا صحیح نه دي، بلکې ګناه ده د الله پاك ارشاد دی:

﴿ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ﴾ [1]

**ترجمه**: په نیکی او تقوی باندې د یو بل سره مرسته کوی. په ګناه او دشمنی باندې یو بل سره مرسته مه کوی.

کوم مسلمان چې هغوی سره داسې مرسته کوي چې د آغا خانیت د ترقی سبب ګرځي. هغه به ګناهګار وي او په آخرت کې به د هغوی څخه ددې په اړه پوښتې کیږي.

والله اعلم

محمد اسلم ۱۵/۲/۸۴ء



## د دار العلوم حقانیه اکوړه خټک فتوی

**الجواب**: فرقه آغا خانیه د دین د ضروریاتو څخه د انکار له امله بېشکه کافران او د اسلام څخه وتلي دي، هغوی سره موالات (دوستانه تعلقات ساتل) منصوصي حرام دي، الله پاك فرمايي:

﴿ لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً ﴾ [2]

**ترجمه**: مومنان دي کفار په دوستی نه نیسي، د مؤمنانو په پرېښودو سره چې چا داسې کار وکړ؛ نو هغه د الله پاك په هیڅ ذمه کې نه دی شامل. مګر دا چې تاسو ځانونه وساتی.

---

[1] سورة المائده : ۲

[2] آل عمران : ۲۸

دې فرقو د خپل اقلیت (کموالي) او مذهبي دلایلو څخه د بې برخي کېدو له امله نه د سیاسي تحریك همت لري، نه يې د خپلو کفریاتو د دعوت ورکولو اراده لري. په موجوده دور کې دا فرقې د خپل مال ډېر والي ته ګوري، او د خپلو تنظیمونو په دامونو کې د بې علمه او کم علمه خلکو ښکار کول غواړي. په همدې چل سره د سیاسي ترقی او په دعوت کې د کامیابی اراده لري، پدې وجه دې تنظیمونو کې برخه اخستل د اسلام سره دشمني او د اسلام سپکاوی دی.

وهوالموفق

محمدفرید دارالافتاءدارالعلوم حقانیه



## د مدرسه مظاهر العلوم سهارنپور (یوپی، هند) فتوی

**الجواب** : حامدا ومصلیا... د ډېر وخت څخه په فرقه اسماعیلیه باندې د کفر فتوی ده. څوك چې پداسې کورنی کې پیدا شوی وي چې هغه کافران دي او چا چې خپله اسلامي عقیده پرېښوده، د فرقه اسماعیلیه عقیدې خپلولو سره يې دغه مذهب اختیار کړ، هغه مرتد دی، د مرتد ډېر سخت حکمونه دي. هغه سره سلام او کلام هغه سره ناسته ولاړه، د اخستلو او خرڅولو معامله کول جائز نه دي. په اسلامي حکومت کې داسې انسان (که هغه په درې ورځو کې دننه اسلام ته رجوع ونه کړي): نو وژل کیږي به.

مفتي محمد یحیی

مظاهر العلوم سهارنپور ۱۴۰۲/۸/۶هـ



## د دار العلوم دیوبند فتوی

**الجواب** : په سوال کې چې ددې فرقې کومې عقیدې لیکل شوي، که هغه صحیح وي؛ نو د هغوی په کافر کیدو کې قطعا هیڅ شک نشته، د هغوی د مړو سره هغه ټول مذهبي کارونه چې موږ مسلمانان يې کوو، صحیح نه دي، نه به يې د جنازې لمونځ

صحیح وي، نه به د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کیږي. همدغه شان هغوی سره نکاح کول هم جائز نه ده او نه به د دوی د لاس ذبیحه حلاله وي او نه د دوی سره د مسلمانانو په څېر برخلیک کول روا دي

(وبهذا ظهر أن الرافضي إن كان ممن يعتقد الألوهية في عليّ وأن جبريل غلط في الوحى، أو كان ينكر صحبة الصديق أو يقذف السيدة الصديقة فهو كافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدين بالضرورة) [1]

**ترجمه** : دا خبره ظاهره شوه چې کوم رافضي د سیدنا علي ﷛ د خدایی عقیده لري. د سیدنا جبرئیل علیه السلام په وحی کې د غلطی عقیده مني: نو د دین د ضروریاتو څخه د قطعي معلوماتو د مخالفت د وجې نه کافر دی

د دین ضروریات،د لمونځ، روژه، حج، زکوة. په څېر سپېڅلو ارکانو څخه چې منکر وي؛ نو د هغه په کفر کې هیڅ شك نشته. [2]

وهواعلم

محمد ظفیر الدین غفرله

دارالافتاءدارالعلوم دیوبند ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۳ هـ



## د آغا خاني (یعني اسماعیلیه) فرقې په اړه د زیات تحقیق لپاره لاندې لیکل شوي کتابونه مطالعه کړی

- .... همارا اسماعیلي مذهب اور اسکا نظام ...... دکتور زاهد علی صاحب
- .... تاریخ فاطمیین .... دکتور زاهد علی صاحب
- .... فردوس برین ...... مولانا عبدالحلیم شرر صاحب
- .... حسن بن صباح .... مولانا عبدالحلیم شرر صاحب
- .... الاسماعیلیة (عربی) علامه احسان الهی ظهیر شهید

[1]) رد المحتار : جلد ۳ صفحه ٤٦

[2]) آغا خانی مسلمان کیسې؟ ص ۱۳۱ تا ۱٤۷

- .... اسماعیلیة اور عقیده امامت کا تعارف تاریخی نقطه نظر سي ... سید تنظیم حسین صاحب
- .... آغا خانیت کی حقیقت ... مولانا عبدالله چترالی صاحب
- .... آغا خانیون کي زیر زمین منصوبي .... مولانا عبدالله چترالی صاحب
- .... مذهب اسماعیلیه قرآن و سنت کی روشنی مین ... مولانا عبدالله چترالی صاحب
- .... آغا خانیون کي سیاسی عزائم .... زکریا رازی صاحب
- .... آغا خانی کافر هین، علماء اسلام کا متفقه فیصله .... قاری فیض الله چترالی صاحب
- .... آغا خانیت کیا هي؟ قاری فیض الله چترالی صاحب
- .... هماري بهي مهربان کیسي کیسي
- .... اسماعیلي معبود
- .... آغا خان فاؤنڈیشن چترال
- .... جماعت خانه سي مسجد تك ... علی بن علی صاحب
- .... حقیقت اسماعیلیة یا اسماعیلی طریقت ایك منفرد طریقه .... اکبر علی مهر علی صاحب
- .... آغا خانیون مین بیداري کی آثار
- .... جماعت خاني سي عدالت عالیه سندهتك
- .... الاسماعیلیة (عربی) وشیٔ من عقائدها وافکارها
- .... آغا خانی اسماعیلیون کی تاریخ .... (اکبر علی مهر علی) صاحب
- .... مذاهب اسلام .... مولانا نجم الغنی رام پوری صاحب
- .... آغا خانیت علماء امت کی نظر مین ... مولانا فیض الله چترالی صاحب
- .... الحکم الحقانی فی الحزب الاغاخانی .... حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی



# [فرقه اسماعیلیه بوهري]

## د فرقه اسماعیلیه بوهري تاریخ

د امام المستنصر بالله پیدایش په ٤٢٧ھ چې د ۱۰۳۵ء سره سمون خوري. چې وفات یې په ٤٨٧ھ چې موافق د ۱۰۹۵ء سره سمون خوري. دده د وفات نه وروسته په فاطمیانو کې اختلاف پیدا شو ځینو یې د المستنصر جانشین د هغه ځوی نزار جوړ کړ. چې هغوی ته نزاریه وایي او ځینو نورو یې د المستنصر کشر ځوی المستعلی د هغوی جانشین جوړ کړ، چې د هغې له امله هغوی ته مستعلویه وایي

د مستعلی معنی هغوی په غیبوبت سره کوي چې د هغوی آخري امام طیب وو. په وروکوالي کې یې غیبوبت یعنې په ٥٢٥ھ چې د ۱۱۱۳ء کې اختیار کړ. د هغه وخت نه په دوی کې امام پټ شو؛ خو د دعوت سلسله د داعیانو په ذریعه اوس هم روانه ده. امام طیب اګر چې غائب شو؛ خو د هغوی په اولاد کې د امامت سلسله اوس هم روانه ده. دې مذهب والو ته په یمن کې د اقتدار واګې تر لاسه شو، ددې منونکي په یمن، مصر، هندوستان او پاکستان کې شتون لري. د هغوی مرکز ۹۴۶ھ چې د ۱٥٤۰ء سره سمون خوري، احمد آباد ګجرات (هندوستان) ته منتقل شو. په هندوستان کې د هغوی د مذهب داعي یوسف بن سلیمان وو. کله چې د هغوی د شپږ ویشتم داعي داؤد بن عجب شاه وفات په ۱٥۹۱ھ کې وشو: نو بیا اکثریت داؤد بن قطب شاه خپل وویشتم داعي ومنلو. یمن والو سلیمان بن حسن وویشتم داعي ومنلو. پدې بناء داؤد بن قطب شاه لره داعي منونکو ته داؤدي وایي او سلیمان بن حسن لره داعي منونکو ته سلیماني وایي. په هندوستان او پاکستان کې داؤدیان دي، اوس هم د هغوی دوه پنځوسم داعي موجود دی، چاته چې هغوی سید برهان الدین ویل. هم ددې فرقې داعي د لسمې هجری نه په بمبی کې ژوند کوي. عموما دوی تجارت کولو او تجارت کونکو ته بوهري وایي. پدې وجه دوی ته بوهري ویل کیږي.

## دا فرقه کله وجود ته راغله؟

ددې فرقې ابتداء په ۵۲۵هـ کې وشوه. کله چې د مستنصر بالله په وفات باندې خلکو د هغه کشر ځوی چې د هغه نوم مستعلي بالله (امام طيب) وو. هغه خليفه او جانشين جوړ شو. بيا هغه امام طيب په ۵۲۵هـ کې غائب شو. د هغوی د داعي سلسله روانه ده، اوس د هغوی دوه پنځوسم داعي برهان الدين موجود دی.



## د فرقه بوهري د جماعت د باني محمد برهان الدين مختصر حالات

**نوم** : برهان الدين. پيدايش ۲۰ ربيع الاخر ۱۳۳۳هـ . چې د ۶ مارچ ۱۹۱۵ء سره موافقت لريد هندوستان په ښار سورت کې زيږيدلی

**د پلار نوم** : يې طاهر سيف الدين وو، طاهر سيف الدين د برهان الدين د پيدايش نه څلويښت ورځې مخکې يو پنځوسم داعي جوړ شو.

**تعليم** : ابتدا کې يې تعليم په خپله علاقه کې حاصل کړ. بيا علي ګړه يونيورستی نه د ډاکټر اف تهيالوجي اعزاز حاصلولو لپاره سند تر لاسه کړ.

**تعليمي خدمتونه** : هغوی خپل مسلك په جامعه سيفيه کې نافذ کړ. د هغې دوه شاخونه يې جوړ کړه، د هغې نه يوه جامعه د هغوی په پيدايشی ښار سورت او دويمه په کراچی کې ده.

طاهر سيف الدين د ۱۹ کالو په عمر کې په ۱۹۳۴ء کې برهان الدين يې خپل دوه پنځوسم داعي وټاکی. اتفاق نه ګوره چې د جانشينی او پيدايش ورځ يې يوه وه.

**بوهري مرکزونه** : د بوهري مرکزونو په نوم يې څو تاريخي مرکزونه جوړ کړه، چې په هغې کې يې د فاطمي دور د يادګار مسجد الجامع الانور نوی تعمير کړ. ورسره يې د قاهره نور جوماتونه مثلا : جامع ازهر، جامع اقمر، جامع جيوشي او د جامع لوتو زړې آبادي کړې، په ۲۰۰۲ء کې يې د کوفې په ښار کې د جامع علي بن ابي طالب ﷺ په نوم د عمارت د تازه کولو او احياء کار پوره کړ، ددېنه علاوه يې په يمن کې د دعاة

کرام تاريخي جوماتونو (عبادت خاني) په هندوستان کې د سورت تاريخي جامع معظم او نور ډير جوماتونه (عبادت خاني) د دنيا په ډيرو علاقو کې په بوهره مرکزونو کې هم په سوونو خپلې عبادت خانې تعمير کړې

**کارنامه** : په ۱۴۰۱ هـ کې برهان الدين د خپل جماعت خلکو ته تلقين وکړو چې سود پريږدی او د قرض حسنه لاره اختيار کړی

د هغوی د شپې ورځې په محنت سره په ټلوبنتو ملکونو کې بوهري جماعت فعال جوړ شو. هر کال برهان الدين د مختلفو ملکونو دوره هم کوي. هغوی د ډيرژبو ماهر هم منل شوی.

دې وخت کې د هغوی عمر (۹۲) دوه نوي کاله وو.



## د فرقه بوهري نظريات او عقائد

۱: د امام طيب په نسل کې برابر د امامت سلسله راروانه ده. اګر چې امام طيب غائب دی: خو د هغوی عقيده ده چې هغه داعيانو ته برابر هدايات ورکوي.

۲: سود اخستل جائز دي.

۳: ديوالي (د هندوانو د مندر يو رسم دی) کې شمع روښانه کوي.

۴: د هندي مياشتو په اعتبار سره حساب کتاب ضروري ګڼي.

۵: جومات. جماعت خانه او قبرستان هر څه د هغوی جدا دي.

۶: د خپلو مشرانو په اقتداء کې عموما په دوی سپينې جامې اغوندی.

۷: کلمه يې: ﴿لا اله الا الله محمدٌ رسول الله مولانا علی ولی الله وصی رسول الله﴾ ده.

۸: په اذان کې د ﴿اشهد ان محمدا رسول الله﴾ نه پس ﴿اشهد ان مولانا عليا ولی الله﴾ او د ﴿حی علی الفلاح﴾ نه پس د ﴿حی علی خير العمل محمد وعلی خير البشر وعترتها علی خير العمل﴾ اضافه کول ضروري ګڼي [۱].

---

[۱]) مذاهب اسلام (محمد نجم الغنی) ۲۹۲

# د فرقه بوهري نظريات او عقائد،
# د قرآن او حديث څخه د هغې جوابونه

## لومړی عقيده

امام غائب دی؛ خو هغه داعي ته مكمل هدايات وركوي. د امامانو په اړه د هغوی عقيده دا ده چې ائمه كرام د الله پاك نور مفترض الطاعة او معصوم وي. دنيا او آخرت د هغوی په ملكيت كې دي چې څه غواړي وركوي يې. چې څه غواړي هغه حلال كړي. څه چې غواړي هغه حراموي وغيره

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد ظاهره خبره ده چې دا ټولې خبرې صرف د الله پاك سره لائق دي. چې د الله پاك نه سيوا څوك هم ددې خبرو حقدار نه دی. كنه نو الله پاك سره به شرك لازم شي. شرك او كفر داسې گناه ده چې هغه الله پاك نه معاف كوي. كه په دنيا كې د مرگ نه مخكې مخكې ددېنه توبه ونكړي لكه چې په قرآن كريم كې راځي

﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ﴾ (۱)

**ترجمه** : بېشكه الله پاك به د مشرك مغفرت نه كوي، ددېنه علاوه چې وغواړي د هغه بخښنه كوي.

## دويمه عقيده

ښكاره سود اخلي.

**جواب** : ظاهره ده چې د سود اخستل يا وركول دا په شريعت محمدي كې حرام دي. د هغې ممانعت په قرآن، حديث، اجماع او قياس سره ثابت دی مثلا

۱: ﴿ وَحَرَّمَ الرِّبَوا ﴾ (۲)

---

(۱) سورة النساء : ٤٨

(۲) سورة البقرة : ٢٧٥

**ترجمه** : او الله پاك سود حرام كړى دى.

۲. ﴿ فَإِنۡ لَّمۡ تَفۡعَلُوۡا فَأۡذَنُوۡا بِحَرۡبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوۡلِهٖ ﴾ [۱]

**ترجمه** : خو كه تاسو داسې ونكړه؛ نو خبردار شى د جنګ لپاره د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ له طرفه.

۳. ﴿ وَذَرُوۡا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوا اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴾ [۲]

**ترجمه** : او چې كوم د سود څخه درپاتې وي، هغه پرېږدى كه تاسو ايمان والا يى.

۴. ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَاۡكُلُوا الرِّبٰوا اَضۡعَافًا مُّضٰعَفَةً وَّاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيۡۤ اُعِدَّتۡ لِلۡكٰفِرِيۡنَ ﴾ [۳]

**ترجمه** : اې مومنانو! سود څو څو چنده زيات مه خورى؛ او د الله پاك نه وويرېږى چې كامياب شى، د هغه اور نه وويرېږى چې د كفارو لپاره تيار شوى دى.

**نوټ** : د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د سود په اړه د ټولو نه ويرونكى آيت دا دى.

## په احاديثو كې د سود بدي

۱. ﴿ مَنۡ نَبَتَ لَحۡمُهٗ مِنَ السُّحۡتِ فَالنَّارُ اَوۡلٰى بِهٖ ﴾ [۴]

**ترجمه** : د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا غوښه چې د حرام مال نه پيدا شوه اور د هغې لپاره زيات لائق دى.

﴿ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ حَنۡظَلَةَ غَسِيۡلِ الۡمَلَائِكَةِ قَالَ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم دِرۡهَمُ رِبًا يَاۡكُلُهُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَعۡلَمُ اَشَدُّ مِنۡ سِتَّةٍ وَّثَلَاثِيۡنَ زَنۡيَةً ﴾ [۵]

**ترجمه** : سيدنا عبدالله بن حنظله رضي الله عنهما غسيل الملائكة نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د سود يو درهم چې انسان يې سره د علمه خوري د ۳٦ كرته زنا كولو نه

---

[۱] سورة البقرة : ۲۷۹

[۲] سورة البقرة : ۲۷۸

[۳] سورة آل عمران : ۱۳۰، ۱۳۱

[۴] بيهقى فى شعب الايمان، كذافى المشكوة. (اسناده صحيح)

[۵] الدارقطني جلد ۳ صفحه ۱۹، واحمد : ۲۲۵.

زیات سخت دی.

۲: ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الرِّبَا سَبْعُونَ حُوبًا، أَيْسَرُهَا أَنْ يَنْكِحَ الرَّجُلُ أُمَّهُ ﴾ [١]

**ترجمه**: د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلو: د سود اویا اجزاء دي په هغې کې تر ټولو سپك دا دی چې سړی د خپلې مور سره زنا وکړي.

د سود په حرام والي باندې د پوره امت اتفاق دی. په همدې وجه ملا علي قاري رحمه الله فرمایي: د علماؤ اتفاق دی چې که څوك د سود د حرمت څخه انکار کوي؛ نو د هغه تکفیر به کولی شي. [٢]

همدغه شان په صاوي شرح جلالین کې دي:

خان پوه کړه چې سود د کتاب، سنت او اجماع درې واړو په رڼا کې حرام دی. لهذا څوك چې ورته حلال وایي د هغه به تکفیر کولی شي. [٣]

## دریمه عقیده

د دیوالي (د هندوانو یو رسم دی) پر مهال رڼا ګانې کوی!

**جواب**: دیوالي دا خالص هندو مذهبي رسم دی، ظاهره ده چې ددې رسم د اسلام سره هیڅ تعلق نشته. که سړی هسې دغیر مسلمو په مذهبي رسم کې شرکت کوي: نو هم جائز نه دی. ځکه چې حدیث کې راځي: څوك چې د یو قوم مجمع زیاته کړي هغه به هم په هغوی کې شمار وي. په فتاوی رحیمیه کې دي چې په دیوالي وغیره کې شرکت کول حرام دي.

## څلورمه عقیده

د هندي میاشتو په اعتبار سره حساب کتاب کوی!

---

[١] ابن ماجة : ٢٢٧٤، والبيهقي في الشعب : ٥٥٢٢ (اسناده صحيح)
[٢] مرقات : جلد ٣ صفحه ٣١٣
[٣] صاوي : جلد اول صفحه ١١٦

**جواب** : د دوی تعلق زیات تر د هندوانو سره دی. پدې وجه د هغوی د میاشتو سره د هغوی حساب وي، د مسلمانانو حساب کتاب د سپوږمۍ په لحاظ وي. د همدې سپوږمۍ په اعتبار سره اسلامي عبادتونه هم ادا کیږي، مثلا د رمضان روژې. د حج ورځې وغیره.

## پنځمه عقیده

د دوی مسجد ، جماعت خانه او قبرستان ټول بیل وي!

**جواب** : علماء فرمایي: چې د بوهریانو اذان د ټولو مسلمانانو نه جدا دی. د هغوی هغه لمونځ نه دی کوم چې مسلمانان کوي، د هغوی خپل عبادت د ځانه جوړ شوی. هغه لمونځ نه دی، بلکې سراسر کفر او شرك دی. چې د هغوی په جماعت خانو کې ادا کیږي، که هغه داسې نه وي: نو هغوی خپلو جماعت خانو ته د مسلمانانو داخلیدل ولې منع کوي، د هغوی لمونځ د هغوی د مخفي امام لپاره وي. د مسلمانانو په جوماتونو کې هر یو ته د راتلو او د هغوی د عبادت کتلو اجازت شته.

## شپږمه عقیده

د هغوی کلمه د مسلمانانو نه جدا ده.

**جواب** : د رسول الله ﷺ نه واخله تر ننه پورې چې په کومه کلمه اتفاق دی هغه ﴿ لااله الاالله محمدٌ رسولُ اللهِ ﴾ ده د شروع نه د کلمې دوه اجزاء دي، یو ﴿ لااله الاالله ﴾ او دویم ﴿ محمدٌ رسولُ اللهِ ﴾ که د دریم جزء ﴿ مولاناعلی ولی الله وصی رسول الله ﴾ اضافه صحیح ومنل شي: نو ددېنه دا خبره ثابتیږي. چې رسول الله ﷺ او یو لاکهـ څلیرشت زره صحابه کرامو رضی الله عنهم او تر ننه پورې مسلمانانو هم د دوی کلمه ویله.

علماء کرام فرمایي: هر کله چې قطعي طور دا ثابته شوه چې د اسلام کلمه صرف د توحید او رسالت د اقرار نوم دی . هغه په ﴿ لا اله الا الله محمد رسول الله ﴾ سره پوره کیږي. پدې باندې د رسول الله ﷺ د زمانې نه واخله تر ننه پورې اجماع ده: نو اوس چې څوك پدېکې کمې زیاتی کړي: نو هغه به د اصلي کلمې د انکار له امله کافر وي.

# د فرقه بوهري په اړه د مفتيا نو رايې

۱ د جامعه بنوري ټاؤن کراچي فتوی

بوهري فرقه د خپلو فاسدو عقائدو په وجه د اسلام د سپېڅلي دايري څخه خارج دي. هغوی سره تعلقات ساتل، دوستي کول، ناجائز دي [۱]

۲ د دار الإفتاء والارشاد ناظم آباد فتوی

بوهري د آغا خنيانو يوه ډله ده، د آغا خانيانو د اسلام او مسلمانانو خلاف سازش د چا نه پټ نه دی، د هغوی کلمه، لمونځ او عقائد غرض هر يو عمل کفريه او د اسلام څخه بيل دی [۲]

۳ د جامعه بنوريه سائټ ايريا کراچي فتوی.

مشهوره فرقه بوهري هم د خپلو باطلو عقائدو او نظرياتو له امله د اسلام د سپېڅلي دايري څخه خارج دي. دا د روافضو يوه څانګه ده. چې په قرآن کريم کې د تحريف، شراب، زنا حلال قائله دي او د خلفاء راشدينو څخه پرته د نورو صحابه کرامو ﷺ په اړه معاذ الله د کافر کيدو عقيده ساتي. د هغوی په زنديق کيدو باندې د امت اجماع ده. هغوی سره د دوستانه تعلقاتو ساتلو څخه ځان ساتل پکار دي [۳]

## د فرقه بوهري په اړه د زيات تحقيق لپاره لاندې کتابونه مطالعه کړی

- ✿ — اسماعيليه اور عقيده امامت ... سيد تنظيم حسين صاحب
- ✿ — همارے اسماعيل مذهب کی حقيقت اور اسکا نظام ... زاهد علی صاحب
- ✿ — تاريخ فاطمين ...... دکتور زاهد علی صاحب
- ✿ — فردوس برين ..... مولانا عبدالحليم شرر صاحب
- ✿ — اسلام بلا مذهب ..... دکتور مصطفی الشکفه صاحب

---

[۱] فتوی نمبر . ۱۶۲۲

[۲] فتوی نمبر : ٤٢/٦١٩

[۳] فتوی نمبر : ۲۳٥٦٥

- .... الطائفة الاسماعيلية تاريخها نظمها وعقائدها... دكتور مصطفى كامل حسين صاحب مكتبه النهضة المصرية.
- .... دائرة المعارف الاسلامية ... مادة الاسماعيلية
- .... اصول الاسماعيلية والفاطمية والقرامطة ... برنارڈ اويس
- .... كشف اسرار الباطنية واخبار القرامطة ... محمد بن مالك يمانى الحمادى صاحب
- .... فضائح الباطنية .... علامه ابو حامد غزالى رحمه الله تعالى
- .... تاريخ الجمعيات السرية والحركات الهدامة... محمد عبدالله عنان وغيره.



# [فرقه ذکري]

## د ذکري فرقې تاريخ

ددې فرقې اصلي جوړونکی سيد محمّد جونپوري دی، د هغه د مرګ نه وروسته د هغه مريدانو محمد مهدي اټکي د باني په ډول وپېژنی.

ذکري يو داسې مذهب دی. چې د هغې لپاره کوم ټاکلي ضوابط نشته. نه د هغوی څه کتاب شته. څه چې د هغوی مشران وايي بس هم هغه د دوی دين او مذهب دی. تر نه پورې د هغوی په مذهب باندې باقاعده څه کتاب نشته. صرف څو قلمي نسخې دي.

د مذهب بنياد خو په ۹۰۰هـ کې سيد محمّد جونپوري کېښود. بيا يې نورو حکمونو ته محمد مهدي اټکي ترتيب ورکړ تر څو په بنه ډول يې خپور کړ. چې د هغې ظهور په ۹۷۷هـ کې د ۱۵۶۹ء مطابق شوی وو

## ذکري فرقه کله وجود ته راغله؟

ذکري فرقه په اصل کې د مهدويه يوه څانګه ده. اول د مهدويه فرقې په اړه بيا د ذکري فرقې په اړه هم څه خبرې ذکر کوو.

د فرقه مهدویه باني سید محمّد جونپوري وو. چې د جمادی الاولی په میاشت ۸۷۴هـ کې د ۱۴۴۳ء مطابق دوشنبې په ورځ په جونپور هندوستان کې پیدا شو. [1] همدې ته د سندهـ خلک میران سائین او د مکران او قلات خلک یې په نور پاك سره یادوي.

سید محمّد جونپوري په جمادی الاولی ۸۸۷هـ کې خپله علاقه پرېښوده. په ۹۰۰هـ کې احمد نګر ته ورسید. بیا په ۹۰۱هـ کې د حج لپاره لاړ. نهه میاشتې هلته و اوسېد. بیا یې د رکن او مقام ابراهیم ترمنځ ودرېد او اعلان یې وکړ. چې زه آخر الزمان نبي یم، زما په اړه الله پاك خبر او د رسول الله ﷺ په ژبه باندې وعده فرمایلې وه. [2]

د حج نه وروسته د احمد نګر نه واخله د سندهـ ټهټهه ښار ته راغی او شپږ میاشتې قیام یې وکړ، (نن هلته د هغوی زیارت جوړ شوی دی).

د ټهټهه نه پس دې قندهار ته لاړ، په همدې مهال هغه مختلف امیران. بادشاهان او ښځو ته خطونه ولیکل چې زه مهدي یم. چې په هغې کې یې وویل زر تابعداري وکړی. چې تاسو کامیابي بیا مومی، څوك چې زما نافرماني کوي. الله پاك به هغه په سخت عذاب کې اخته کوي وغیره وغیره. [3]

بیا ددې فرقې باني په فراه کې چې اوس هم د افغانستان د ولایاتو څخه یو ولایت دی. هلته په ۹۱۰هـ کې وفات شو.



## د باني فرقه محمد اټکي حالات

ددې فرقې پیر محمد مهدي اټکی دی، دده په اړه یې د عقیدتمندو خلکو دا رایه ده چې هغه د الله نور وو. پدې وجه نه د هغه مور او پلار شته. نه اولاد او نه د هغه

---

[1]) مهدوی تحریك : ۳۵
[2]) مهدوی تحریك : ٤٤
[3]) مهدوی تحریك : ٤٧

ولادت شوی دی. نه د هغه وفات شوی دی. نه يې کفن دفن شوی دی. بلکې دی نور وو، هغه نور غائب شو يا آسمان ته لاړ.

د هغه ظهور په ۹۷۷هـ کې د ۱۵۶۹ء مطابق وشو. دا په اصل کې د آټک پنجاب اوسيدونکی وو، سيد محمّد جونپوري يو سړی وو. د هغه ډير مريدان وو. د هغه د مرګ نه وروسته د هغه مريدان خپاره شوه: نو محمد مهدي اټکي په خپل فهم سره هغوی خپل تابعدار جوړ کړ. هغه خپل مرکز تربت کې جوړ کړ. هلته هم هغه ډير شيان جوړ کړه. بيا په ۱۰۰۰هـ کې د ۱۵۹۲ء مطابق، يا په ۱۰۲۹هـ کې د ۱۶۱۹ء مطابق دې مهدي اټکي پدې ويره چې چيرته راز ښکاره نشي د خپل ناستې په ځای څادر يا پګړۍ دفن کړه، څه برخه يې بهر پرېښوده. د شپې شپې غائب شو. خلکو شور شروع کړ چې هغه خو نور وو اسمان ته لاړ.

## د ذکري فرقې نظريات او عقائد

**لومړی عقيده** : د هغوی کلمه د اهل سنت والجماعت نه جدا ده. د هغوی کلمه ﴿ لااله الا الله نور پاك نور محمد مهدی رسول الله ﴾ او کله ﴿ لا اله الا الله نور محمد مهدی رسول الله صادق الوعد الامين ﴾ وايي. [1]

او کله ﴿ لا اله الا الله الملك الحق المبين نور پاك نور محمد مهدی رسول الله صادق الوعد الامين ﴾ وايي.[2]

**دويمه عقيده** : (د خپل مذهب باني) ملا مهدي محمّد اټکي نبی آخر الزمان ګڼي. د ټولو انبياؤ لوی سردار يې مني. د سيد المرسلين نور محمد مهدي شان کوم چې اولين او آخرين دی او غوره شوی هادي دی. د رب العلمين نور دی. [3]

---

[1] سفرنامه مهدي مصنف شيخ عزيز لاري ص ٤

[2] ذکر الهي جلد ۱۰ صفحه ۱۱، نور تجلی ص ۱۱۸، ۱۲۲ وغيره

[3] سفر نامه مهدی ص ۳، (شيخ عزيز لاری) ذکر الهی ص ۳۹، نور تجلی، ص ۶۸، ۷۱، نور هدايت، ۷۹، ثناء مهدی، ۹، ۷، ۱۰ کې په مختلفو عنواناتو سره ورته سيد المرسلين ويل شوي.

**دریمه عقیده** : د محمد اټکي د نبوت نه انکار کفر دی او هغه ته دروغجن ویونکی کافر دی. [۱]

**څلورمه عقیده** : محمد مهدي اټکي د الله نور دی او الله د مهدي عاشق او مهدي یې معشوق دی. [۲]

**پنځمه عقیده** : د کوم مهدي ذکر چې په حدیث کې راغلی. دا هم هغه مهدي دی چې اوس راغلی، دده نه وروسته به هیڅ مهدي نه راځي [۳]

**شپږمه عقیده** : قرآن کریم په اصل کې په محمّد مهدي باندې نازل شوی وو: خو د رسول اللهﷺ په واسطه په مهدي باندې نازل شو. اوس د قرآن کریم هم هغه تأویل او تشریح معتبره ده، کومه چې محمد مهدي اټکي کړې ده. بله دا چې د قرآن کریم څلوېښت پارې وې، په هغې کې لس پارې مهدي منتخب کړې. باقي دیرش پارې یې د اهل ظواهرو لپاره پرېښودې.

هغه لس پارې د قرآن باقي دیرش دا د بدی مثل دی. د همدې لسو پارو نوم برهان دی. [۴]

**اوومه عقیده** : چیرته چې په قرآن کریم کې د محمّد نوم راغلی. ددې څخه مراد محمّد مهدي دی، د رسول اللهﷺ نوم احمد دی او محمد خو د مهدي نوم دی. [۵]

**اتمه عقیده** : ﴿ مقاما محمودا ﴾ [۶] ددېنه مراد مقام محمود نه دی، بلکې ددېنه مراد هغه غر دی چیرته چې د ذکري مذهب والو حج کیږي. [۷]

---

[۱] قلمي نسخه بهتر موسی نامه ۱۲۱۱، ۱۵۸، وثناء مهدي : ۸۶، سفرنامه مهدي، ۳، فرمودات مهدي قلمي نسخه : ص ۹۹وغیره

[۲] قلمي نسخه محمد قصر قندی موسی نامه : ۱۱۵، حقیقت نور هادی : ۷، معراج نامه : ۲۳

[۳] ثناء مهدی ۱۰، قلمی ابیات سې محمد قصرقندی ص ۵٦، ذکروحدت ص۱۱، قلمی نسخه نیزسرجهانی: ٤٤

[۴] سفر نامه مهدی ص ٥، ثناء مهدی ص ۷ حقیقت نور پاك، قلمی نسخه سې قصر قندی موسی نامه ۱۱۷، ذکر الهی ص ۳۹، ذکر توحید ص ۳۱ وغیره.

[۵] معراج نامه، ص ۲، نور تجلی ص : ۱۲، ۲۲، ۲۳، ٦۲

[٦] سورة بنی اسرائیل ایت: ٦۹

[۷] نور تجلی ص : ٤۱

**نهمه عقیده** : په ټولو انبیاؤ ﷺ باندې لازمه ده چې هغوی په مهدي اټکي باندې ایمان راوړي. (۱)

**لسمه عقیده** : د هغوی په مذهب د انبیاؤ او ملائکة وو ﷺ سپکاوی جائز دی. (۲)

**یولسمه عقیده** : د محمد مهدي اټکي د راتلو نه وروسته د رسول الله ﷺ شریعت منسوخ شو. (۳)

**دولسمه عقیده** : لمونځ کونکي مرتد او بې دینه دي. (۴)

**دیارلسمه عقیده** : د رمضان روژې منسوخ دي، د ذی الحجة د ابتداء لس روژې ساتل پکار دي، د ایام بیض او د هرې دوشنبې روژې نیول پکار دي. (۵)

**څوارلسمه عقیده** : زکوة صرف د مال لسمه برخه ورکول دي. هغه هم صرف خپل مذهبي مشر ته ورکول جائز دي. (۶)

**پنځلسمه عقیده** : د بیت الله د حج فرضیت ختم شو، ددې په بدل کې په ۲۷ رمضان او ۹ ذی الحجة کې په کوه مراد تربت کې حج کول پکار دي. (۷)

**شپاړسمه عقیده** : د ذکر اذکار یا سجدې په وخت قبلې ته د مخ کولو ضرورت نشته. (۸)

**اولسمه عقیده** : په تربت کې هم هغوی منٰی، حرم، مقام محمود، آب کوثر، شجر طوبی، پل صراط، عرفات، غار حرا، آب زمزم وغیره ټول جوړ کړي دي. هم هغه حقیقي تصور کوي.

---

(۱) موسی نامه : ص ۹۹، ۱۰۰، ۱۰۱

(۲) نور تجلی ص : ۶۹، نور هدایت: ۸۳، ۸۷ وغیره

(۳) موسی نامه ص ۱۵۳، معراج نامه قلمی نسخه : ۳٤، ۳۵

(٤) قلمی نسخه ملا نور الدین ص ۱۲۱

(۵) میں ذکری هوں : ص ۷

(٦) قصص النیعی : ص ٤۸

(۷) موسی نامه : ص ۱۳٤

(۸) نسخه کمالات

**اتلمه عقيده** : محمّد مهدي په ځمکه کې غوپه وخوړه او اسمانونو ته تللی دی، اوس په عرش باندې الله پاك سره اوږه په اوږه ناست دی

**نولسمه عقيده** : اودس. لمونځ. د جنازې لمونځ هيڅ نشته. د جنازې د لمونځ صورت دا دی چې خپلې ذکر خانې ته مړي يوسي، څه ذکر کوي بيا مړی خاورو ته سپاري



## [د ذکري فرقې نظريات. د قرآن او حديث څخه يې جوابونه]

## لومړی عقيده

## د زکريانو کلمه د اهل سنت والجماعت څخه جدا ده:

**جواب** : د محمد رسول الله په ځای نور پاك نور محمد مهدي رسول الله يا داسې قسم نور الفاظ ويلو سره د رسول اللهﷺ د رسالت انکار لازميږي. د رسول اللهﷺ د رسالت څخه انکار بالاتفاق کفر دی، د رسول اللهﷺ د رسالت او د ختم نبوت احاديث متواتر دي. چې د هغې انکار د ائمه اربعه وو او پوره امت په نزد کفر دی. د رسول اللهﷺ ختم نبوت د قرآني آيتونو او ډېرو حديثونو او د ائمه وو ټولو د اقوالو څخه ثابت دی. ورسره دا چې داسې انسان چې د ختم نبوت عقيده نه مني. هغه واجب القتل دی.

د رسول اللهﷺ د ختم نبوت په اړه حديثونه:

۱: ﴿عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- لِعَلِيٍّ «أَنْتَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى إِلاَّ أَنَّهُ لاَ نَبِيَّ بَعْدِي»﴾[1]

**ترجمه** : عامر رحمه الله د خپل والد محترم سيدنا سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت کوي. هغه د پلار نه روايت کوي: چې رسول اللهﷺ سيدنا علي رضي الله عنه ته وفرمايل: ته ما

[1]) دا روايت په بخاري جلد ۲ ص ۶۳۳، مسلم جلد ۲ ص ۲۷۸، کې دی، د راوي حديث سيدنا سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه علاوهددې حديث نقل کونکي ۱۴ صحابه کرام دي، پدې وجه دا حديث د متواتر درجې ته رسيږي.

سره هم هغه نسبت لرې کوم نسبت چې د سيدنا هارون عليه السلام د سيدنا موسى عليه السلام سره وو: خو زما نه وروسته بل نبي نشته. د مسلم په يو روايت کې دي چې زما نه وروسته نبوت نشته.

۲. ﴿ عَنْ ثَوْبَانَ رضى الله تعالى عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ كُلُّهُمْ يَزْعَمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لَا نَبِيَّ بَعْدِي ﴾ (۱)

**ترجمه**: د سيدنا ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دى. رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد وفرمايلو چې زما په امت کې به ديرش دروغجن انبياء پيدا کيږي. هر يو به دا ګمان کوي چې زه نبي يم. حال دا چې زه خاتم النبيين يم. زما نه وروسته بل نبي نشته.

۳. ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله تعالى عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ الرِّسَالَةَ وَالنُّبُوَّةَ قَدِ انْقَطَعَتْ فَلَا رَسُولَ بَعْدِي وَلَا نَبِيَّ ﴾ (۲)

**ترجمه**: د سيدنا انس بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل رسالت او نبوت ختم شوى دى. زما نه وروسته نه رسول شته او نه هم کوم نبي د دينه علاوه پدې مضمون ښه ډېر حديثونه شتون لري.

## دويمه عقيده

## محمد ﷺ د ټولو انبياؤ عليهم السلام سردار دى.

**جواب**: د اهل سنت والجماعت عقيده ده چې د ټولو انبياؤ عليهم السلام سردار محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم دى. د هغوى په افضل الرسل او سيد المرسلين کيدو باندې هم د ټولو اتفاق دى. ددې انکار هم د اهل سنت والجماعت په نزد کفر دى.

(۱) ابوداؤد جلد ۲ ص ۲۲۷، ترمذي: جلد ۲ ص ٤٥، د حديث روايت کونکي يوولس صحابه کرام دي، دا حديث هم متواتر دى. (واسناده صحيح)

(۲) ترمذي جلد ۱ ص ٥١، ددې حديث راويان هم ښه دي. (واسناده صحيح)

## دريمه عقيده

## د محمد اټکي د نبوت منکر کافر دی

**جواب** : پدې اړه د اهل سنت والجماعت عقيده دا ده چې د رسول الله ﷺ د نبوت منکر کافر او د محمد مهدي د نبوت دعوه ثابتونکی کافر دی

## څلورمه عقيده

## محمد مهدي اټکي د الله نور دی.

يعنې دې نبي په الله پاك كې حلول كړی دی.

**جواب** : دا عقيده ساتل هم د اهل سنت والجماعت په نزد كفر ده

قاضي عياض مالكي رحمه الله فرمايي:

**﴿ فذلك كله كفر بإجماع المسلمين وكذلك من ادعى مجالسة الله والعروج إليه ومكالمته أو حلوله في أحد الأشخاص كقول بعض المتصوفة والباطنية النصارى والقرامطة ﴾**[1]

**ترجمه** : دا خبرې (د حلول عقيده) د ټولو مسلمانانو په نزد كفر ده. همدغه شان كوم سړی چې د الله پاك د برابری او الله پاك ته د ورتلو. هغه سره د خبرو كولو دعوه كوي. يا په يو سړي كې د الله پاك په اړه د حلول دعوه كوي، لكه چې د بعض صوفيانو. باطنيه. نصاری او قرامطه دعوه ده.

## پنځمه عقيده

## د مهدي نه مراد هم دا مهدي اټکي دی

**جواب** : دا دعوه خو په شروع كې وه چې زه مهدي يم. بيا يې د رسول كيدو دعوه وكړه. بيا يې د سيد المرسلين كيدو دعوه وكړه. د رسول الله ﷺ نه وروسته اوس د نبوت دعوه كول كفر دی. دا خبره خو د عقيده نمبر ۱ د لاندې تيره شوې ده. په مشهور

---

[1] الشفاء جلد ۲ صفحه ۲٤٥

کتاب الاشباه والنظائر کې علامه ابن نجیم رحمه الله فرمايي:

﴿إذا لم يعرف أن محمدا صلى الله عليه وسلم آخر الأنبياء فليس بمسلم؛ لأنه من الضروريات﴾[1]

**ترجمه**: کله چې يو سړی دا نه پيژني چې رسول الله ﷺ آخري رسول دی: نو هغه مسلمان نه دی، ځکه چې دا عقيده د دين د ضروورياتو څخه ده.

همدغه شان په شرح فقه اکبر کې دي:

﴿دعوى النبوة بعد نبينا صلى الله عليه وسلم كفر بالاجماع﴾[2]

**ترجمه**: زمونږ د رسول الله ﷺ نه وروسته د نبوت دعوه کول بالاجماع کفر دی.

## شپږمه عقيده

## د قرآن کريم د څلوېښتو پارو عقيده ساتل

او بيا په هغې کې لس پارې د ځان لپاره پټې ايښودل.

**جواب**: دا عقيده ساتل د اهل سنت والجماعت په نزد صريح کفر او الحاد دی. د اهل سنت والجماعت دا عقيده ده: څنګه چې الله پاك قرآن کريم نازل کړی دی. هم هغه شان تر ننه پورې زمونږ سره محفوظ دی، پديکې يو حرف هم ندی ضايع شوی. لکه چې د الله پاك ارشاد دی:

﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾[3]

**ترجمه**: بېشکه مونږ قرآن نازل کړی او هم مونږ ددې حفاظت کونکي يو.

## اوومه، اتمه او نهمه عقيده

چيرته چې په قرآن کريم کې د محمّد نوم راغلی. ددې څخه مراد محمّد مهدي دی او ﴿مقاما محمودا﴾ ددېنه مراد مقام محمود نه دی. بلکې ددېنه مراد هغه غر دی چيرته چې د ذکري مذهب والو حج کيږي او په ټولو انبياؤ ﷺ لازمه ده چې هغوی په مهدي

---

[1] الاشباه والنظائر ص: ۲۹۶، کتاب السير من الفن الثاني
[2] شرح فقه اکبر ص: ۲۰۲
[3] الحجر: ۹

اتکي باندې ايمان راوړي.

**جواب** : دا هم د قرآن کريم په تحريف کې شمارل کيږي، لکه چې علامه قاضي عياض رحمه الله فرمايي:

﴿ وكذلك وقع الإجماع على تكفير كل من دافع نص الكتاب أو خص حديثا مجمعا على نقله مقطوعا به مجمعا على حمله على ظاهره ﴾ (۱)

**ترجمه** : همدغه شان هر هغه سړی چې د کتاب الله صريح انکار کوي. يا په يو داسې حديث کې تخصيص کوي، چې د هغې په نقلولو باندې اجماع شوې وي، پدې باندې هم اجماع شوې وي چې دا حديث په خپل ظاهر باندې محمول دی: نو د داسې سړي په کفر د ټولو اجماع ده.

## لسمه عقيده

## دانبياؤ او ملايکو (فرشتو) سپکاوی کول جائز دی.

**جواب** : دا عقيده هم د اهل سنت والجماعت په نزد خبيث ترين کفر دی.

په مستند کتاب جامع الفصولين او البحر الرائق کې موجود دي:

﴿ ولم يقر ببعض الانبياء عليهم السلام او عاب نبيا بشئ او لم يرض بسنة من سنن المرسلين عليهم السلام كفر ﴾ (۲)

**ترجمه** : څوك چې په انبياؤ عليهم السلام کې د يو پيغمبر د نبوت اقرار نه کوي. يا په يو نبي باندې معمولي عيب هم ولګوي، يا د انبياؤ عليهم السلام په سنتو کې په يو سنت باندې راضي نه وي: نو داسې سړی کافر دی.

همدغه شان علامه ابن نجيم رحمه الله د ملايکو د سپکاوی په اړه ليکي:

﴿ وَبِعَيْبِهِ مَلَكًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ أَوْ الِاسْتِخْفَافِ بِهِ ﴾ (۳)

---

(۱) الشفاء : جلد ۲ ص ۲٤۷

(۲) جامع الفصولين جلد ۲ ص ۳۰۲، البحر الرائق : جلد ٥ صفحه ۱۳۰

(۳) البحر الرائق : جلد ٥ صفحه ۱۳۱

**ترجمه** : په فرشتو کې په چا عيب لګول يا د هغوی سپکاوی کول کفر دی

## يولسمه عقيده

## شريعت محمديه ﷺ منسوخ شوی دی !

**جواب** : ددې مطلب دا دی چې د ذکري فرقې د دين اسلام سره هيڅ تعلق نشته. ځکه چې هغه خو منسوخ شو؛ نو د هغوی تعلق خو د هغه دين سره دی چې د محمّد مهدي دی؛ نو اوس هغه ته د دين اسلام والا څنګه ويل کيږي.

## دولسمه عقيده

## لمونځ کول صحيح نه دي،

ځکه چې ددې په کولو سره انسان مرتد کيږي.

**جواب** : ددې عقيدې په اړه صاحب د جامع الفصولين فرمايي:

﴿ لا اصلي اذ لا تجب علي يكفر فيه ﴾[1]

**ترجمه** : که چا وويل: چې زه پدې وجه لمونځ نه کوم، چې په ما باندې لمونځ فرض نه دی: نو په داسې ويلو سره به هغه کافر شي.

همدغه شان قاضي عياض رحمه الله فرمايي:

﴿ وكذلك نقطع بتكفير كل من كذب وأنكر قاعدة من قواعد الشرع الخ ﴾[2]

**ترجمه** : همدغه شان داسې سړي ته قطعي کافر وايو. چې د شريعت د يوې قاعدې او د شريعت د داسې حکم تکذيب وکړي. چې د رسول الله ﷺ څخه متواتر ثابت وي. په هغې باندې اجماع وي. مثلاً: څوک د پنځه وخته لمانځه نه انکار وکړي. يا د هغې د رکعتونو د مقدار او سجدې نه انکار وکړي

[1] جامع الفصولين : جلد ۲ ص ۳۰۲

[2] الشفاء جلد ۲ ص ۱۷۳، طبعة مكتبة روضة القرآن پشاور

# د دیارلس څخه تر نولس پورې عقائد

ددې بيان پورته په لنډ ډول ياد شوى. بيا يې وګورئ:

**جواب** : پدې سره هم د اسلام د اركانو څخه انكار ثابتيږي. د اركان اسلام منكر هم د اهل سنت والجماعت په نزد بالاتفاق كافر دى. پدې سلسله كې په فتح الجليل شرح مختصر الخليل كې دي

﴿ او كفر بان استحل محرما مجمعا على تحريمه معلوما من الدين كالشرب للخمر والزنا والسرقة والقذف والربا او انكر حل البيع واكل الثمار، و وجوب الصلاة والصوم ولو على ولى مكلف او وجوده مكان او البيت او المدينة او المسجد الحرام او الاقصى او استقبال الكعبة او صفة الحج او الصلاة او حرفا من القرآن او زاده او اعجازه او الثواب والعقاب قال القاضى عياض اجمع المسلمون على تكفير كل من استحل القتل او شرب الخمر او شيئا مما حرم الله تعالى بعد علمه بتحريمه كاصحاب الابحة من القرامطة وبعض غلاة الصوفية ﴾ [1]

**ترجمه** : كوم سړى چې يو داسې حرام حلال وګڼي چې د هغې حرام كيدل د اجماع او دين نه په واضحه توګه معلوميږي: نو هغه كافر دى، لكه شراب څښل. زنا. غلا. تهمت لګول. سود خوړل او څوك چې اخستلو او خرڅولو د حلال كيدو. او د ميوې د خوراك د جائز كيدو منكر وي. يا د لمونځ او روژې د فرضيت څخه منكر وي. يا د مسجد اقصى منكر وي. يا د مدينې منورې منكر وي يا د مسجد حرام منكر وي يا د قرآن كريم د يو حرف منكر وي يا حرف زياتوي يا يې بدلوي يا د قرآن كريم د معجزه كيدو څخه منكر وي. يا د ثواب او عذاب منكر وي. ددې ټولو عقيدو څخه ساتونكى كافر دى.

قاضى عياض رحمه الله فرمايي: چې د مسلمانانو اجماع ده. هر هغه سړي ته دي كافر وويل شي چې وژل، شراب څښل. زنا كول يا يو داسې شى كوم چې الله پاك حرام كړى دى، حلال ګڼي، حال دا چې د هغې د حرام كيدو علم ورته وي، لكه اباحتي قرامطه او د

[1]) فتح الجليل شرح مختصر الخليل : جلد ۹ صفحه ۲۱۰

غالي صوفیانو حال دی، حرام حلال ګڼلو له امله دا ټول کافران دي [۱]

## د پاکستان د قومي اسمبلۍ د فیصلې مطابق هم ذکري فرقه کافران دي

د حکومت پاکستان نیشنل اسمبلۍ چې کومه فیصله د قادیانیانو په اړه ورکړې وه. ذکري فرقه پخپله پدیکې داخله شوه. مثلا د پاکستان په قانون کې دي.

**۲۶ ماده** کوم سړی چې د خاتم الانبیاء محمد مصطفی ﷺ په ختم نبوت باندې مکمل ایمان نه لري، یا د رسول الله ﷺ نه وروسته په څه اندازه کې د نبي کیدو دعوه کوي. یا پداسې مدعي نبوت یا مصلح باندې ایمان لري. هغه به په آئین او قانون کې مسلمان نه وي.

شق ۳: کوم سړی چې په محمد رسول الله ﷺ چې آخري نبي دی. د هغه په خاتم النبیین کیدو باندې قطعي او غیر مشروط طور ایمان نه لري. څوك چې د محمد ﷺ نه وروسته د هر مفهوم یا هر قسم نبي کیدو دعوه کوي، یا داسې نبي مدعي یا مصلح تصور کوي. هغه د آئین او قانون په اغراضو سره مسلمان نه دی.

**تشریح**: ذکري چونکې محمد رسول الله ﷺ آخري نبي نه مني. محمّد مهدي اټکي خپل آخري رسول او مهدي تصور کوي. د هغه کلمه وایي. کومه کلمه چې د مسلمانانو د کلمې په خلاف ده. د ارکان اسلام لکه لمونځ. روژې. زکوة. حج او قبلې وغیره څخه بالکل منکر دي. لهذا د پاکستان د دستور مطابق هغوی غیر مسلم دي.

## ذکري د بلوچستان د شرعي عدالتونو په زد کې

د صوبه بلوچستان په شرعي عدالتونو کې هم تر اوسه پورې ذکریان غیر مسلم شمارل کیږي. هغوی د مسلمانانو او ذکریانو ترمنځ نکاح جائز نه ګڼي. تر دې چې هغوی ته د مسلمانانو په طریقه کې قسم هم صرف د الله پاك په نوم نه ورکوي، ځکه چې د هغوی په نزد ددې هیڅ حیثیت نشته. هغوی ته د..کوه مراد.. او د..تاپک.. واسطه ورکولو سره قسم ورکول کیږي؛ نو هغوی ددې قسم خوړولو څخه ځان ساتي.

---

[۱] الشفاء: جلد ۲ ص ۱۷۳

ژندی به مونږ صرف د يوې فيصلې حواله ورکوو. د مقدمې فيصله په اته مخونو کې ليکل شوې ده، مونږ دلته صرف حکم ليکو
نقل فيصله عدالت فيملي کورټ جج کولواه اواران
مدعيه فيض محمد ولد دلمراد. حبيب ولد شهداد سکنه لباح
په نوم د بدل ولد باران، موسى ولد رحمت مسماة ايمنه بنت موسى سکنه لباچ

## دعوى تنسيخ نکاح ۲۰ جنورى ۱۹۷۵ء

حکم : چونکې مدعى عليه اول د ذکري مذهب تابع وو. خپل ځان يې مسلمان ظاهر کړ. د يوې مسلمانې جينۍ سره يې واده وکړ. اوس هغه مرتد د ذکري فرقې عقيدتمند شوی، ددې مذهب خلک د قاديانيانو په شان رسول اللهﷺ آخري نبي نه مني. ددې مذهب خلک صرف د کوتو په شمېر په بلوچستان کې اوسيږي. دا خلک د پنځه وخته لمانځه څخه منکر دي. د حج کعبة الله منکر دي. دا خلک په تربت د ضلع مکران په يو غر کوه مراد هر کال حج کوي، د رمضان د ديرشو روژو منکر دي. دا خلک نعوذ بالله نقل کفر کفر نه باشد داسې کلمه وايي لااله الاالله نور پاك محمد مهدى رسول الله، دلته د محمد نه مراد رسول اللهﷺ نه دی، بلکې يو بل محمد دی. چې ته چې محمد اټکي وايي. دا اټك په پنجاب کې د يو ځای نوم دی. دا سړی د هغه ځای اوسيدونکی وو. مکران ضلع ته راتلو سره يې ددې مذهب بنياد کېښود. دا خلک صرف د شپې په آخري برخه کې ذکر کوي. پدې وجه مسلمانان دلته دوی ته ذکري وايي. دا خلک خپل ځانته هم ذکري وايي
چونکې مدعى عليه د درواغو څخه کار واخست او د يو مسلمان سړي د لور سره يې واده وکړ او خپل ځان يې مونږ ته په دروغه مسلمان وښود : خو هغه په اصل کې ذکري وو. هغه صرف د واده له خاطره داسې وکړه. جينۍ ته يې هم چل ورکړ او په خپل مذهب يې راواړوله
لهذا د پورته ليکل شوي استفتاء په حواله او د فقهاء کرامو د تصريحاتو په وجه دا نکاح بالکل نه ده شوې . مدعيانو ته د اعتراض حق حاصل دی. زه دا حکم کوم چې

دا نکاح دي فسخ کړی شي. مدعی علیها ایمنه د بدل مدعی علیه د زوجیت نه آزاده ده او هغه دې د مسماة ایمنه نه جدا شي

دا فایل دفتر ته داخل شو. فریقین موجود دي حکم واوږول شو

۲۰ جنوری ۱۹۷۵ء

دستخط: قاضی برکت الله مهر

قاضی کولواه وفیملی کورټ جج کولواه آواران ... مکران

## د ډپټي کمشنر لسبیله رجسټریشن افسرانو ته حکم

ډپټي کمشنر لسبیله یو حکم پدې اړه جاري کړی. چې د اخباري رپورټ لاندې لیکل شوی:

لسبیله ۲۶ اپریل (نمایندہ امن) ډپټي کمشنر لسبیله د تحصیل رجسټریشن افسرانو ته هدایت کړی. چې هغوی دي د ذکري قبیلي کسانو ته د شناختي کارډ جاري کولو په وخت هغوی ته غیر مسلم لیکي. چې هغوی ته په مسلمان لیکلو سره عوامو کې انتشار پیدا نشي. یاد ساتی چې اوس اوس په لسبیله کې ځینو علماؤ د ذکري قبیلي د کسانو په اړه مسلمان ظاهرولو باندې اعتراض کړی وو (۱)

## د ذکري فرقې په اړه د مفتیا نو رایې

مولانا محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله فرمایي

دې ذکریانو سره هر قسم تعلق ساتل جائز نه دي (۲)

د یو سوال په جواب کې فرمایي چې هغوی د خپلو اصولو او فروعو په اعتبار سره مسلمانان نه دي. په دې وجه د هغوی حکم د قادیانیانو، بهائیانو او هندوانو په شان غیر مسلم اقلیت دی. کوم خلک چې ذکریان مسلمانان ګڼي یا په هغوی کې شامل دي هغوی ته پکار دي چې توبه وکړي (۳)

---

۱) اخبار امن ۲٦ اپریل ۱۹۷٦ء کراچی)
۲) کیا ذکری مسلمان ہیں؟
۳) آپ کے مسائل اور ان کا حل جلد ۱ ص ۱۸٦

8

## د ذکري مذهب په اړه د معلوماتو لپاره دا کتابونه مطالعه کړئ

- .... مهدوی تحریك
- .... نزهة الخواطر، ج ٤ ص ۳۲۲
- .... ذکر توحید
- .... میں ذکری هوں
- .... عمدة الوسائل، مولانا محمد موسی دشتی
- .... مکران تاریخ کي آئیني میں
- .... ذکر وحدت
- .... نور تجلی
- .... ذکر الهی، ملا محمد اسحاق درزئی
- .... سفرنامه مهدی، شیخ عزیز لاعی
- .... نور هدایت
- .... ثنائي مهدی، ملا ابراهیم، وملا عزت
- .... فرمودات مهدی
- .... سیر جهانی (قلمی نسخه)
- .... حقیقت نور پاك
- .... معراج نامه

## د ذکري فرقې په رد کې لیکونکي کتابونه

۱: ذکری دین کی حقیقت........ مولانا احتشام الحق آسیا آبادی

۲: فرقه ذکریه پر ایك نظر ....... مولانا محمد حیات رحمه الله

۳: ذکری مذهب اور اسلام ....... مولانا عبدالمجید قصر قندی رحمه الله

٤: ذکری فرقه ......... مولانا مفتی رشید احمد لدهیانوی رحمه الله

٥: کیا ذکری مسلمان هیں؟ ....... مولانا محمد یوسف لدهیانوی شهید رحمه الله



# [قادياني فرقه]

## د قادياني فرقې تاريخ

د قرآنکريم آيتونه ،احاديث او د ټول امت اجماع ده چې رسول الله ﷺ آخري نبي دی. هم دا خبره په قرآن کريم کې تر سلو زيات کرته بيان شوې ده؛ خو ددې سره سره رسول الله ﷺ دا خبر ورکړی چې:

﴿ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُبْعَثَ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ قَرِيبًا مِنْ ثَلَاثِينَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللهِ ﴾ [1]

**ترجمه**: قيامت به تر هغه نه قائميږي تر څو ديرشو پورې دجالان او درواغجن نه وي پيدا شوي، چې په هغوی کې به هر يو دا دعوه کوي چې هغه د الله پاك رسول دی.

د رسول الله ﷺ دا غيبي خبر د هغه د ژوند په آخري زمانه کې مسيلمه کذاب د نبوت دعوه وکړه، همدغه شان د يمن يو اوسيدونکي اسود عنسي او يوې مکارې چالاکې عيسايي ښځې سجاح بنت حارث عراقي د رسول الله ﷺ نه وروسته د خپل نبوت اعلان وکړ. ددېنه وروسته هم خلکو د نبوت دعوه وکړه، بيا د اتلسمې صدی په آخره کې هم يو سړي د نبوت دعوه وکړه، چې خلک يې د غلام احمد قادياني په نوم پيژني. په ۱۸۵۷ء کې چې کله د برطانيې انګريزانو په کوم مکر او چالاکی سره مسلمان حکمرانان د تخت او تاج نه محروم کړه، د ټولو اختياراتو واګې يې په خپل لاس کې واخستل، په هغوی کې دا ويره پيدا شوه چې چيرته دا مسلمانان زمونږ نه بيا اقتدار وانه خلي، ددې خطرې له امله هغوی د مسلمانانو د کمزورې کولو لپاره په هغوی کې د انتشار او جدايي تخم کرل شروع کړ. د هغوی نه يو غلام احمد قادياني هم وو، چې په هغه سره هغوی د اسلام په بنيادي عقائدو باندې ضرب ولګلولو. کله يې د نبوت دعوه وکړه او کله يې پرې انبياؤ ﷺ ته بدې ردې وويل، کله يې پرې د قرآن او حديث د غلطولو کوششونه وکړه او بيا په آخره کې جهاد د کوم نه چې د برطانيې د حکومت سخته ويره وه، چې زمونږ حکومت به دوی د جهاد په زور ختم کړي، پدې

[1] بخاری جلد ۲ صفحه ۱۰۵٤، کتاب الفتن مسلم جلد ۲ ص ۳۹۷، کتاب الفتن

وجه هغوی د مرزا غلام احمد قادیاني په خوله دا اعلان وکړ. چې جهاد اوس ختم شو، ددې خبرې مرزا صاحب څو کرته اعلان وکړه. هر هغه سړی چې ما سره بیعت کوي هغه ما مسیح موعود مني، په هغه کې دا عقیده هم ده چې اوس پدې زمانه کې جهاد حرام شو

کله به یې ویل چې: اردو شعر: چھوڑ دو اے دوستو جہاد کا خیال

دین کیلئے حرام ہے اب جنگ وقتال

ترجمه ای ملګرو د جهاد فکر له ځانه لرې کړی. د دین د ساتنې لپاره جنګ کول حرام دي

بهر حال انګریزانو د خپل مقصد د پوره کولو لپاره د مسلمانانو په فکري وحدت کې اختلاف پیدا کړ، بالاخره هغوی د یوې اوږدې مودې پورې په بر صغیر کې خپل حکومت وکړ.

## قادیاني فرقه کله وجود ته راغله

دا فرقه په ۱۸۴۰ء کې د هندوستان په صوبه پنجاب کې شروع شوه

## د قادیاني فرقه جوړونکي غلام احمد قادیاني حالات

**نوم**: یې غلام احمد وو، وطن یې قادیان، ضلع ګورداسپور، پنجاب دی.

پیدایش یې په ۱۸۳۹ء یا ۱۸۴۰ء کې شوی دی، د پلار نوم یې حکیم غلام مرتضی وو.

**زده کړه**: ابتدایي زده کړه یې په خپله علاقه کې کړې. مرزا صاحب ته د تعلیم نه زیات د ژبې زده کولو شوق وو، پدې وجه هغوی د اردو نه علاوه، فارسي، عربي او انګریزي زده کړه کړې وه.

**وظیفه**: په ابتدایي حالت کې د سیالکوټ عدالت کې لیکوال وو، کله چې یې د مختار کارۍ امتحان ورکړ؛ نو په هغې کې ناکامه شو.

## د بحث او مناظرې شوق

مرزا صاحب د بحث او مناظرې ډير شوق درلود. د آريانو او عيسويانو سره هغوی ډيرې مناظرې کړې دي

## دده بې حياء خبرې

د مرزا صاحب ژبه آزاده وه. چانه چې به يې زړه څه غوښتل هغه به يې ويل پدامې ويلو به هغوی شرم نه کولو. علماء اسلام سره به يې سختې خبرې کولې او هغوی ته به يې کنځلې کولې

## د هغوی د بې حياء خبرو يو مثال

مرزا صاحب د يو سړي په اړه دا شعرونه ويلي:

وَمِنَ اللِّئَامِ أَرَى رُجَيْلاً فَاسِقاً غُوْلاً لَعِيْناً نُطْفَةَ السُّفَهَاءِ

**ترجمه**: زه په رذيلانو کې يو فاسق سړی وينم. هغه يو ملعون شيطان دی. د کم عقلو نطفه ده.

شُكُسٌ خَبِيثٌ مُفْسِدٌ مُزَوِّراً نَحِسٌ يُسَمَّى السَّعدَ فِي الْجُهَلَاءِ

**ترجمه**: بدګويه. خبيث. مفسد او خبره ډولي ښکاره کونکی دی. سپيره دی. چې د هغه نوم جاهلانو سعد ايښی

آذَيْتَنِي خُبْثاً فَلَسْتُ بِصَادِقٍ إِنْ لَمْ تَمُتْ بِالْخِزْيِ يَا ابْنَ جِفَاءٍ

**ترجمه**: په خپل خباثت سره يې ماته ډير تکليف راکړی. زه به رېشتونی نه يم. که په ذلت سره ستا مرګ رانشي اې حرامي.[1]

مرزا غلام احمد قادياني د ټولو نه اول د مجدد کيدو دعوه وکړه. بيا يې د محدث کيدو او بيا يې په ۱۸۹۱ء کې د عيسی (عليه السلام) کيدو دعوه وکړه. په ۱۸۹۲ء کې هغه د خپل مهدي کيدو دعوه وکړه. بيا يې په ۱۹۰۱ء کې د نبي کيدو دعوه وکړه. د مرزا

[1]) حقيقة الوحی مطبوعه ميګزين قاديان کا تتمه: ص ۱٤ تر ۱۹ پورې

غلام احمد ژوند د مختلفو او متضادو دعوو څخه عبارت دی او ټولې دعوې يې په خپل منځ کې سره ټکر لري

**وفات** : آخر مرزا غلام احمد قادياني په ۲۶ مئ ۱۹۱۸ء په لاهور کې وفات شو: خو د قاديان په ښار کې دفن کړی شو



## د قادياني فرقې نظريات او عقائد

۱: آخري نبي رسول الله ﷺ نه دی. بلکې مرزا غلام احمد قادياني دی .[۱]

۲: په مرزا غلام احمد قادياني باندې به وحی د باران په شان نازليده. هغه وحی به کله په عربی، کله هندی او کله په فارسی او کله په نورو ژبو نازليدله [۲]

۳: د مرزا غلام احمد قادياني تعليم اوس د ټولو انسانانو لپاره د نجات ذريعه ده .[۳]

۴: څوك چې د غلام احمد نبوت نه مني هغه جنهمي کافر دی .[۴]

۵: د مرزا غلام احمد قادياني د معجزاتو تعداد لس لکو ته رسيږي .[۵]

۶: مرزا صاحب د رسول الله ﷺ نه لوی شان والا وو .[۶]

۷ مرزا صاحب د بني اسرائيلو د انبياؤ ﷺ نه ډير افضل دی .[۷]

۸ مرزا صاحب د سيدنا عيسی ﷺ . نورو انبياؤ ﷺ او صحابه کرامو ﷺ په اړه د سپکاوی جملې استعمال کړي دي .[۸]

۹ د قرآن کريم د ډيرو آيتونو څخه مراد مرزا غلام احمد قادياني دی. مثلا

---

[۱] حقيقة النبوة : ص ۸۲، ۱٦۱، ترياق القلوب ص . ۳۷۹

[۲] حقيقة الوحی: ص ۱۸۰، البشری : جلد ۱ ص ۱۷ وغيره

[۳] اربعين : ص ٤، ۱۷

[۴] حقيقة النبوة ص ۲۷۲، فتاوی احمديه ص ۳۷۱

[۵] تتمة حقيقة الوحی ص : ۱۳٦

[۶] قول فصل: ص ٦، احمد پاکټ بکس : ۲٥٤، اربعين : ص ۱۰۳

[۷] دافع البلاء ۲۰، ازالة الاوهام کلاں .... ٦۷

[۸] حاشية ضميمه انجام آتهم : ص ٤، ۷، روحاني خزائن : جلد ۱٦، ۱۷۸، جلد ۹ صفحه ۳۸۷، اعجاز احمدي، جلد ۱۸ صفحه ٥۲، ۸۳

﴿ هُوَ الَّذِيٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ ﴾ [۱]

**ترجمه** الله هغه ذات دی چې خپل رسول یې د هدایت او حق دین سره خلکو ته رالیږلی. ددې لپاره چې د هغه دین پر ټولو غالب شي

۱۰ د سیدنا عیسی علیه السلام درې پیشن ګویی دروغ وختلې [۲]

۱۱ د جهاد حکم منسوخ شوی دی [۳]

۱۲ مرزا صاحب د سیدنا عیسی علیه السلام معجزات د مړو ژوندي کول و غیره لوبې او ټوقې کنې. چې داسې لوبې خو په کلکته او ممبی کې ډیر خلک کوي [۴]

۱۳ رسول الله ﷺ ته درجاتي معراج نه دی شوی. بلکې کشف شوی وو [۵]

۱۴ د مرګ نه وروسته په میدان محشر کې جمع کېدل نشته. د مرګ نه وروسته سیده جنت یا جهنم ته تلل دي [۶]

۱۵ د فرشتو هیڅ حقیقت نشته. بلکې دا خو ارواح کواکب دي. جبرئیل امین علیه السلام به وحی نه راوړه. هغه د روح کواکب نیره تاثیر نزول وحی دی [۷]

۱۶ په الله پاك او رسول ﷺ باندې یې افتراء کړې ده [۸]

۱۷ مرزا صاحب د ټولو انبیاؤ علیهم السلام مظهر دی. ټول هغه کمالات چې په انبیاؤ علیهم السلام کې وو. هغه ټول په مرزا کې موجود دي [۹]

۱۸ سیدنا عیسی علیه السلام وفات شوی. هغوی به قیامت ته نږدې بالکل نه راځي [۱۰]

۱۹ د قرآن او حدیث په اړه سپك الفاظ استعمالول [۱۱]

---

[۱]) التوبة : ۳۳، والفتح : ۲۸، والصف : ۹، اعجاز احمدي ۱۱/۲۹۱، دافع البلاء. ۱۳

[۲]) اعجاز احمدي ص : ۱٤

[۳]) حاشية اربعين : ۱۵٤، خطبه البا... : ص ۲۵

[۴]) حاشية ازالة الأوهام : ۲۱، ۱۲۱، حقيقة الوحی : ۷۸

[۵]) ازالة الاوهام کلاں : ص ۱٤٤، ۱٤٦، ۱٤۷ وغيره

[۶]) ازالة الاوهام کلاں : ص ۱٤٤، ۱٤٦، ۱٤۷ وغيره

[۷]) توضيح مرام : ص ۲۹

[۸]) ازالة الاوهام خورد : ص ۳۹٦، ازالة الاوهام : ص ۳۹۸

[۹]) قول فصل : ص ٦، تشحيذ الاذهان :جلد ۱۰/ صفحه ۱۰ او ۱۱

[۱۰]) ازاله کلاں : ۳۱۱/۲

[۱۱]) کلمة الفصل : ۷۳، (حقيقت ... مرزا بشير احمد) تحفه گولړويه . ص ۳۸، روحاني خزائن : ۱۹/۱٤، اعجاز احمد : ۳۰ وغيره

**نوټ** : ددېنه علاوه هم په ډېرو شیانو کې د علماء حق سره د هغوی اختلاف دی. مختصر طور دا ۱۹ عقائد بیان شو.

اردو شعر : آپ ہی اپنی اداؤں پر ذرا غور کریں ۱

میں کچھ عرض کروں گا تو شکایت ہوگی



## د قادیاني فرقې نظریات او عقائد. د قرآن او حدیث څخه د هغې جوابونه

### لومړی عقیده:

## د مرزا غلام احمد قادیاني دعوه ده، چې آخر الزمان نبي زه یم

**جواب** : د مسلمانانو متفق علیها عقیده ده چې آخر الزمان نبي سیدنا محمد رسول الله ﷺ دی، د هغوی نه وروسته څوك نبي منل کفر دی او اسلام د دایرې څخه وتلی دی، دا خبره د قرآني آیتونو او متعددو حدیثونو څخه ثابته ده او هم پدې باندې ټول مسلمانان متفق دي.

## د رسول الله ﷺ په ختم نبوت قرآني شهادت

۱: ﴿ مَاكَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴾[1]

**ترجمه** : محمد ﷺ ستاسو په سړو کې د چا هم پلار نه دی. بلکې د الله د رسول او د انبیاؤ ﷺ مهر دی او الله پاك په هر څه عالم دی.

۲: ﴿ وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ﴾[2]

**ترجمه** : او کله چې الله پاك د انبیاؤ ﷺ څخه وعده واخسته چې که زه تاسو ته کتاب او نبوت درکړم، بیا تاسو ته یو رسول راشي کوم چې به ستاسو د کتابونو او دین

---

[1] سورة الاحزاب : ٤٠

[2] آل عمران: ٨١

تصدیق کونکی وي: نو ناسو به ضرور بالضرور په هغه ایمان راوړی او د هغه مرسته به کوی

۳ ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾[۱]

**ترجمه** ته ورته ووایه اې خلکو زه ستاسو ټولو لپاره رالیږل شوی استازی یم

**نوټ**: مفتي محمد شفیع رحمه الله په خپل کتاب ختم نبوت کې د سلو آیتونو څخه استدلال کړی

## د رسول الله ﷺ په ختم نبوت د حدیثونو ګواهي

مفتي اعظم پاکستان مفتي محمد شفیع رحمه الله تقریبا دوه سوه حدیثونه یې راوړي ذکر کړي او هغه حدیثونه یې متواتر بنودلي چې د هغې څخه انکار ممکن نه دی څو حدیثونه یې لاندې لیکلی شي:

۱ ﴿وَأَنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلاثُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لاَ نَبِيَّ بَعْدِي﴾[۲]

**ترجمه** او بېشکه زما په امت کې به دیرش دروغجن د نبوت دعوه کونکي پیدا کیږي. هر یو به دا ګمان کوي چې زه نبي یم. حال دا چې زه خاتم النبیین یم. زما نه وروسته بل نبي نشته

۲ ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: إِنَّ مَثَلِي وَمَثَلَ الأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِي كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَى بَيْتًا فَأَحْسَنَهُ وَأَجْمَلَهُ إِلاَّ مَوْضِعَ لَبِنَةٍ مِنْ زَاوِيَةٍ فَجَعَلَ النَّاسُ يَطُوفُونَ بِهِ وَيَعْجَبُونَ لَهُ وَيَقُولُونَ هَلاَّ وُضِعَتْ هَذِهِ اللَّبِنَةُ قَالَ فَأَنَا اللَّبِنَةُ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ﴾[۳].

**ترجمه** د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما او د نورو انبیاؤ علیهم السلام مثال د یو محل په شان دی. چې ډېر په عمده طریقې سره جوړ شوی وي: خو په هغې کې د یوې خښتې ځای خالي وي. ګرځېدونکي د هغې د ننداری لپاره شاوخوا تاویږي: خو په هغې کې د یوې خښتې ځای خالي وي. وایي به چې دا

[۱]) سورة الاعراف: ۱۵۸

[۲]) ابوداؤد جلد ۲ ص ۲۲۸، ترمذي جلد ۲ ص ٤٥، مشکوة جلد ۲ ص ٤٦٥ (صحیح)

[۳]) بخاري ۱/٥٩، مسلم ۲/۲٤۸، ومشکوة ج۲ ص۵۱۱

یوه خبنته ولې نه ده کېښودل شوې؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هغه آخري خبنته زه یم او زه انبیاؤ ﷺ لره ختمونکی یم

۳ ﴿ وإني عند الله مكتوب خاتم النبيين، وإن آدم لمنجدل في طينته ﴾[1].

**ترجمه**: بېشکه زه د الله پاك په نزد خاتم النبیین ولیکل شوم. پداسې حال کې چې سیدنا آدم علیه السلام لا د اغرل شوې ختې په صورت کې وو

۴ ﴿ يا أيها الناس، إنه لا نبي بعدي، ولا أمة بعدكم ﴾[2].

**ترجمه**: اې خلکو! زما نه وروسته بل نبي نشته او ستاسو نه وروسته بل امت نشته همدغه شان د امت د اجماع څخه هم دا عقیده ثابته ده. لکه چې ملا علي قاري رحمه الله فرمايي:

﴿ دعوى النبوة بعد نبينا صلى الله عليه وسلم كفر بالاجماع ﴾[3].

**ترجمه**: زموږ د رسول الله ﷺ نه وروسته د نبوت دعوه کول بالاجماع کفر دی.

## په عقيده ختم نبوت باندې کتابونه

په ختم نبوت باندې علماء کرامو مستقل کتابونه لیکلي دي. د هغې نه د څینو کتابونو نومونه دا دي

۱: ختم نبوت .... مولانا مفتي محمد شفیع صاحب رحمه الله

۲: ختم نبوت کتاب و سنت کی روشنی میں... مولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله

۳: فلسفه ختم نبوت .... مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله

٤: عقيدة الامة في معنى ختم النبوة .... علامه ڈاکٹر خالد محمود

٥: لا نبي بعدی ....... مولانا سعید الرحمن انوری

٦: عقیده ختم نبوت اور اسلام .... مولانا ضیاء الرحمن فاروقی رحمه الله

۷: عقیده ختم نبوت اور فتنه قادیانیت ..... محمد عثمان نوری صاحب

---

[1] شرح السنة : ۱۳/۲۰۷ (اسناده حسن)
[2] المعجم الكبير للطبراني : ۷/۱۲۳ (اسناده صحيح)
[3] شرح فقه اکبر ص : ۲۰۲

۸ تکمیل دین اور ختم نبوت ... چوهدری افضل الحق صاحب
۹ ختم نبوت اور بزرگان امت .... مولانا لال حسین اختر رحمه الله
۱۰ خلافت صدیق اکبر اور تحریك ختم نبوت ... مولانا ارشاد احمد صاحب
۱۱ زوب میں تحریك ختم نبوت پر ایك نظر ... صاحبزاده طارق محمود صاحب
۱۲ خاتم النبیین .... علامه انور شاه کشمیری رحمه الله
۱۳ شرائط نبوت مسلك اختتام .... مولانا محمد ادریس کاندهلوي صاحب رحمه الله

## دویمه عقیده

په مرزا غلام احمد باندې به وحی د باران په شان نازلیدله. هغه وحی به کله په عربی کې. کله په هندی کې او کله په فارسی او کله په نورو ژبو کې وه [۱].

**جواب** : علماء کرام فرمايي: هر کله چې د نبوت دروازه بنده شوه: نو ضرور د وحی دروازه هم بنده شوه. دا څنګه ممکنه ده، چې وحی دي نازلیږي او نبی دي نه وي. هم دا خبره د قرآن او حدیث څخه ثابتیږي.

## د رسول الله ﷺ نه وروسته وحی نده نازله شوې

په قرآن کریم کې راځي

۱ ﴿ وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكَ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴾ [۲].

**ترجمه** : یقینا تاسو او ستاسو نه مخکې ټولو انبیاؤ علیهم السلام ته وحی شوې وه که چیرته تاسو شرك وکړ: نو ستاسو اعمال به برباد شي او شی به ته دنقصان پورته کوونکو څخه. پدیکې د ﴿ من قبلك ﴾ نه وروسته ﴿ من بعدك ﴾ نشته. چې د رسول الله ﷺ نه خو مخکې وحی نازله شوه او د رسول الله ﷺ نه وروسته هیڅ قسم وحی نه ده نازله شوې. پدې وجه دا جمله نه ده راوړل شوې

۲ ﴿ وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ [۳].

---

[۱]) حقیقة الوحی : ص ۱۸۰. البشری : ۱/۱۷ وغیره
[۲]) سورة الزمر : ٦٥
[۳]) البقرة : ۳

**ترجمه** : هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی. په هغه وحی چې په تا نازله شوې ده او په هغه وحی چې ستا نه مخکې نازله شوې وه او په آخرت باندې يقين کونکي دي پديکې هم د ﴿ من قبلك ﴾ نه وروسته ﴿ من بعدك ﴾ نشته. رسول الله ﷺ او د رسول الله ﷺ نه مخکې خو وحی نازل شوې: د هغوی نه وروسته وحی نده نازله شوې. همدغه شان د قرآن کريم په سوونو آيتونو کې دا مضمون بيان شوی دی

## د رسول الله ﷺ نه وروسته په وحی نه نازليږي د احاديثو څخه شهادت

۱: ﴿ وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ .... فقال ابوبكرٍ: إِنَّهُ قَدِ انْقَطَعَ الْوَحْيُ وَتَمَّ الدِّين ﴾ (۱)

**ترجمه** : د سيدنا عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې سيدنا ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: ببشکه د نبوت وحی ختمه شوه او دين پوره شوی دی

همدغه شان سيدنا عمر رضي الله عنه فرمايي:

﴿ وَإِنَّ الْوَحْيَ قَدِ انْقَطَعَ ﴾: **ترجمه** : د نبوت وحی ختمه شوې

همدغه شان د امت اجماع هم دا ده لکه قاضي عياض رحمه الله فرمايي.

﴿ وكذلك مَنِ ادَّعَى منهمْ أنه يُوحَى اليهِ وَإِنْ لَمْ يَدَّعِ النبوةَ .... فهولاءِ كُلُّهُمْ كُفَّارٌ مُكَذِّبُونَ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليهِ وسلَّمَ ﴾ (۲)

**ترجمه** : دغه شان هغه سړی هم کافر دی چا چې دا دعوه وکړه چې ما ته د نبوت وحی نازليږي، اګر چې د نبوت دعوه هم نه کوي .... پس دا ټول کافران دي د رسول الله ﷺ د تکذيب کولو د وجې نه.

په شروع کې د مرزا صاحب دا عقيده هم وه چې وحی ختمه شوې. په خپل کتاب حقيقت النبوة کې خپله وايي: چې په وحی نبوت باندې د ديارلس سوه کالو څخه مهر لګيدلی دی، بيا يې وروسته ددې خبرې څخه انکار وکړ. (۳)

---

۱) مشكوة : ص ٥٥٦

۲) الشفاء : ۲/۲۷۱

۳) حقيقة النبوة ص ۸۹، وكذا ازالة الاوهام : ۲۲۱

## دريمه عقيده

د مرزا غلام احمد قادياني تعليم. اوس د ټولو انسانانو لپاره د نجات ذريعه ده [1]

**جواب** : علماء فرمايي چې د خلاصي دارو مدار د رسول الله ﷺ په تابعداري دی. نه د مرزا غلام احمد قادياني په تعليماتو. هم دا خبره د قرآن او حديث څخه ثابتيږي. مثلا

۱ ﴿ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴾ [2]

**ترجمه** : او نه دی دا قرآن مګر د ټول عالم لپاره نصيحت دی

۲ ﴿ تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا ﴾ [3]

**ترجمه** : برکت والا دی هغه ذات چې په خپل بنده يې قرآن نازل کړ. د دې لپاره چې هغه د ټول عالم لپاره ويروونکی شي.

۳ ﴿ وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْ بَلَغَ ﴾ [4]

**ترجمه** : ما ته دا قرآن وحی شوی. چې د دې په ذريعه زه تاسو او هر هغه څوك ويروم. چا ته چې دا (قرآن کريم) ورسيږي.

۴ ﴿ وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ تَهْتَدُوْا ﴾ [5]

**ترجمه** : که تاسو د محمد ﷺ تابعداري وکړئ: نو هدايت به بيا مومی

همدغه شان د قرآن کريم د ډيرو آيتونو څخه د دې عقيدې خرابي معلوميږي.

## څلورمه عقيده

څوك چې د مرزا غلام احمد نبوت نه مني هغه جهنمي کافر دی [6]

---

[1]) اربعين : ص ٤، ١٧
[2]) سورة القلم : آيت ٥٢
[3]) سورة الفرقان : آيت ١
[4]) سورة الانعام : آيت ١٩
[5]) سورة النور : آيت ٥٤
[6]) حقيقة النبوة ص ٢٧٢، فتاوی احمديه : ٣٧١

**جواب** : د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي چې مرزا غلام احمد ځکه نبي نه دی. هر کله چې نبي نه دی: نو اوس د هغه نبوت منل څنګه ممکن دي. بلکې د هغه نبوت منل جهنم ته د تلو سبب دی

## پنځمه عقيده

د مرزا غلام احمد د معجزاتو تعداد لسو لکو ته رسيږي [1].

او د رسول الله ﷺ معجزات درې زره دي.

**جواب** . د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي چې دا خبره د عقيدې نه ده چې معجزه د نبوت د خصايصو څخه ده. نبوت په خاتم الانبياء ﷺ ختم شوی. لهذا اوس که څوک د معجزې دعوه وکړي: نو هغه به کافر وي [2]

همدغه شان په ابو شکور سالمي کې دي

﴿ ومن ادعى النبوة في زماننا فانه يصير كافرا ومن طلب منه المعجزات فانه يصير كافرا لانه شك في النص﴾ [3].

**ترجمه** : څوک چې زمونږ په زمانه کې د نبوت دعوه کوي. هغه کافر دی او څوک چې د هغه نه د معجزاتو مطالبه کوي. هغه به هم کافر شي. ځکه چې هغه د قرآن په نص کې شك کړی دی.

## شپږمه عقيده

مرزا صاحب د رسول الله ﷺ نه لوبې مرتبې والا وو [4].

**جواب** : علماء کرام فرمايي چې د رسول الله ﷺ څخه نه څوك په نبوت کې وړاندې دی او نه ترې څوك په درجاتو کې وړاندې کيدی شي

الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايي:

---

[1]) تتمة حقيقة الوحی : ص ۱۳٦

[2]) يواقيت : ۱/۱۵۷

[3]) ابو شکور سالمي : ص ۱۰۵، قلمي، بحواله اسلام اور قاديانيت

[4]) قول فصل ص ٦، احمد پاکټ بکس، ۲۵٤، اربعين ص ۱۰۳

﴿ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنْصُرُنَّهُ ﴾[1]

**ترجمه**: د ټولو انبياؤ ﷺ څخه دا وعده اخستل شوې وه، چې که رسول الله ﷺ په خپله زمانه کې بيا مومي: نو په هغه باندې ايمان راوړل او د هغوی نصرت کول واجب دي.

## د رسول الله ﷺ په افضليت باندې د احاديثو شاهدي

۱ ﴿ عن جابر بن عبد الله أن النبيّ صلى الله عليه وسلم قال: أَنَا قَائِدُ الْمُرْسَلِينَ وَلَا فَخْرَ ﴾[2]

**ترجمه**: رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د ټولو رسولانو ﷺ قائد يم او هيڅ فخر نه کوم.

۲ ﴿ أَنَا حَامِلُ لِوَاءِ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، تَحْتَهُ آدَمُ فَمَنْ دُونَهُ وَلَا فَخْرَ .... وَأَنَا أَكْرَمُ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ عَلَى اللهِ وَلَا فَخْرَ ﴾[3]

**ترجمه**: رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به زه د حمد بيرغ پورته کوم. د قيامت په ورځ به د هغې د لاندې آدم ﷺ او د هغې نه وروسته خلک وي. زه د الله پاک په نزد د ټولو مخکې وروسته خلکو څخه غوره يم او هيڅ فخر نه کوم.

## اوومه عقيده

مرزا صاحب د بني اسرائيلو د انبياؤ ﷺ څخه غوره دی.[4]

**جواب**: ددې عقيدې په اړه علماء کرام فرمايي: يو امتي چې هر څنګه شي هغه د نبي څخه نشي مخکې کيدی. هر کله چې دا خبره مسلمه ده: نو غلام احمد نبي نه دی. بيا د انبياؤ ﷺ څخه څنګه غوره کيدی شي. خپله مرزا ددې خبرې اقرار کوي چې غير نبي د نبي نه غوره کيدی نشي.[5]

---

[1] آل عمران: ۸۱

[2] الدارمي، وكذا مشكوة ص ٥١٤. (اسناده جيد)

[3] ترمذي كذا فى المشكوة ص ٥١٣، ٥١٤

[4] دافع البلاء ۲۰، ازاله کلاں ص: ٦٧

[5] ترياق القلوب وحقيقة النبوة: ١٥

# اتمه عقیده

مرزا صاحب د سیدنا عیسی علیه السلام، د نورو انبیاؤ علیهم السلام او صحابه کرامو رضي الله عنهم په اړه د سپکاوي جملې استعمال کړې دي [۱]

**جواب** د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي چې د نبي د تعظيم او تکريم حکم د الله پاك له طرفه دی او ددې څخه انکار کول کفر دی

مثلاً په قرآن کريم کې راځي

۱ ﴿ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ ﴾ [۲]

**ترجمه** ددې لپاره چې تاسو ایمان راوړئ په الله او د هغه په رسول ﷺ او د هغه عزت او تعظیم وکړئ

۲ ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ ﴾ [۳]

**ترجمه** اې مؤمنانو! خپل آوازونه د رسول الله ﷺ په آواز باندې مه اوچتوئ څنګه چې تاسو خپل منځ کې آواز اوچتوئ.

۳ ﴿ قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ﴾ [۴]

**ترجمه** : وفرمایئ! آیا په الله، د هغه په آیتونو او رسول الله ﷺ پسې تاسو ټوقې کولې؟ اوس عذرونه مه جوړئ. یقینا تاسو د ایمان راوړلو نه وروسته کافر شوي يئ

## د رسول الله ﷺ تعظیم د احادیثو څخه ثبوت

﴿ عن أبي هريرة رضي الله عنه: لَا تُفَضِّلُوا بَيْنَ أَنْبِيَاءِ اللهِ ﴾ [۵]

**ترجمه** : انبیاؤ علیهم السلام نه خپل منځ کې فضيلت مه ورکوئ

---

[۱] حاشية ضميمه انجام آتهم ص ۴، ۷، روحاني خزائن ۱۱ ۱۷۸، ۹/۳۸۷، اعجاز احمدي : ۱۸، ۸۳، ۵۲

[۲] سورة الفتح : آيت : ۹

[۳] سورة الحجرات :آيت : ۲

[۴] سورة التوبة : آيت: ۶۵، ۶۶

[۵] مشكوة ۱/۵۰۷ (متفق عليه)

﴿ عن مجاهد قال: أتي عمر برجل سب النبي صلى الله عليه وسلم فقتله ثم قال عمر: "من سب الله أو سب أحدا من الأنبياء فاقتلوه" ﴾ [۱].

**ترجمه** : سیدنا عمر رضي الله عنه ته یو سړی راوړل شو. چا چې رسول الله ﷺ ته کنځلې کړې وې، پدې باندې سیدنا عمر رضي الله عنه د هغه د وژلو حکم وکړ او وبې فرمایل څوک چې الله پاک یا یو نبي ته کنځل وکړي؛ نو هغه ووژنئ.

## د نبي د تعظیم ثبوت د عقائدو د کتابونو څخه

قاضي عیاض رحمه الله فرمایي:

﴿ من كذب بأحد من الانبياء او تنقص احد منهم او برئ منه فهو مرتدٌ ﴾ [۲].

**ترجمه** : چا چې د یو نبي تکذیب وکړ. یا یې تنقیص (کمی بیان کړ) وکړ. یا د یو نبي څخه بري (بېزاره) شو. هغه مرتد دی.

همدغه شان علامه ابن نجیم رحمه الله فرمایي:

﴿ وَيَكْفُرُ إِذَا شَكَّ فِي صِدْقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ سَبَّهُ أَوْ نَقَّصَهُ وَيَكْفُرُ بِنِسْبَةِ الْأَنْبِيَاءِ إِلَى الْفَوَاحِشِ ﴾

**ترجمه** : کافر کیږي چې کله د یو نبي په صدق کې شك وکړي. یا کنځلې وکړي. یا یې په شان کې تنقیص وکړي. یا یې نوم سپك واخلي او فواحش د انبیاؤ علیهم السلام طرفته منسوب کړي.

دصحابه کرامو د تعظیم او تکریم حکم د قرآن، احادیثو او د امت د اجماع څخه ثابت دی.

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم د تعظیم حکم د قرآن کریم څخه

۱: ﴿ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ ﴾ [۳].

---

[۱]) الصارم المسلول لابن تیمیة: ص ۱۹۵

[۲]) الشفاء : ۲/۲۶۲

[۳]) سورة الفتح :آیت ۲۹

**ترجمه** : محمد ﷺ د الله پاك رسول دی. کوم خلك چې هغه سره دي. هغوی سخت دي په کافرو باندې. خپل منځ کې نرم دي. ته به ووينې هغوی په رکوع او سجده کې، هغوی د الله پاك او د هغه رضا لټوي. د هغوی په مخونو د سجدو د اثر له امله نخښې دي.

۲. ﴿ يَوْمَ لَا يُخْزِي اللهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَه ﴾ (۱)

**ترجمه** : هغه ورځ به الله پاك نبي او هغه کسان چې هغوی سره يې ايمان راوړی دی. نه شرموي، دغه شان په ډيرو آيتونو کې د صحابه کرامو ﷺ د تعظيم حکم په قرآن کريم کې بيان شوی دی.

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم د تعظيم حکم د احاديثو څخه

په احاديثو کې په کثرت سره د صحابه کرامو ﷺ د تعظيم حکم دی. مثلاً

۱. ﴿ عن عمران بن حصين قال قال رسول الله ﷺ خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ﴾

**ترجمه** : زما د امت بهترين خلك زما ملګري دي. بيا د هغوی نه وروسته تابعين او بيا تبع تابعين دي. (۲)

۲. ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم: لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ، وَلَا نَصِيفَهُ ﴾ (۳)

**ترجمه** : تاسو زما صحابه کرامو پسې بدې ردې مه وايۍ. که په تاسو کې څوك د احد د غر برابر سره زر هم خرچ کړي؛ نو د صحابه کرامو د يو مد (نيمه کلو صدقې) ته هم نشي رسيدلی او نه د هغې نيمې (يعنې پاؤ صدقې) ته رسيدلی شي.

۳. زما نه وروسته زما او زما د خلفاء راشدينو په سنتو باندې عمل کوی (۴)

---

(۱) سورة التحريم :آيت: ۸

(۲) مشکوة : ۲/۵۵۳

(۳) بخاري : ۱/۵۱۵

(۴) مشکوة : ۲/۵۵۳، ترمذي : ج۲ ص۹۶

په همدې وجه د علماء حق اجماع ده، چې د صحابه کرامو ﷺ طرفته ګوته اوچتول او هغوی ته کنځلې کول دا کار انسان د اسلام څخه خارجوي (۱)

نور وضاحت په الکفایة للخطیب بغدادی او په الاصابة لابن حجر ﷫ کې کتلی شی

## نهمه عقیده

د قرآن کریم د شلو څخه په زیاتو آیتونو کې الله پاك خپل رسول ﷺ ته خطاب کړی: خو مرزا غلام احمد قادیاني وایي چې دا ټول خطابات یې ماته کړي دي (۲)

**جواب** : ددې عقیدې مذمت په قرآن کریم کې داسې شوی:

﴿ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴾ (۳)

**ترجمه** : نن (د قیامت په ورځ) به ذلیله کونکی عذاب تاسو ته درکولی شي. لکه چې تاسو به په الله پاك باندې دروغ ویل او د الله پاك په آیتونو پورې به مو ټوقې کولې.

همدغه شان په حدیث کې راځي:

﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ﴾ (۴)

**ترجمه** : د سیدنا ابن عباس ﷠ څخه روایت دی: چې رسول الله ﷺ وفرمایل چا چې په قرآن کریم کې د خپل طرفنه څه وویل: هغه دې خپله استوګنه په جهنم کې جوړه کړي

همدغه شان د امت اجماع ده کومه چې قاضي عیاض ﷫ نقل کړې ده:

﴿ كذلك وقع الاجماع على تكفير من دافع نص الكتاب ﴾ (۵)

**ترجمه** : همدغه شان د هغه چا په کفر هم اجماع ده کومه چې قرآن کریم رد کړي.

---

(۱) الدرر المضية : ۲/۲۳۸ (للعلامه السفاريني) وشرح العقيدة الواسطيه ۳، ٤، لابن تيمية، ۲ وګوری تذکره: ص ۳۸۷، ۳۵٦، ۳۵۷، حقیقة الوحی: ۸۲، ۸۰، ۸۱، ۹۰، ۱۰۱، ۱۰۲، ۱۸۰، ۸۰، ۷۱، ۱۰، ٦۷، ۷۸،

(۲) اعجاز احمدي : ج ۱۱ ص ۲۹۱، دافع البلاء : ۱۳

(۳) سورة الانعام آیت : ۹۳

(٤) ترمذي : ۲/۱۱۹، وكذا في المشكوة : ٤۱۹

(۵) الشفاء: ج۲ ص۲٤۷

## لسمه عقيده

د سيدنا عيسى علیه السلام درې پيشن ګويې غلطې وختې[1]

**جواب** : د مسلمانانو عقيده ده چې نبي ﷺ څه هم وايي هغه د الله پاك په حكم وايي؛ نو د نبي پيشن ګويي په حقيقت كې د الله پاك پيشن ګويي وي او الله پاك څنګه دروغ ويلى شي، دا عقيده هم د قرآن كريم او احاديثو صريح خلاف ده. مثلا :

۱ : ﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ ﴾[2]

**ترجمه** : ستاسو څخه هغوى د ډېر زر عذاب غوښتنه كوي. حال دا چې الله پاك به د خپلې وعدې خلاف هيڅكله نه كوي.

۲ : ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ﴾[3]

**ترجمه** : په الله پاك باندې خپلو رسولانو سره د وعده خلافى ګمان هيڅكله مه كوه. يقيناً الله پاك غالب او بدله اخستونكى دى.

۳ : ﴿ مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ ﴾[4]

**ترجمه** : زما په قول كې هيڅ بدلون نشي كيدى.

## يوولسمه عقيده

د جهاد حكم اوس ختم شوى دى!

په تحفه ګولړ هويه او تبليغي رسالت كې هم دا انكار نقل دى!

اردو شعرونه : (۱) اب چھوڑ دو جہاد کا اے دوستو خیال

دین کیلئے حرام ہے اب جنگ اور قتال

(۲) اب آگیا مسیح جو دین کا امام ہے

دین کی تمام جنگوں کا اب اختتام ہے

---

[1] اعجاز احمدي :ص۱٤

[2] سورة الحج :آيت ٤٧

[3] سورةابراهيم :آيت ٤٧

[4] سورة ق :آيت ۲۹

(۳) اب آسماں سے نور خدا کا نزول
اب جنگ اور جہاد کا فتوی فضول ہے

(۴) دشمن ہے وہ خدا کا جو کرتا ہے اب جہاد
منکر نبی کا ہے جو یہ رکھتا ہے اعتقاد

**ترجمه** (۱) اې ملګرو اوس د جهاد خیال مه کوی. د دین لپاره اوس جنګ کول حرام دي. (۲) اوس هغه مسیح راغلی چې د دین امام دی. د دین لپاره د ټولو جنګونو آخره ده. (۳) اوس د آسمان څخه د خدای نور نازلیږي. اوس د جنګ او جهاد په اړه فتوی ورکول بې معنا ده. (۴) هغه چې اوس جهاد کوي هغه د خدای دشمن دی. څوک چې د جهاد عقیده لري هغه د خپل نبي څخه منکر دی.

**جواب** دا عقیده هم د اهل سنت والجماعت خلاف ده. دا عقیده ساتل هم ملحدانه او کافرانه ده. د قرآن او حدیث څخه خلاف ده.

## په قرآن کریم کې د جهاد حکم

د قرآن کریم په ډیرو آیتونو کې ددې حکم دی، مثلا

۱ ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ﴾ [1]

**ترجمه** په تاسو باندې جهاد فرض شوی. اګر چې هغه په تاسو بد نه لګیږي

۲ ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ﴾ [2]

**ترجمه** او هغه کسانو ته چې د الله پاك په لاره (جهاد) کې وژل شوي دي. هغوی ته مړه مه وایی. بلکې هغوی ژوندي دي: خو تاسو د هغوی د ژوند ادراك نه شی کولی.

۳ ﴿إِنَّ اللهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ﴾ [3]

---

[1] سورة البقرة : آیت ۲۱٦
[2] سورة البقرة : آیت ۱۵٤
[3] سورة التوبة : آیت ۱۱۱

**ترجمه**: بېشکه الله پاك د مؤمنانو څخه د هغوی نفسونه او مالونه د جنت په بدل کې اخستلي. دوی به د الله پاك په لاره کې جنګیږي؛ نو دوی به نور کافران، وژني او خپله به هم وژل کیږي. په جهاد باندې دا وعده په تورات او انجیل کې موجود ده نور هم ډېر آیتونه د جهاد په ثبوت باندې دلالت کوي

## په احادیثو کې د جهاد حکم

۱ ﴿قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ﴾ [۱]

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمايي: قسم په الله پاك زما زړه غواړي چې د الله پاك په لاره کې ووژل شم. بیا ژوندی شم. بیا ووژل شم. بیا ژوندی شم. بیا ووژل شم. بیا ژوندی شم او بیا ووژل شم.

۲ ﴿قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لَنْ يَبْرَحَ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ﴾ [۲]

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو: چې همېشه به دا دين باقي وي. د مسلمانانو يو جماعت به ترقيامته پورې جهاد کوي.

## دولسمه عقیده

د سیدنا عیسی علیه السلام د معجزاتو څخه انکار کوي. [۳]

**جواب**: دا عقیده هم د قرآن او حدیث د صریحو آیتونو څخه د انکار له امله کفر دی. مثلا

## د سید نا عیسی علیه السلام د معجزاتو ثبوت د قرآن کریم څخه

۱: ﴿أَنِّي أَخْلُقُ لَكُمْ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَأَنْفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللهِ﴾ [۴]

---

[۱] البخاری: ۲۷۹۷، ومسلم: ۱۸۷۶ کذا فی المشکوة ص۳۲۹

[۲] مسلم کذا فی المشکاة: ۳۳۰

[۳] حاشیة ازاله اوهام: ۲۱، ۱۲۱، حقیقة الوحی: ۷۸

[۴] سورة آل عمران: ۴۹

**ترجمه** : سيدنا عيسى عليه السلام فرمايي چې ما د الله پاك له طرفه معجزې او د صداقت نخښې راوړي، يقينا زه به د خاورې څخه د مرغۍ شكل جوړوم. بيا به په هغې كې پوكى كړم، هغه به د الله پاك په حكم سره (ژوندى) مارغه كيږي.

۲: ﴿ إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱذْكُرْ نِعْمَتِى عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَٰلِدَتِكَ ............ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ ٱلطِّينِ كَهَيْـَٔةِ ٱلطَّيْرِ بِإِذْنِى فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًۢا بِإِذْنِى ﴾ (١)

**ترجمه** : كله چې به الله پاك وفرمايي: (په قيامت كې) اې عيسى د مريمې څويه! ياد كړه هغه انعامات چې ما په تا او ستا په مور بې بې كړي دي... اوتابه د ختې څخه د مرغۍ شكل جوړ كړ او په هغې كې به دې پوكى وكړ؛ نو هغه به زما په حكم مارغه شو

## د معجزو څخه انكار كفر دى

څوك چې د سيدنا عيسى عليه السلام د معجزو څخه انكار كوي، د هغه لپاره د قرآن كريم اعلان دى!

۱: ﴿ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُورٍ ﴾ (٢)

**ترجمه**: زمونږ د نخښو (معجزو) څخه انكار نه كوي، مګر هر انكار كونكى كافر به وي.

۲: ﴿ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱسْتَكْبَرُوا۟ عَنْهَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ (٣)

**ترجمه** : كوم خلك چې زمونږ د آيتونو (معجزو) څخه انكار كوي او اعراض ترې كوي، هغه د جهنميانو د ډلې څخه دي. په هغې كې به همېشه همېشه او سيږي.

همدا خبره علامه قاضي عياض رحمه الله كړې ده:

﴿ وكذلك وقع الاجماع على تكفير من دافع نص الكتاب ﴾ (٤)

**ترجمه** : همدغه شان د هغه چا په كفر باندې اجماع ده څوك چې د نص قرآني څخه مدافعت كوي.

---

[1] المائدة : ۱۱۰

[2] لقمان : ۳۲

[3] الاعراف : ۳٦

[4] الشفاء : ۲/۲٤۷

## دیارلسمه عقیده

رسول الله ﷺ ته روحاني معراج شوی وو. بدني نه وو شوی[1].

**جواب**: دا عقیده هم چې رسول الله ﷺ په اسراء کې (د مکې نه د بیت المقدس سفر) بدني نه وو تللی، د قرآن او حدیث د مخالفت له امله کفر دی. معراج (یعنې د بیت المقدس څخه د اسمانونو سفر) دا هم په قرآن کریم کې د سورة النجم څخه ثابت دی. د احادیثو څخه هم ثابت دی. دا هم د قرآن کریم د انکار له امله کفر دی او د احادیثو څخه انکار زندیقیت دی. دا هم د احادیثو څخه ثابته ده.

## د رسول الله ﷺ معراج بدني دی د قرآن کریم څخه ددې ثبوت

﴿ سُبْحَانَ الَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ إِلَى ٱلْمَسْجِدِ ٱلْأَقْصَا ٱلَّذِى بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ ﴾[2]

**ترجمه**: پاك دی هغه ذات چې خپل بنده یعنې رسول الله ﷺ یې په یوه شپه کې د مسجد حرام (مکې) څخه مسجد اقصی ته بوتللو.

## د رسول الله ﷺ معراج بدني دی ددې ثبوت د احادیثو څخه

۱: ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ أُرِيَهَا رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ ﴾[3]

**ترجمه**: سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي: په معراج کې چې رسول الله ﷺ ته لیدلي دي. هغه یې په غړیدلو سترګو لیدلي دي.

۲: ﴿ وعن أبي بكر من رواية شداد بن أوس عنه أنه قال للنبي صلى الله عليه وسلم ليلة أسرى به طلبتك يا رسول الله البارحة في مكانك فلم أجدك فأجابه أن جبريل عليه السلام حمله إلى المسجد الأقصى ﴾[4]

---

[1] ازاله احکام کلان: ص ۱۴۴، ۱۴۶، ۱۴۷ وغیره
[2] سورة الاسراء: ۱
[3] البخاری: ۳۸۸
[4] الشفاء للقاضي عياض: ۱/۱۵۳

**ترجمه** سیدنا ابوبکر ﷺ عرض وکړ. یا رسول الله ﷺ مونږ تاسو بیګا په کور کې ولټولې: خو تاسو مو بیا نه مونډلې؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل زه جبرئیل علیه السلام ځان سره بیت المقدس ته بوتلی وم

## د ملا علي قاري رحمة الله عليه فیصله

په خلاصة الفتاوی کې لیکي ( مَنْ انکرَ المعراجَ یُنْظَرُ اِنْ انکرَ الاِسراءَ من مَّکَّةَ اِلَی بیتِ المَقْدَسِ فهوَ کافرٌ وَلَوْ انکرَ المعراجَ مِنْ بیتِ المَقْدَسِ لَایَکْفُرُ ) [1]

پدې باندې ملا علي قاري رحمه الله فرمایي

( وذلك لان الاسراء من الحرم الی الحرم ثابت بالایة وهی قطعیة الدلالة والمعراج من بیت المقدس الی السماء ثبت بالسنة وهی ظنیة، الروایة والدرایة ) [2]

**ترجمه** چا چې د معراج انکار وکړ: نو که هغه د مکې نه تر بیت المقدس پورې انکار کوي: نو هغه به کافر شي او که د بیت المقدس نه بې وړاندې انکار وکړ یعني اسمان ته د تلو : نو هغه به کافر نه وي. ځکه چې د مکې نه تر بیت المقدس پورې سفر یعني اسراء خو په آیت قطعي قرانیه سره ثابت دی. د معراج د بیت المقدس نه تر اسمانه پورې سفر په حدیث سره ثابت دی چې ظني دی

## څوارلسمه عقیده

د مرګ نه وروسته میدان محشر نشته. بلکې د مرګ نه وروسته به جنت ته تلل وي یا جهنم ته. [3]

**جواب** : د اهل حق عالمان فرمایي چې دا عقیده هم د قرآن او سنت خلاف ده. د قرآن کریم په ډیرو مقاماتو کې دا خبره ثابت ده. چې میدان محشر به قائمیږي. حساب کتاب به هم کیږي. انبیاء علیهم السلام وغیره به شفاعت هم کوي. مثلا

---

[1]) خلاصة الفتوی : ۱/۱٤۹

[2]) شرح فقه اکبر ص ۱۳۵

[3]) ازاله اوهام کلام : ص ۱٤٤، ۱٤٦، ۱٤۷ و غیره

۱ ﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴾ [۱]

**ترجمه** : كله چې په شپيلۍ كې پوك ووهل شي. هغه وخت به ټول د خپلو قبرونو نه وتلو سره د خپل رب طرف ته روان شي.

۲ ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴾ [۲]

**ترجمه** : مونږ تاسو د خاورې نه پيدا كړي يى او هم دېته به مو واپس كوو او هم ددېنه به مو دوباره راوباسو

۳ ﴿ قَالَ مَن يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ ﴾ [۳]

**ترجمه** : وايي څوك دى چې رژيدلي هډوكي به راژوندي كړي. تاسو وفرمايى هم هغه ذات چا چې اول كرت ژوندي كړل. هم هغه به يې دوباره ژوندي كوي. هغه په هر قسم پيدا كولو عالم دى. همدغه شان د ډيرو احاديثو څخه دا عقيده ثابته ده.

۱ ﴿ أَنَا أَوَّلُ مَنْ يَقْرَعُ بَابَ الْجَنَّةِ ﴾ [۴]

**ترجمه** : د ټولو نه لومړى هغه چې د جنت دروازه به ټكوي. هغه به زه يم

۲ ﴿ آتِي بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَسْتَفْتِحُ فَيَقُولُ الْخَازِنُ مَنْ أَنْتَ فَأَقُولُ مُحَمَّدٌ. فَيَقُولُ بِكَ أُمِرْتُ لاَ أَفْتَحُ لأَحَدٍ قَبْلَكَ ﴾ [۵]

**ترجمه** : زه به د قيامت په ورځ د جنت په دروازه راځم، دروازه به خلاصوم. د جنت چوكيدار به پوښتنه كوي چې ته څوك يې؟ زه به وايم محمد (ﷺ): نو هغه به وايي چې هم ستاسو لپاره ماته حكم شوى دى چې ستا نه مخكې د چا لپاره هم دروازه نه خلاصوم.

۳. ﴿ يُحْشَرُ النَّاسُ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ [۶]

---

[۱] يس : ۵۱
[۲] طه : ۵۵
[۳] يس : ۷۸، ۷۹
[۴] مسلم : ۱/۱۱۲
[۵] مسلم : ۱/۱۱۲
[۶] مشكاة ص ۴۸۷، شعب الايمان للبيهقي (اسناده ضعيف)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو: چې خلک به د قيامت په ورځ په يو ميدان کې راجمع کولی شي.

## پنځلسمه عقيده

د فرشتو د وجود انکار کوي چې د فرشتو هيڅ مخلوق نشته.

**جواب** : د فرشتو ثبوت د قرآن کريم د ډيرو آيتونو څخه ثابت دی مثلاً :

﴿ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ﴾ [1]

**ترجمه** : «رسول الله ﷺ جبرئيل عليه السلام ته وفرمايل: چې زر تر زره ملاقات کوی؛ نو پدې اړه دا آيت کريمه نازل شو چې» مونږ بغير د الله پاك د حکم نه نه نازليږو«نه راځو»

۲: ﴿ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُونَ لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ وَهُم بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ ﴾ [2]

**ترجمه** : هغه د الله پاك عزتمند بندګان دي، هغوی په يوه خبره کې هم د الله پاك د حکم نه نه مخکې کيږي او د هغه په حکم عمل کوي.

۳: ﴿ لَّا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ﴾ [3]

**ترجمه** : هغوی د الله پاك د حکم نافرماني نه کوي، هم هغه عمل کوي چې د کوم په اړه هغوی ته حکم کيږي او هم د هغه په حکم عمل کوي.

## د فرشتو ثبوت د ډيرو احاديثو څخه

۱ ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: يَوْمَ بَدْرٍ هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ ﴾ [4]

**ترجمه** : د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله ﷺ د بدر په ورځ ارشاد وفرمايلو: دا جبرئيل عليه السلام دی چې د خپل اس سر يې نيولی دی او وسله يې اچولې ده.

---

[1] سورة مريم :آيت ٦٤
[2] سورة انبياء : آيت ٢٦، ٢٧
[3] سورة تحريم : آيت ٦
[4] البخاري : ج۲ ص۵۷۰

۲ ﴿ وَكَانَ جِبرئيل يَلقَاهُ فِي كُلِّ لَيلَةٍ مِن رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ القُرآنَ ﴾[1]

**ترجمه** : د رمضان المبارك په هره شپه کې به جبرئيل ﷺ د رسول الله ﷺ سره ملاقات کولو او د قرآن کريم دور به يې ورسره کولو

۳ ﴿ عن ابن مسعود رضى الله تعالى عنه يقول سَمِعتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ : نَزَلَ جِبرِيلُ فَأَمَّنِي فَصَلَّيتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَهُ ﴾[2]

**ترجمه** : د سيدنا عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. رسول الله ﷺ وفرمايل: جبرئيل ﷺ چې کله راغی: نو ما ته يې پنځه لمونځونه ادا کړل.

همدغه شان د مسلمانانو عقيده ده چې:

﴿ النصوص يحمل على ظواهرها والعدول عنها حرام ﴾[3]

**ترجمه** : نصوص به په خپل ظاهر باندې حمل کولی شي. د نصوصو څخه عدول بغير د شرعي دليل نه قطعي حرام دي.

## شپاړسمه عقيده

په الله او د هغه په رسول ﷺ باندې يې د دروغو الزام (معاذ الله) لګولی دی.[4]

**جواب** : دا عقيده هم د اهل سنت والجماعت په نزد کفر دی، ځکه چې په قرآن کريم او احاديث متواتره کې په کثرت سره دا خبره راغلې، چې الله پاك او د هغه رسول ﷺ رښتيني دي، هغوی ته د دروغو نسبت کول حرام دي. مثلا

﴿ وَيلَكُم لَا تَفتَرُوا عَلَى اللهِ كَذِبًا فَيُسحِتَكُم بِعَذَابٍ وَقَد خَابَ مَنِ افتَرَى ﴾[5]

**ترجمه** : هلاك شئ! په الله پاك باندې افتراء او دروغ مه جوړوی، کنه نو تاسو به د الله

---

[1] البخاری : ۱/٤٥۷
[2] البخاری : ۱/٤٥۷
[3] الميزان الكبری : ٦۰ تا ٦٤
[4] ازاله اوهام ص ۲۹۸، انجام اتم، ص ۲۳۳، حقيقة الوحی، ۱۸۵، کشتی نوح : ص ٦
[5] سورة طه : ايت ٦۱

پاك په عذاب هلاك شي، چا چې افتراء وكړه هغه به په نقصان كې وي.

٢. ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ ﴾ [١]

**ترجمه** : هيځكله داسې خيال مه كوه چې الله پاك به د خپلو رسولانو سره وعده خلافي وكړي.

٣. ﴿ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيَاتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴾ [٢]

**ترجمه** : نن (د قيامت په ورځ) به ذليله كونكې عذاب تاسو ته دركولى شي، لكه چې تاسو به په الله پاك باندې دروغ ويل او د الله پاك په آيتونو پورې به مو ټوقې كولې.
همدغه شان په حديث متواتر كې راغلي، چې د هغې انكار ممكن نه دى.

١. ﴿ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ﴾ [٣]

**ترجمه**:چا چې په ما باندې دروغ وويل: هغه دې خپله استوګنه په جهنم كې جوړه كړي.

## اولسمه عقيده

مرزا غلام احمد د ټولو انبياؤ ﷺ مظهر دى، د ټولو انبياؤ ﷺ كمالات په هغوى كې راجمع دي.

**جواب** : پدې عقيده كې مرزا غلام احمد خپل ځان ته د ټولو انبياؤ ﷺ مظهر وايي، پديكې د خپل ځان لپاره هم نبوت ثابتوي، حال دا چې د رسول الله ﷺ نه وروسته د نبوت دعوه كول د اهل سنت په نزد كفر دى. مثلا:

١. ﴿ عَنْ ثَوْبَانَ رضى الله تعالى عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم سَيَكُوْنُ فِيْ اُمَّتِيْ كَذَّابُوْنَ ثَلَاثُوْنَ كُلُّهُمْ يَزْعَمُ اَنَّهٗ نَبِيٌّ وَاَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ ﴾ [٤]

**ترجمه** : د سيدنا ثوبان ﷺ څخه روايت دى رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو: چې زما په امت كې به ديرش دروغجن انبياء پيدا كيږي، هر يو به دا ګمان كوي چې زه نبي يم،

---

[١]) ابراهيم : ايت ٤٧
[٢]) سورة الانعام :آيت ٩٣
[٣]) بخاري : ١/٢١، مسلم ص ٧، ترمذى : ٢/٥٠، ابن ماجة ص ٥، ابوداؤد ونسائى وغيره من كتب الاحاديث.
[٤]) بخاري : ١/٥٠٥، مسلم ٢/٢٤٨، ابوداؤد جلد ٢ ص ٢٢٧،

حال دا چې زه خاتم النبيين يم. زما څخه وروسته بل نبي نشته.

۲: ﴿إِذَا لَمْ يَعْرِفِ الرَّجُلُ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخِرُ الْأَنْبِيَاءِ فَلَيْسَ بِمُسْلِمٍ، وَلَوْ قَالَ: أَنَا رَسُولٌ، أَوْ قَالَ بِالْفَارِسِيَّةِ مَنْ پیامبرم يُرِيدُ بِهِ مَنْ پيام مى برم يَكْفُرُ﴾[۱]

ترجمه: څوك چې دا عقيده نه ساتي چې رسول الله ﷺ اخر الانبياء دى. هغه مسلمان نه دى، كه وايي چې زه رسول يم. مراد پيغام رسونكى يم؛ نو بيا به هم كافر شي

همدغه شان ابن حجر مكي شافعي رحمه الله فرمايي

۳: ﴿مَنِ اعْتَقَدَ وَحْيًا بعد محمد صلى الله عليه وسلم كفر باجماعِ المسلمينَ﴾

ترجمه: څوك چې د رسول الله ﷺ نه وروسته د وحى عقيده ساتي. هغه په اجماع د مسلمانانو سره كافر دى.

علامه ابن حبان رحمه الله د علامه زرقاني رحمه الله نه نقل كړي دي.

۴: ﴿من ذهب الى ان النبوة مكتسبة لا تنقطع او الى ان الولى افضل من النبى فهو زنديق يجب قتله﴾[۲]

ترجمه: څوك چې دا عقيده ساتي چې نبوت په كسب او عمل سره حاصليدى شي او كله به هم نه منقطع كيږي يا دا چې ولي د نبي څخه غوره دى؛ نو داسې سړى زنديق دى او د هغه وژل واجب دي.

همدغه شان ملا علي قاري رحمه الله فرمايي:

۵: ﴿دعوى النبوة بعد نبينا صلى الله عليه وسلم كفر بالاجماع﴾[۳]

ترجمه: زمونږ د رسول الله ﷺ نه وروسته د نبوت دعوه كول بالاجماع كفر دى.

دغه شان د عقائدو په ټولو كتابونو كې دا خبره موجود ده. چې د رسول الله ﷺ نه وروسته كه بيا د نبوت دعوه وكړي؛ نو هغه بالاجماع كافر دى.

## اتلسمه عقيده

سيدنا عيسى عليه السلام وفات شوى. اوس به هغوى دويم ځل دنيا ته نه راځي.

---

[۱]) فتاوى عالمكيري: ۲/۲٦۳

[۲]) زرقاني: ٦/۱۸۸

[۳]) شرح فقه اكبر ص: ۱۹۱

**جواب** : دا خبره هم د قرآن او حدیثونو څخه ثابته ده، چې سیدنا عیسی علیه السلام په اسمانونو کې ژوندی دی او قیامت ته به نږدې رابنکته کیږي

## د سیدنا عیسی علیه السلام په اسمانونو کې د ژوندي کیدو ثبوت د قرآن کریم څخه

﴿ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا بَلْ رَفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ [1]

**ترجمه** : (مونږ په یهودو باندې لعنت وکړ) د هغوی ددې وینا له امله چې مونږ د الله پاك رسول سیدنا عیسی بن مریم علیهما السلام وژلی. حال دا چې نه یې وژلی. نه یې په سولی (زیندی) کړی. بلکې هغوی په شبهه کې اچول شوي دي. څوك چې پدې معامله کې اختلاف کوي، هغوی خپله په شك کې دي. هغوی ته ددې هیڅ علم نشته. سوا د ګمان د تابعداری څخه. یقینا چې دوی هغه نه دی وژلی. بلکې الله پاك خپل طرفته پورته کړی، الله پاك غالب او حکمتونو والا ذات دی.

٢. ﴿ وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴾ [2]

**ترجمه** : او یو اهل کتاب هم نشته، مګر هغه به ضرور ایمان راوړي په عیسی علیه السلام باندې (قیامت ته نږدې) د عیسی علیه السلام د وفات نه وړاندې او هغه به د قیامت په ورځ په دوی شاهد وي.

٣. ﴿ وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ هَذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ ﴾ [3]

**ترجمه** : سیدنا عیسی علیه السلام د قیامت د نخښو څخه دی. ته په قیامت کې شك مه کوه او زما تابعداري کوه، هم دا سیده لار ده.

٤. ﴿ وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ إِنَّكَ أَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ

---

[1] سورة النساء :آیت ١٥٧، ١٥٨

[2] سورة النساء : آیت ١٥٩

[3] سورة الزخرف : آیت ٦١

﴿الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ﴾[1]

**خلاصه** : کله چې د قیامت په ورځ به د سیدنا عیسی علیه السلام نه د هغوی د شرك په اړه (چې نصارا د الله پاك څوی ګڼلو. یا معبود وغیره) سوال کیږي: نو هغوی به فرمایي: تر څو پورې چې زه په هغوی کې موجود وم. تر هغه پورې خو زه په هغوی باندې نګهبان وم او کله چې تا زه د هغوی نه بیل کړم او اسمان ته دې پورته کړم: نو هغه وخت هم ته په هغوی باندې نګهبان وې.[2]

## د سیدنا عیسی علیه السلام په اسمان کې د ژوندي کیدو ثبوت د احادیث نبویه ﷺ څخه

د سیدنا عیسی علیه السلام آسمان ته د ختو ټول احادیث متواتر ته رسیږي

۱. ﴿عن علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه قال یقتل الله تعالی بالشام علی عقبة یقال لها: عقبة رفیق، لثلاث ساعات یمضین من النهار، علی یدی عیسی ابن مریم﴾[3]

**ترجمه** : د سیدنا علي رضي الله عنه څخه روایت دی چې الله پاك به د عیسی بن مریم علیه السلام په لاس شام کې چې د یوې درې نوم دی هغه ته عقبه رفیق ویل کیږي. پداسې حال کې چې د ورځې درې ساعته به تېر شوي وي، د عیسی علیه السلام په لاس ووژني.

۲. ﴿عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ینزل أخی عیسی ابن مریم من السماء﴾[4]

**ترجمه** : د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : زما ورور سیدنا عیسی بن مریم علیه السلام به د اسمان نه رانښکته کیږي.

۳. ﴿عَنْ نجیح بْنَ عَارِیَةَ الأَنْصَارِیِّ یَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ يَقْتُلُ ابْنُ مَرْيَمَ الدَّجَّالَ بِبَابِ لُدٍّ﴾[5]

---

[1] سورة المائدة : آیت ۱۱٦، ۱۱۷

[2] تفسیر ابن کثیر : ۳/٤۷۳، وابو السعود : ٤/۱۰۱، خازن : ۱/٥٤۲، روح المعاني : ۲/٤۱٤ وغیره

[3] کنز العمال : ۷/۲٦۸، حدیث نمبر ۲۹۹۸ (اسناده ضعیف)

[4] کنزل العمال : ۷/۲٦۸، ۷/۲٥۹

[5] ترمذي : ۲/٤۸

**ترجمه** : سیدنا نجیح بن عاریه رضی الله عنه فرمايي: ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل. چې سيدنا عيسى علیه السلام به دجال مقام لد ته نزدې (عقبه رفيق) باندې ووژني

دا روايت د شپاړسو صحابه كرامو څخه نقل دی.

همدا خبره د اجماع امت څخه هم ثابته ده او ددېنه انكار كول كفر دی

۴ ﴿ اجمعت الامة على ان الله عزوجل رفع عيسى الى السماء ﴾ [1]

**ترجمه** : د امت اجماع ده چې الله پاك سيدنا عيسى علیه السلام اسمان ته پورته كړی دی [2].

۵ ﴿ واجتمعت الامة على ان عيسى عليه السلام حي في السماء ينزل الى الارض ﴾ [3].

**ترجمه** : د ټول امت پدې اجماع ده چې سيدنا عيسى علیه السلام په اسمان كې ژوندی دی او په ځمكه به نازليږي.

## نولسمه عقیده

مرزا غلام احمد قادیاني په قرآن كريم كې د تحريف قائل وو او ډير آيتونه هغه بدل كړل [4]

---

[1]) كتاب الابانة للشيخ الاشعري رحمه الله : ص ٤٦

[2]) همدغه شان ۱: علامه انور شاه كشميرى رحمه الله په خپل كتاب التصريح بما تواتر فى نزول المسيح كې ۷۳ احاديث او ۱۲۷ د صحابه وو رضی الله عنهم آثار جمع كړي دي، هغه ټول پدې دلالت كوي چې سيدنا عيسى علیه السلام په اسمان كې ژوندی دی، قيامت ته نزدې به ځمكې ته راښكته كيږي. ۲: ترجمان السنة علامه بدر عالم صاحب رحمه الله، ۳: نزول عيسى علیه السلام مولانا بدر عالم صاحب رحمه الله ٤: الجواب الفصيح لمنكر حيات المسيح، مولانا بدر عالم صاحب رحمه الله ميرتهى، ٥: حيات عيسى علیه السلام د مولانا ادريس كاندهلوى رحمه الله، ٦: لطائف الحكم فى اسرار نزول عيسى بن مريم، مولانا ادريس كاندهلوى رحمه الله، ۷: حقيقت المسيح، مولانا محمد على مونكيرى رحمه الله، ۸: معيار المسيح علامه سيد محمد على مونكيرى رحمه الله، ۹: المهدى والمسيح، مولانا محمد يوسف لدهيانوى رحمه الله، ۱۰: نزول عيسى علیه السلام پر چند شبهات كا جواب، مولانا محمد يوسف لدهيانوى رحمه الله.

[3]) تفسير النهر الماء : ۲/٤۷۳، وكذا في بحر المحيط : ۲/٤۷۳، تلخيص الحبير لابن حجر : ۳۱۹، فتح البيان : ۲/۳٤٤

[4]) البشرى : ۲/۱۱۹، براهين احمديه : ۳۵۵، ۲۹٦، حقيقة الوحى : ص ۲٤۸، نور الحق : ص ۱/۱۰۹، مقدمة حقيقة الاسلام : ص ۳۳۰، روحاني خزائن : ٤۳۹، جنگ مقدس : ۱۹٤، تبليغ رسالت : ۳/۱۹٤، ازالة الاوهام : ۱/٤۷٤

**جواب**: او د مسلمانانو عقيده دا ده چې نن کوم قرآن کريم موجود دی. هغه بعينه هم هغه دی کوم چې په لوح محفوظ کې دی. پديکي د يو حرف کمی زياتی. تغير او تبديل. حذف او اضافه نه ده شوې او نه به تر قيامته پورې وشي او څوك چې ددې خلاف عقيده ساتي هغه بالاتفاق کافر دی. همدا خبره په قرآن کريم کې فرمايل شوې.

﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾.[1]

**ترجمه**: بېشکه مونږ قرآن نازل کړی او هم مونږ ددې حفاظت کونکي يو

## د قاديانی فرقې په اړه د مفتيانو رايې

د مفتيانو په نزد بالاتفاق قادياني فرقې والا کافران دي. د هغوی د عقائدو له امله کومې چې ذکر شوي دي

[1] په رجب ۱۳۳۶هـ کې فتوی د تکفير قادياني په نوم خپره شوه. په هغې باندې د هر مکاتب فکر علماء کرامو دستخط وکړ. چې په هغې کې څو نومونه دا دي

ديوبند. سهارنپور. تهانه بهون. رائې پور. دهلي. کلکته. بنارس. لکهنؤ. آګره. مرادآباد. لاهور. امرتسر. لدهيانه، پشاور، راولپنډی. ملتان. هوشيار پور. ګودهرا. ميسور. جهلم. سيالکوټ. ګوجرانواله. ګجرات. حيدر آباد دکن. بهوپال. وغيره.[2]

[2] همدغه شان د اهل حديثو مفتيانو د امرتسر د دفتر څخه په ۱۹۲۵ء کې فتوی جاري کړه. د فسخ نکاح مرزايان په نوم يې په هغې کې هم د برصغير د تمام مکاتب فکر علماء کرامو دستخطونه کړي وو

[3] همدغه شان د سعودي عرب څخه يوه فتوی جاري شوه. چې په هغې کې د حرمين شريفين. بلاد حجاز. شام وغيره عرب ملکونو علماء کرامو دستخطونه کړي دي. په هغې کې يوه جمله دا هم ده.

﴿ لاشك ان اتنابه من القاديانية واللاهورية كلها كافرون ﴾

[1] سورة الحجر :آيت : ۹

[2] فتوی تکفير قاديان طبع کتب خانه اعزازيه ديوبند ضلع سهارنپور، يوپي

**ترجمه** : پديکې شك نشته چې د مرزا غلام احمد قادياني متبعين كه قادياني دي او كه لاهوري دي ټول كافران دي.[1]

او بيا د پاکستان مختلف عدالتونو چې په هغې کې وفاقي شرعي عدالت، سپريم کورټ آف پاكستان، لاهور هائيكورټ، كوئټه هائي كورټ وغيره هم فرقه قادياني د اسلام څخه خارج کړي.

## د قادياني فرقې په اړه د زيات تحقيق لپاره لاندې كتابونه مطالعه کړئ

- مسلمان کی مرزائيت سے نفرت کے اسباب....شيخ التفسيروالحديث مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله
- مرزا قادياني سے متضاد اقوال .... شيخ التفسير مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله
- برق و باران ...... مولانا سيد ابوذر بخاری صاحب
- تحريك ختم نبوت .... جناب آغا شورش كاشميري رحمه الله
- اسلام کې غدار .... جناب آغا شورش كاشميری رحمه الله
- عجمي اسرائيل ... جناب آغا شورش كاشميری رحمه الله
- رئيس قاديان .... مولانا ابو القاسم دلاوري صاحب
- ائمه تلبيس ..... مولانا ابو القاسم دلاوري صاحب
- فيضان اقبال ..... جناب آغا شورش كاشميری رحمه الله
- قاديانيت اسلام اور نبوت کے خلاف بغاوت.... مفكراسلام مولانا سيد ابوالحسن علی ندوی رحمه الله
- مرزائيل .... جناب آغا شورش كاشميری رحمه الله
- الخطاب المليح فی تحقيق المهدي والمسيح ..... حكيم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله
- ايمان پرور يادیں .... مولانا الله وسايا صاحب
- ثبوت حاضر هيں ........ جناب متين خالد صاحب

چې په هغې کې يې د قادياني كتابونو د قابل اعتراض اقتباساتو عكسونه هم ورکړي دي.

- مرزائی کا جنازه اور مسلمان ... مولانا احمد سعيد هزاروی صاحب

---

[1]) القاديانية في نظر علماء الامة الاسلامية طبع مكة المكرمة

- قادیانی عقائد وعزائم ... مولانا تاج محمود صاحب
- مرزائیت عدالت کے کنھرے میں .... غلام نبي جانباز صاحب
- مرزائیت کي حقیقت .... مولانا حبیب الله رشیدي صاحب
- نصرة الاسلام .. مولانا خالد محمود صاحب ایم، اے، پی، ایچ، ڈی
- مسلمان قادیانیوں کو کافر کیوں سمجھتے ھیں؟ مولانا قاضي عبدالقادر آزاد صاحب
- مرزائیت غیر مسلم اپنی تحریرات کی روشنی میں. مولا نا عبدالقادر آزاد صاحب
- القادیانیة ما ھی؟ ... مولانا عاشق الھي صاحب رحمة الله
- آئینه قادیاني ... مولانا عبداللطیف مسعود ڈسکه
- اسلام اور قادیانیت ایك تقابلي مطالعه ... مولانا عبدالغنی پتیالوی رحمة الله
- الحق المبین ... مولانا عبدالغنی پتیالوی صاحب رحمة الله
- قادیانی عقائد پر ایك نظر .... مولانا عزیز الرحمن جالندھری
- فتنه قادیانیت ... منشي عبدالرحمن صاحب ملتان
- مرزائیون کے کافرانه عقائد .... مولانا غلام ربانی صاحب
- ترك مرزائیت ... مولانا لال حسین اختر صاحب
- مسلمانون کی نسبت مرزائیوں کا عقیده ... مولانا لال حسین اختر صاحب
- احتساب قادیانیت ... مولانا لال حسین اختر صاحب
- عالم الاسلام والقادیانیة (عربی) مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله
- اسلام اور مرزائیت کا اصولی اختلاف .... مولانا ادریس کاندھلوي رحمه الله
- مسلمان کون اور کافر کون؟ مولانا ادریس کاندھلوی رحمة الله
- فیصله آسمانی (چار حصے) سید محمد مونگیری صاحب
- تحفه قادیانیت (۳ جلد) مولانا محمد یوسف لدھیانوی رحمة الله
- مرزائیون سے خیر خواھانه گزارش .... سید محمد علی مونگیری رحمة الله
- فتنه مرزائیت ... مولانا امیر فرمان کشمیری رحمة الله
- قادیانیون سے ستر سوال ... .سید مرتضی حسن چاند پوری رحمة الله
- مرزائیت کے گلے میں لعنت کا طوق ..... سید مرتضی حسن چاند پوری رحمة الله

✿ موقف الامة الاسلامية من القاديانية ... علامه محمد يوسف بنوري رحمه الله

✿ فتنه قاديانيت ... علامه محمد يوسف بنوري رحمه الله

✿ مجموعه رسائل رد مرزائيت ... سيد مرتضى حسن چاند پوري رحمه الله

د بعض عقيدو په رد کې چې کوم مستقل کتابونه ليکل شوي دي. د هغې نومونه هم. د هغه عقيدو په جواب کې ليکل شوي دي (١)

✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿

# [فرقه نيچريه]

## د نيچريه فرقې تاريخ

د هندوستان د اسلامي حکومت په ختميدو او د انګريزي حکومت په راتلو چې کله د تولو نه لومړی کومه ګمراه فرقه پيدا شوه هغه هم دا فرقه نيچريه وه (٢)

سر احمد خان په شروع کې غير مقلد وو. بيا مجتهد شو. کله چې دی د خپلې پيشې سره انګلستان ته لاړ: نو بيا ملحد شو. بلاخره ښکاره هغه د خپلې فرقه نيچريه د اشاعت کار شروع کړ (٣)

دا فرقه انګريزانو صرف پدې وجه جوړه کړه. چې ددې په ذريعه په مسلمانانو کې اختلاف پيدا کړي. بيا به مونږ ته د حکومت کولو ښه موقع لاس ته را شي. ددې کار لپاره انګريزانو سر احمد خان ښه استعمال کړ. دا خبره يو مدبر انګريز ليکلې ده:

په هندوستان کې زمونږ د حکومت هر سړي ته که هغه د خارجي تعلقات سره واسطه لري. يا عدالتي يا حربي نظم او ضبط سره. دا اصول همېشه د نظر لاندې ساتي چې په دوی کې تفرقه واچوی او حکومت کوی

---

(١) په تندی سره چې د کومو کتابونو نومونه جمع شو: تقريبا ٢٥٠ کتابونه د مرزائيت په رد کې ملاو شوي چې د هغې څخه د ٤٣ نومونه دلته ليکل شوي دي، د باقي نومونه د اوردوالي له ويرې څخه پرېښودل شوه. د دېنه علاوه معلومه نه ده چې علماء کرامو به په دې باندې څومره کتابونه ليکلي دي.

(٢) عقائد اسلام : ١/١٧٩

(٣) امدادالفتاوٰی ج٦ ص١٦٧

ددې کار لپاره د ټولو نه وړاندې انګریزانو سر سید احمد خان استعمال کړ. هغه خبره چې انګریز مدبر کړې ده. تقریبا هم دا خبره سر سید احمد خان هم لیکلې ده دا هنګامه او فساد چې راپیښ شو. هغه صرف د هندوستانیانو د ناشکرۍ وبال وو. تاسو هم د الله پاك شکر ادا نه کړو او همېشه مو ناشکري کوله. پدې وجه الله پاك ددې ناشکرۍ وبال په تاسو هندوستانیانو واچولو. څو ورځې د سرکارې خدمت بنیاد د انګریزی عمل دارۍ معطل کولو سره یې درته د مخکې عمل دارۍ نمونه وښوده (۱)

سر احمد لومړنی هغه سړی وو. چا چې د ۱۸۵۷ء آزادۍ جنګ ته د غدر نوم ورکړ او دېته یې د فوجي بغاوت نوم ورکړ. حال دا چې د مسلمانانو په نزد هغه د آزادۍ جنګ وو. یو ځای کې خپله سر احمد خان لیکي چې د ضلع بجنور مسلمانانو نوابانو او هندوانو کې یو هم ددې لائق نه دی چې حکومت وکړي او رعایا د عدل او امن په فضاء کې ساه واخستل شي. (۲)

هم ددې وجې نه سر سید احمد خان ته د حکومت له طرفه القابات هم بار بار ورکړی شو. ملکه وکټوریه هغوی ته د سی. ایس. آی خطاب ورکړ. غالبا په همدې موقع اکبر اله آبادي ویلي وو.

اردو شعر: فضل خدا سے عزت پائی آج ہوئی ہم سی، ایس، آئی

شیخ نے سمجھے لفظ انگریزی بولے ہوئے ہیں ہم عیسائی

بیا د انګریز حکومت د خوشحالولو لپاره چې سر سید د انګریز په عملدارۍ کې په کوم جرءت او بهادرۍ سره اسلامي تعلیمات بدل کړه هغه د یو مسلمانانو څخه ممکن نه دي. (۳)

همدغه شان د سر سید احمد خان رایه دا وه. چې مسلمان انګریزي معاشرت او انګریزي کلچر اختیار کړی. چې د انګریز په نظر کې عزت حاصل شي. ددې لپاره هغوی علي ګړھ کالج وغیره هم خلاص کړ. همدغه شان دې خلکو عقل اصلي بنیاد

[1]) سرکشي ضلع بجنور ... ص ۴۷

[2]) سرکشي ضلع بجنور ... ص ۸۳

[3]) سرکشي ضلع بجنور ... ص ۷۵، ۷۶

وتاکی. کومه خبره چې یې په عقل کې رانغله. د هغې څخه یې انکار وکړ

## دا فرقه کله وجود ته راغله

دا فرقه ۱۸۵۵ء ته نژدې وجود ته راغله. ددې منونکو ته به نور تن ویل کیدل. چا چې د سر سید احمد خان عقائد قبول کړه. په هغې کې مشهور خلک دا وو

۱ نواب محسن الملك، ۲ ډپټي نذیر احمد خان دهلوي، ۳ شمس العلماء مولوي ذکاء الله دهلوي، ۴ الطاف حسین حالي، ۵ مولوي مشتاق حسین، ۶ نواب انتصار جنګ، ۷ مولوي چراغ علي خان، مهدي علي خان، ۹ نواب اعظم ماهر جنګ، ۱۰ شبلي نعماني اعظم ګړهی وغیره

## د فرقه نیچریه د باني سر سید احمد خان مختصر حالات

**پیدایش**: په ۱۷ اکتوبر ۱۸۱۷ء په دهلي کې پیدا شو. ابتدائي زده کړه یې په کور کې حاصله کړې

**وظیفه**: د هغوی د پلار وفات د هغوی په وړوکوالي کې شوی وو. پدې وجه هغوی په شروع کې وظیفه اختیار کړه. په شروع کې هغه د حکومت مستقل وظیفه خور وو ددېنه وروسته هغه په ایسټ انډیا کمپنی کې کاریګر شو. هغه بیا په عدالت کې سر رشته دار شو. د هغوی مسلسل ترقي کیدله. د جنګ آزادی په وخت هغوی په بجنور کې د سب جج په حیثیت و ټاکل شو. ددېنه وروسته ترقي موندلو سره هغه صدر الصدور. او د ډسټرکټ مجسټریټ (ضلعي مشر) په وظیفې وټاکل شو. ددېنه پس د بجنور نه مراد آباد ته د هغوی تبدیلي وشوه. هغه هم دلته و اوسید. ده په لیکوالی شروع کړه چې اسباب بغاوت هند او ځینې نور کتابونه یې ولیکل

**تعلیمي کوششونه** : په مئ ۱۸۶۲ء کې د هغوی تبدیلي غازي پور ته وشوه: نو هلته هغوی سائنټفك سوسائټي جوړه کړه. د هغې مقصد دا وو. چې سائنسي علوم یې د انګریزی څخه اردو ژبې ته ترجمه کول او بیا به یې خپاره کول. دلته یې هم یو مکتب خلاص کړ

ددېنه وروسته چې کله په ۱۸۶۴ء کې د سر سيد احمد خان تبديلي علی ګړه ته وشوه: نو هغوی د سائنټفك سوسائټی دفتر د غازي پور څخه علي ګړه ته نقل کړ. هلته يې يوه رساله د علي ګړه انسټي ټيوټ په نوم جاري کړه. چې د سر سيد احمد خان تر وفات پورې خپرېده.

**د سر سيد احمد خان عقائد:** په شروع کې سر سيد احمد خان غير مقلد وو. بيا هغوی اجتهاد شروع کړ، بيا انګلستان ته د خپلو ځامنو سره لاړ. بيا دهغه ځای څخه د الحاد لار خلاصه شوه او د خپلو عقائدو د ښه خپرولو کوشش يې وکړ

**ليکنې** : ځو کتابونه يې ليکلي دي، د هغې څخه ۱: آئين اکبري. ۲: د تاريخ فيروز شاهي تصحيح وتحشيه کولو سره شائع کړ. ۳: آثار الصناديد. ۴: تهذيب الاخلاق (رساله) ۵: اسباب بغاوت هند.

**وفات** : ۲۷ مارچ ۱۸۹۸ء کې په علي ګړه کې وفات شو او هلته کالج ته نژدې دفن شو



## د فرقه محدثه نيچريه عقيدې او نظريې

۱: د ملايکو هيڅ حقيقت نشته. [1]

۲: د شيطان هيڅ هم څه حقيقت نشته. [2]

۳. سيدنا آدم عليه السلام شجره ممنوعه نه وه خوړلې. [3]

۴: په قبر کې عذاب نشته. [4]

۵: د جنت او جهنم نه انکار کول. [5]

۶: حشر به د بدنونو سره نه کيږي. [6]

---

[1]) تهذيب الاخلاق ۳/۳۱، تفسير القران : ۱/٤٦

[2]) تهذيب الاخلاق ۳/۳۱

[3]) تهذيب الاخلاق ۳/۳۱

[4]) تهذيب الاخلاق ۳/٦٥

[5]) تهذيب الاخلاق ۳/۱۱۰، تفسير القرآن : ۱/۳۹

[6]) تهذيب الاخلاق ۳/۱۱۰، تفسير القران : ۱/۳۹

۷: د (جنتي) حورو هیڅ حقیقت نشته. [1]

۸. د تقدیر انکار کوي. [2]

۹: د معجزو څخه انکار کوي. [3]

۱۰: د اسمان هیڅ وجود نشته. [4]

۱۱: اجماع حجت نه دی. [5]

۱۲: په قرآن کې هیڅ نسخ نه ده راغلې. [6]

۱۳: د حیواناتو تصویر حلال دی. [7]

۱۴: اکثر احادیث صحیح نه دي. [8]

۱۵: د جناتو هیڅ حقیقت نشته. [9]

۱۶: د موسی ﷺ د معجزو څخه انکار کول. [10]

۱۷: سیدنا عیسی ﷺ وفات شوی او هغه اسمان ته نه دی پورته کړی شوی. [11]

۱۸: د سیدنا عیسی ﷺ پلار وو. [12]

۱۹: د شق القمر انکار کول. [13]

۲۰: د رسول الله ﷺ د شق صدر انکار، ددې انکار کونکي کافران نه دي. [14]

---

[1]) تهذیب الاخلاق ۳/۱۱۰، تفسیر القران : ۱/۳۹

[2]) تهذیب الاخلاق ۳/۹

[3]) تهذیب الاخلاق ۳/۳۱

[4]) نور الآفاق ۲/۵۲، أیضا

[5]) نور الآفاق ۲/۵۲

[6]) نور الآفاق ۲/۱٦

[7]) نور الآفاق ۱٤/۱۱۵

[8]) نور الآفاق ۱٤/۱۸۷، تفسیر القران : ۱/٤٦

[9]) نور الآفاق ۵/۷، تفسیر القرآن : ۱/۱۰۰

[10]) نور الآفاق ۵/٥٤، تفسیر القران : ۱۲/٤۲

[11]) نور الآفاق ۲۲/٦

[12]) نور الآفاق ۱/۳

[13]) نور الآفاق ۹/۱

[14]) ضمیمه نور الآفاق ۱/۱، تفسیر القران : ٦/۷۵

۲۱: د معراج انکار کول. [1]

۲۲: د امام مهدي انکار کول، چې هغه به قیامت ته نزدې نه راځي [2]

۲۳: عام انسان د نبي برابر کیدی شي. [3]

۲۴: یو نبي هم د توحید تعلیم نه دی مکمل کړی. د ټولو (نعوذ بالله) تعلیم ناقص پاتې شوی. [4]

۲۵: ایصال ثواب صحیح نه دی. [5]

## د نیچریه فرقې عقیدې او نظریې، د قرآن او حدیث څخه د هغې جوابونه

## لومړی عقیده: د ملایکو حقیقت نشته !

**جواب** : دا خبره د قرآن او احادیثو څخه خلاف ده. په قرآن کې یو دوه ځایه نه. بلکې په سوونو ځایونو کې داسې آیتونه موجود دي، مثلاً:

﴿ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ اِلَّآ اِبْلِيْسَ ﴾ [6]

**ترجمه** : ټولو ملایکو سیدنا ادم علیه السلام ته سجده وکړه. د ابلیس لعین نه علاوه.

## هغه ځایونه چې د ملایکو ذکر راغلی دی !

**نوټ** : د ملایکو ذکر د قرآن کریم په ډیرو مقاماتو کې راغلی، مثلاً:

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | سورة البقرة | ۱۰ آیتونه |
| ۲ | سورة آل عمران | ۸ آیتونه |
| ۳ | سورة النساء | ٤ آیتونه |
| ٤ | سورة اعراف | ٥ آیتونه |

---

[1] ضمیمه نور الآفاق

[2] نور الافاق : ۳/۹۶

[3] نور الافاق : ۳/۵۷

[4] نور الافاق : ۶۳/۳

[5] نور الافاق، مطبوعه جمادی الاولی رمضان ۵۹۶

[6] سورة الحجر :آیت ۳۰

| | | |
|---|---|---|
| ٥ | سورة انفال | ٣ ايتونه |
| ٦ | سورة هود | ٢ آيتونه |
| ٧ | سورة يوسف | ١ آيت |
| ٨ | سورة رعد | ٢ أيتونه |
| ٩ | سورة حجر | ٤ آيتونه |
| ١٠ | سورة نحل | ٥ آيتونه |
| ١١ | سورة اسراء | ٤ آيتونه |
| ١٢ | سورة كهف | ١ ايت |
| ١٣ | سورة طه | ١ ايت |
| ١٤ | سورة انبياء | ١ ايت |
| ١٥ | سورة حج | ١ ايت |
| ١٦ | سورة مومنون | ١ ايت |
| ١٧ | سورة فرقان | ٤ ايتونه |
| ١٨ | سورة سجده | ١ ايت |
| ١٩ | سورة احزاب | ٢ آيتونه |
| ٢٠ | سورة سبا | ١ ايت |
| ٢١ | سورة فاطر | ١ ايت |
| ٢٢ | سورة صافات | ١ ايت |
| ٢٣ | سورة ص | ٢ ايتونه |
| ٢٤ | سورة زمر | ١ ايت |
| ٢٥ | سورة مدثر | ١ ايت |
| ٢٦ | سورة نباء | ١ ايت |

۲. ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً ﴾ (۱)

**ترجمه** : کله چې ستا رب ملایکو ته وویل چې زه په ځمکه کې خلیفه پیدا کوم.

۳. ﴿ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ ﴾ (۲)

**ترجمه** کله چې مونږ ملایکو ته حکم وکړ، چې ادم علیه السلام ته سجده وکړئ: نو هغوی سجده وکړه، سېوا د ابلیس څخه.

همدغه شان په احادیثو کې هم په ډېر مقاماتو کې د ملایکو ذکر راغلی دی. مثلاً:

۱. ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ نَزَلَ جِبْرِيلُ فِي كَبْكَبَةٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ ﴾ (۳)

**ترجمه** : د سیدنا انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې کله لیلة القدر وي: نو سیدنا جبرئیل علیه السلام د ملایکو د یو جماعت سره نازلیږي.

۲. ﴿ مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانِ فِي لَيْلَةٍ أَصْبَحَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ ﴾ (۴)

**ترجمه** : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: چا چې په یوه شپه کې سورة الدخان ولوست، د هغه لپاره پوره شپه اویا زره ملایکې استغفار کوي.

۳. ﴿ إِنَّ اللهَ - تَعَالَى - قَرَأَ طه وَيس قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفِ عَامٍ، فَلَمَّا سَمِعَتِ الْمَلَائِكَةُ الْقُرْآنَ قَالَتْ: طُوبَى لِأُمَّةٍ يَنْزِلُ هَذَا عَلَيْهَا وَطُوبَى لِأَجْوَافٍ تَحْمِلُ هَذَا وَطُوبَى لِأَلْسِنَةٍ تَتَكَلَّمُ بِهَذَا ﴾ (۵)

**ترجمه** : الله پاك سورة یس او سورة طه د ځمکې او اسمان د پیدایش څخه زر کاله مخکې ولوستل، کله چې ملایکو واوریدل؛ نو هغوی وویل: خوشحالي ده د هغه امت لپاره چې دا به پرې نازلیږي او خوشحالي ده هغه سینو لپاره چې دا به باروي او خوشحالي ده د هغه ژبو لپاره چې دا به لولي.

---

(۱) سورة البقرة :آیت ۳۰

(۲) سورة البقرة : آیت ۳٤

(۳) مشکوة : ۱/۱۸۳

(۴) مشکوة : ۱/۱۸۷

(۵) مشکوة : ۱/۱۸۷

د عقایدو په کتابونو کې لیکلي دي، چې په ملایکو ایمان راوړل دا د دین د ضروریاتو څخه دي او د ملایکو انکار بېشکه کفر دی.[۱]

## دویمه عقیده: د ابلیس څخه انکار

**جواب**: دابلیس څخه انکار هم د قرآن او حدیث څخه انکار دی. ځکه چې یو دوه ځایه نه، بلکې په سوونو ځایونو کې د ابلیس ذکر شتون لري، مثلاً:

۱: ﴿إِلَّا إِبْلِيسَ أَبَىٰ وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ﴾[۲]

**ترجمه**: خو ابلیس انکار وکړ او تکبر یې وکړ، هغه د کافرانو څخه وو.

۲: ﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ﴾[۳]

**ترجمه**: هغه کسان چې سود خوري، هغوی به د قیامت په ورځ داسې حال کې راپاځي. لکه شیطان چې څوک مسه کړي او لیوني یې کړي.

۳: ﴿فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ﴾[۴]

**ترجمه**: بیا وخویول هغوی شیطان، پس راوویستل د هغه جنت څخه. په کوم کې چې وو.

همدغه شان د شیطان ذکر په احادیثو کې هم په کثرت سره راغلی دی: مثلا

۱: ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَأْتِي الشَّيْطَانُ أَحَدَكُمْ، فَيَقُولُ: مَنْ خَلَقَ كَذَا؟، مَنْ خَلَقَ كَذَا؟﴾[۵]

**ترجمه**: د سیدنا ابوهریره ﷺ څخه روایت دی چې (رسول الله ﷺ وفرمایل) شیطان په تاسو کې یوتن ته راځي اووایي: چې فلانی شی چاپیدا کړی. فلانی شی چا پیدا کړی؟

۲ ﴿إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ﴾[۶]

---

[۱] عقائد اسلام ص ٥٤، شرح عقيدة سفاريني : ص ٢٨٢ تر ٣٨٨، وشرح اضاءة الوجه : ص ١٤١

[۲] سورة البقرة : آيت ٣٤

[۳] سورة البقرة : آيت ٢٧٥

[۴] سورة البقرة :آيت ٣٦

[۵] مشكوة : ١/١٨

[۶] بخارى و مسلم

**ترجمه** بېشکه شیطان په انسان کې دننه داسې ګرځي. لکه وینه چې ګرځي

۳ ﴿ مَامِنْ بَنِي آدَمَ مَوْلُودٌ إِلاَّ يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِينَ يُولَدُ ﴾ [۱]

**ترجمه** هر بني آدم چې پیدا کیږي: نو شیطان هغه ضرور مس کوي

د عقائدو په کتابونو کې د شیطان څخه انکار په هم کفر ویل شوي دي

## دریمه عقیده

### سیدنا آدم علیه السلام هغه میوه نه وه خوړلې. د کومې څخه چې هغه منع شوی وو.

**جواب** : دا خبره هم د قرآن او حدیث څخه خلاف ده. مثلا په قرآن کې دي؛

۱ ﴿ وَلاَ تَقْرَبَا هَذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ [۲]

**ترجمه** : او دې ونې ته مه نږدې کیږئ! کنه نو تاسو دواړه به د ظالمانو څخه شئ

۲ ﴿ عَنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ إِلاَّ أَنْ تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ ﴾ [۳]

**ترجمه** : ددې ونې نه تاسو پدې وجه منع شوي یئ؛ چې چیرته تاسو ملایکې نه شئ یا د همېشه پاتې کیدونکو څخه نه شئ

۳ ﴿ أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَأَقُلْ لَكُمَا إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُبِينٌ ﴾ [۴]

**ترجمه** : آیا ما تاسو دواړه ددې ونې څخه نه وی منع کړي او تاسو ته مې نه وو ویلي. چې شیطان ستاسو ښکاره دشمن دی؟

## څلورمه عقیده: د قبر عذاب نشته !

**جواب** : دا عقیده هم د قرآن او حدیث څخه خلاف ده؛

۱ ﴿ النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا ﴾ [۵]

---

[۱] بخاری و مسلم
[۲] سورة البقرة : آیت ۳۵
[۳] سورة الاعراف : آیت ۲۰
[۴] سورة الاعراف : آیت ۲۲
[۵] سورة المؤمن : آیت ٤٦

ترجمه : د دوزخ اور چې هغې ته هغوی سهار او ماښام پیش کولی شي.

۲. ﴿ وَمِن وَرَائِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴾ (۱)

ترجمه : او د هغوی نه شاته پردې دي، د قیامت تر ورځې پورې.

۳. ﴿ فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ ﴾ (۲)

علماء کرام فرمايي: د عذاب قبر د ثبوت لپاره يو دوه نه بلکې په سوونو احاديث دي. چې محدثينو د تواتر درجې ته رسولي دي. د هغو څخه انکار جائز نه دی. مثلا

۱ ﴿ عَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّ يَهُودِيَّةً دَخَلَتْ عَلَيْهَا فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ فَقَالَتْ لَهَا أَعَاذَكِ اللهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ نَعَمْ [حَقٌّ عَذَابُ الْقَبْرِ قَالَتْ عَائِشَةُ، رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم بَعْدُ صَلَّى صَلاَةً إِلاَّ تَعَوَّذَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ﴾ (۳)

ترجمه : د سیده عایشه رضي الله عنها څخه روایت دی چې یوه یهودیه ښځه هغې ته راغله. د قبر د عذاب ذکر یې وکړ. بیا هغې سیده عایشې رضي الله عنها ته وویل: چې ای عایشې! الله پاك دې تا د قبر د عذاب څخه وساتي، سیده عایشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ څخه د عذاب قبر په اړه پوښتنه وکړه. رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! د قبر عذاب حق دی. ددېنه وروسته به چې رسول الله ﷺ کوم لمونځ هم کولو: نو په هغې کې به یې د عذاب قبر نه پناه غوښتله.

۲. ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: لَيُسَلَّطُ عَلَى الْكَافِرِ فِي قَبْرِهِ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ تِنِّينًا تَنْهَسُهُ وَتَلْدَغُهُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ، لَوْ أَنَّ تِنِّينًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ خَضِرًا ﴾ (۴)

ترجمه : سیدنا ابوسعید خدري رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلو: چې په کافر به د هغه په قبر کې یو کم سل اژدها ګانې مسلط کولی شي. هغه به تر قیامته

---

(۱) سورة المؤمنون :آیت ۱۰۰
(۲) سورة الاحقاف : آیت ۲۰
(۳) بخاري ومسلم، كذا فى المشكوة : ۲۵
(۴) دارمي، ترمذی وغیره

پورې چیچي او که د هغې نه یوه اژدها هم په ځمکه ساه واخلي؛ نو په ځمکه به شین شی زرغون نشي.

۳. ﴿ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تَقُولُ قَامَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم خَطِيبًا فَذَكَرَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ الَّتِي يَفْتَتِنُ فِيهَا الْمَرْءُ فَلَمَّا ذَكَرَ ذَلِكَ ضَجَّ الْمُسْلِمُونَ ضَجَّةً ﴾ [1].

**ترجمه** . د سیده اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما څخه روایت دی: چې یوه ورځ رسول الله ﷺ د خطبې لپاره ودرید . د عذاب قبر ذکر یې وکړ. چې په هغې کې به انسان اخته کیږي. ددې خبرې په ذکر باندې مسلمانو ډیر زیات وژړل.

د عذاب قبر عقیده، د صحابه وو، تابعینو، اسلافو او د ائمه اربعه وو ترمنځ متفق علیه ده. هم پدې وجه ددې منکر ته کافر ویل شوي. [2]

## پنځمه عقیده: د جنت او جهنم څخه انکار کوي !

**جواب** : د جنت او جهنم تذکره په قرآن او حدیث کې ډېره موجود ده. لکه په قرآن کریم کې چې دي!

۱. ﴿ وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ ﴾ [3].

**ترجمه** : د هغوی لپاره به دروازې خلاصي شی. ساتونکي به ورته وایي سلام دي وي. په تاسو دي د همېشه لپاره خوشحالي وي،دې جنت ته داخل شی.

۲. ﴿ ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُلُودِ ﴾ [4].

**ترجمه** : داخل شی جنت ته! په سلامتی سره دا ورځ د همېشه او سیدو ده.

۳. ﴿ وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ ﴾ [5].

**ترجمه** : کوم خلک چې به نیک بخت وي، هغوی به همېشه په جنت کې وي. په هغې کې

---

[1]) بخاري، كذا في المشكوة : ۲۶
[2]) شرح فقه اکبر : ۱۲۱، ۱۲۲
[3]) سورة الزمر :آیت ۷۳
[4]) سورة ق :آیت ۳٤
[5]) سورة هود : آیت ۱۰۸

به او سيږي، په اندازه د هغې زمانې، څومره زمانه چې ځمکه او اسمان پاتې شوي وو.

۴ ﴿وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا﴾ [۱]

**ترجمه** : جهنميان به جهنم طرف ته ډلې ډلې روان کړی شي.

دغه شان په احاديثو کې هم په کثرت سره د احاديثو ذکر موجود دی. مثلاً

۱ ﴿أَنَا أَوَّلُ مَنْ يَقْرَعُ بَابَ الْجَنَّةِ﴾ [۲]

**ترجمه** : د ټولو نه لومړی هغه چې د جنت دروازه به ټکوي هغه به زه يم.

۲ ﴿آتِي بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَسْتَفْتِحُ فَيَقُولُ الْخَازِنُ مَنْ أَنْتَ فَأَقُولُ مُحَمَّدٌ. فَيَقُولُ بِكَ أُمِرْتُ لاَ أَفْتَحُ لأَحَدٍ قَبْلَكَ﴾ [۳]

**ترجمه** : زه به د قيامت په ورځ د جنت په دروازه راځم او دروازه به خلاصوم. د جنت دربانچي به پوښتنه کوي ته څوك يې؟ زه به وايم محمد (ﷺ)؛ نو هغه به وايي چې هم ستاسو لپاره ماته حکم شوی، چې ستا نه مخکې به د چا لپاره هم دروازه نه خلاصوم

دغه شان د جهنم په اړه هم ډېر آيتونه او حديثونه ذکر شوي. مثلاً

۱ ﴿لَهُمْ مِنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ﴾ [۴]

**ترجمه** : د هغوی لپاره به د دوزخ فرش وي.

۲ ﴿إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ﴾ [۵]

**ترجمه** : بېشکه مجرمان به د دوزخ په عذاب کې د هميشه لپاره او سيږي.

د عقايدو په کتابونو کې ليکلي دي:

﴿إن الجنة والنار مخلوقتان﴾ [۶]

---

[۱] سورة الزمر : آيت ۷۱
[۲] مسلم : ۱/۱۱۲
[۳] مسلم : ۱/۱۸۲
[۴] سورة الاعراف :آيت ٤۱
[۵] سورة الزخرف :آيت ۷٤
[۶] شرح عقائد النسفي : ۱۰۱

**ترجمه** : جنت او جهنم شته او همېشه به وي، کله به هم نه فنا کېږي او پدې د ټول امت اجماع ده.

علامه شهاب الدين خفاجي رحمه الله پدې اړه ليکي!

﴿ وكذلك نكفر من انكر الجنة والنار نفسهما ومحلهما ﴾ [1]

**ترجمه** : دغه شان مونږ هغه چاته هم کافر وايو، چې هغه د جنت او جهنم بالکليه انکار کوي، يا د هغې د مقاماتو څخه انکار کوي

## شپږمه عقيده: د بدنونو سره به حشر نه کېږي

**جواب** : دا عقيده هم د قرآن ، احاديث او اجماع امت څخه خلاف ده. د قرآن کريم د ډېرو آيتونو څخه معلومېږي، چې د مرګ نه وروسته تر قيامته پورې به د بدنونو سره د خلکو حشر کولی شي، مثلا :

۱ : ﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴾ [2]

**ترجمه** : کله چې په شپيلی کې پوکی ووهل شي، هغه وخت به ټول د خپلو قبرونو څخه وتلو سره د خپل رب طرفته روان شي.

۲ : ﴿ قَالَ مَن يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ ﴾ [3]

**ترجمه** : وايي څوك دی چې رژيدلي هډوکي به راژوندي کړي، تاسو وفرمايي! هم هغه ذات چا چې اول ځل ژوندي کړی، هم هغه به يې دوباره ژوندي کوي، هغه هر قسم پيدا کولو عالم دی.

دغه شان په يو دوه نه بلکې په سوونو احاديثو په ميدان محشر کې د خلکو جمع کيدل معلومېږي. مثلا :

۱ : ﴿ يُحْشَرُ النَّاسُ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ [4]

---

[1] نسيم الرياض: ٤/٥٥٥

[2] سورة يس :آيت ٥١

[3] سورة يس : آيت ٧٨، ٧٩

[4] مشكوة ص ٤٨٧،

**ترجمه** : رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلو: چې خلک به د قیامت په ورځ یو میدان کې راجمع کولی شي

۲: ﴿ يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ لَيْسَ فِيهَا عَلَمٌ لِأَحَدٍ ﴾ [۱]

**ترجمه** : خلک به د قیامت په ورځ په یو سپین میدان کې جمع کولی شي. چې به د چپاتی پشان هوار او صفا وي او په هغې کې به هیڅ نخښه نه وي.

۳: ﴿ عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا - قَالَتْ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَوْلِهِ: {يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ} [إبراهيم: ٤٨] فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: " عَلَى الصِّرَاطِ» ﴾ [۲]

**ترجمه** : سیده عایشه ﷺ فرمايي: چې ما د رسول الله ﷺ څخه ددې آیت کریمه د مطلب په اړه پوښتنه وکړه، چې په کومه ورځ ځمکه او اسمان بدلولی شي: نو خلک به په هغه ورځ چیرته ځي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: پل صراط باندې

د عقائدو په کتابونو کې لیکلي دي: چې دوباره ژوندي کیدل دا د روښانه ورځ په څېر واضح دي، پدیکې د ټول امت اتفاق دی او د هیڅ قسم تاویل اجازه نشته. [۳]

داسې خلک د اسلام د دايرې څخه خارج دي، همدغه شان د هرې زمانې حق عالمانو د داسې خلکو تکفیر کړی دی. [۴]

## اوومه عقیده: د حورو هیڅ حقیقت نشته !

**جواب** : دا عقیده هم د قرآن او حدیث څخه خلاف ده. د قرآن کریم په ډیرو مقاماتو کې د حورو تذکره ده. مثلا:

۱: ﴿ حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ ﴾ [۵]

---

[۱]) مشکوة ص ٤٨٢
[۲]) مسلم وکذا في المشکوة : ١/٤٨٢
[۳]) عقائد اسلام : ١/٨٣
[۴]) عقائد اسلام : ٢/٩٢
[۵]) سورة الرحمن :آیت ٧٢

**ترجمه** : هغه حورې دي چې خیمو کې په حفاظت سره ساتل شوي دي

۲ ﴿ فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴾ [1]

**ترجمه** : په هغې کې سترګې ښکته کونکي حورې دي، چې هغوی ته به د جنتیانو څخه مخکې نه یو انسان لاس ور وړی وي او نه کوم پیري

۳ ﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا عُرُبًا أَتْرَابًا ﴾ [2]

**ترجمه** : مونږ هغه ښځې خاص جوړې کړي، مونږ به هغوی پیغلې جوړې کړو. مینه کونکي د خاوندانو سره او همزولې

په احادیثو کې هم په کثرت سره د حورو ذکر راغلی دی. مثلا

۱ ﴿ إن العبد إذا قام في الصلاة فُتحتْ له الجِنانُ وكُشِفَت له الحُجُبُ بينه وبين ربه واستقبل الحورَ العينَ مالم يمتخِّط أو يتنخَّم ﴾ [3]

**ترجمه** : کله چې یو مسلمان لمانځه ته درېږي؛ نو د هغه لپاره جنت خلاص کړی شي. د هغه او د هغه د رب ترمينځه پردې لرې کړې شي او حورې د هغه طرف ته خپل مخ راوګرځوی ترڅو چه لاړې او نه تهوکی یا پوزه سونږ نه کړي

۲ ﴿ إن الحور العين لأكثر عددا منكن يدعون لأزواجهن اللهم أعنه على دينك وأقبل قلبه على طاعتك وبلغه إلينا بقربك يا أرحم الراحمين ﴾ [4]

**ترجمه** : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د حور عین تعداد ستاسو نه ډیر زیات دې هغوی د خپلو خاوندانو دپاره دعاګانې کوی : اې الله! زما د خاوند د دین په باره کښې مدد اوکړه. او د هغه زړه خپل اطاعت طرف ته متوجه کړه. او اې ارحم الراحمین! ته په خپل خاص قرب سره هغه مونږ ته راورسوه.

---

[1] سورة الرحمن :آیت ٥٦
[2] سورة الواقعة :آیت ٣٥، ٣٦، ٣٧
[3] طبراني، والبدور السافرة ص : ٢٠٥٨
[4] الترغیب والترهیب ٤/٥٣٥، صفة الجنة لابن کثیر : ص ١١١، البدور السافرة : ٢٠٥٤

٣: ﴿ مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ يَسْتَطِيعُ أَنْ يُنَفِّذَهُ دَعَاهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ فِي أَيِّ الْحُورِ شَاءَ ﴾ (١)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمائی: چا چه غصه اوزغمله حال دا چه هغه ئې د پوره کولو طاقت لرلو، الله پاك به هغه سرې د قيامت په ورځ باندې د ټول مخلوق مخې ته راوبلی تردې چه هغه ته به اختيار ورکړی چه کومه حوره ستا خوښه وی هغه واخله.

## اتمه عقيده: د تقدير څخه انكار كوي.

**جواب**: د تقدير په اړه د اهل سنت والجماعت دا عقيده ده چې د ټولو حوادثو او واقعاتو څخه مخکې د هرې خبرې علم الله پاك ته دی. چې الله پاك په لوح محفوظ كې ليكلی دی، د تقدير مسئله هم د قرآن كريم د سوونو آيتونو او احاديثو د ذخيرې څخه ثابته ده، مثلا:

١: ﴿ لَوْيَشَاءُ اللهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا ﴾ (٢)

**ترجمه**: كه الله پاك غوښتلی: نو ټولو خلكو ته به يې هدايت كړی وی.

٢: ﴿ وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ (٣) **ترجمه**: او تاسو هيڅ هم نه شی غوښتلی. مگر هغه چې الله پاك يې وغواړي هغه په هر څه عالم دی.

٣: ﴿ يُضِلُّ اللهُ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَشَاءُ ﴾ (٤)

**ترجمه**: گمراه كوي الله پاك څوك چې وغواړي او هدايت كوي چاته چې وغواړي.

په احاديثو كې هم په كثرت سره د تقدير عقيده بيان شوې ده، مثلا:

١: ﴿ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم: كَتَبَ اللهُ مَقَادِيرَ الْخَلَائِقِ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ - قَالَ - وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ ﴾ (٥)

---

(١) مسند احمد ٣/٤٤٠، ابوداؤد ص ٤٧٧٧، و ترمذي ص: ٢٠٢٢، وابن ماجة: ٤١٨٦

(٢) سورة الرعد: آيت ٣١

(٣) سورة التكوير: آيت ٢٩

(٤) سورة المدثر: آيت ٣١

(٥) رواه مسلم وكذا فی المشكوة: ١٩

**ترجمه** د سیدنا عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله پاك د اسمانونو او ځمکي د پیدایش څخه پنځوس زره کاله مخکي د مخلوقاتو تقدیرونه ولیکل او وي فرمایل چي هغه وخت د الله پاك عرش په اوبو باندي وو.

۲ ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : كُلُّ شَيْءٍ بِقَدَرٍ حَتَّى الْعَجْزُ، وَالْكَيْسُ ﴾[1]

**ترجمه** : د سیدنا عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل. هر یو شی د تقدیر څخه وي. تر دي چي هوښیارتیا او ناپوهي هم

۳ ﴿ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ، وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ، وَإِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيمِ ﴾[2]

**ترجمه** : د سیدنا سهل بن سعد ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل بنده د جهنمیانو اعمال کوي: خو هغه جنتي وي او (ځیني) د جنتیانو اعمال کوي: خو هغه دوزخي وي. د نجات بنیاد د عمل په خاتمه باندي وي.

# نهمه عقیده: د معجزو څخه انکار

**جواب** : د معجزي تعریف :

﴿ وَقَدْ حَدَّ جمهورُ الاصوليينَ المعجزةَ بأنها امرٌ خارقٌ للعادةِ مقرونٌ بالتحدىْ مع عَدَمِ المعارضةِ مِنَ المُرسَلِ اليهمْ والمرادُ بالتحدىْ هو الدعْوى للرسالةِ ﴾[3]

**ترجمه** : جمهورو اصولیینو د معجزي تعریف داسي کړی. چي هغه په تحدي یعني د رسالت د دعوي سره د رسول څخه یو داسي کار چي د عادت په خلاف وي. د هغي څوك مقابله نه شي کولی

[1] رواه مسلم وکذا فی المشکاوة : ۱۹

[2] مشکوة : ۲۰ متفق علیه واللفظ للبخاري

[3] یواقیت : ۱/۱۵۷

انبياؤ ﷺ ته معجزې د الله پاك له طرفه ورکول کيږي، چې د هغوی د رسالت او نبوت لپاره دليل جوړ شي، قرآن کريم کې په څو مقاماتو کې دا خبره واضحه ليکل شوې.

مثلاً:

١: ﴿فَذٰنِكَ بُرْهَانَانِ مِن رَّبِّكَ﴾ [١]

**ترجمه**: اې موسی دا أمسا او سپين لاس ستا د نبوت لپاره دوه معجزې دي. کومې چې ستا د رب له طرفه تاته درکول شوي.

٢: ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَكَفَرُوا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ إِنَّهُ قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ [٢]

**ترجمه**: دا پدې وجه چې هغوی ته د هغوی رسولانو واضحه معجزې راوړې. هغوی پرې کفر وکړ؛ نو الله پاك (په عذاب) راونيول، بېشکه الله پاك زورور سخت عذاب والا دی.

٣: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ [٣]

**ترجمه**: مونږ سيدنا موسی عليه السلام ته نهه معجزې ورکړي.

٤: ﴿قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكَ﴾ [٤]

**ترجمه**: مونږ تا ته ستا د رب له طرفه د معجزو سره راغلي يو.

دغه شان په احاديثو کې هم په کثرت سره د انبياؤ ﷺ معجزې بيان شوي دي. مثلا

١: ﴿عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَرَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ يَدَيْهِ رِكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا، ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ، قَالُوا: لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ وَنَشْرَبُ إِلَّا مَا فِي رِكْوَتِكَ، فَوَضَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَهُ فِي الرِّكْوَةِ، فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ، قَالَ: فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا. قِيلَ لِجَابِرٍ: كَمْ كُنْتُمْ؟ قَالَ: لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا، كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً﴾ [٥]

---

[١] سورة القصص :آيت ٣٢

[٢] سورة المؤمن :آيت ٢٢

[٣] سورة بني اسرائيل : آيت ١٠١

[٤] سورة طه : آيت ٤٧

[٥] متفق عليه وكذا فى المشكوة : ٥٣٢

**ترجمه** : سیدنا جابر رضی الله عنه فرمايي: چې په مقام حديبيه کې خلک ډير زيات تږي شو. هغه وخت رسول الله ﷺ سره يوه لوټه وه، په هغې باندې رسول الله ﷺ اودس وکړ. خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې زمونږ په لښکر کې د څښلو او اودس کولو لپاره بالکل اوبه نشته. بس هم هغه لږې اوبه وې کومې چې ستاسو سره په لوټه کې دي، رسول الله ﷺ په هغه لوټه کې خپل لاس مبارك کښېښود: نو د رسول الله ﷺ د ګوتو تر منځ اوبه داسې راوتې. لکه چينه چې روانه وي. د سيدنا جابر رضی الله عنه بيان دی چې مونږ ښه ډيرې اوبه وڅښلې. اودس مو وکړ. د سيدنا جابر رضی الله عنه نه پوښتنه وشوه، چې په دغه وخت کې تاسو څومره کسان وی؟ هغوی وفرمايل چې که مونږ يو لك کسان هم وی؛ نو هغه اوبه به پوره شوې وی: خو هغه وخت زمونږ تعداد پنځلس سوه وو.

۲: ﴿ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً يَوْمَ حُدَيْبِيَةَ - وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ. فَنَزَحْنَاهَا، فَلَمْ نَتْرُكْ فِيهَا قَطْرَةً، فَبَلَغَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَتَاهَا، فَجَلَسَ عَلَى شَفِيرِهَا، ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَاءٍ، فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ مَضْمَضَ، وَدَعَا ثُمَّ صَبَّهُ فِيهَا، ثُمَّ قَالَ: دَعُوهَا سَاعَةً فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَرِكَابَهُمْ حَتَّى ارْتَحَلُوا ﴾ [1]

**ترجمه** : سيدنا براء بن عازب رضی الله عنه فرمايي: چې په حديبيه کې مونږ د رسول الله ﷺ سره څوارلس سوه کسان وو. په حديبيه کې يو کوهی وو. چې د هغې اوبه مونږ راويستلې. په هغې کې يو څاڅکی اوبه هم پاتې نه شوې. کله چې رسول الله ﷺ پدې خبر شو. کوهي (څا) ته يې تشريف راوړ. د هغې په غاړه کيناست. بيا رسول الله ﷺ د اودس لوټه راوغوښته او اودس يې وکړ. د اودس نه وروسته يې په خوله مبارکه کې اوبه واچولې او دعا يې وغوښته. ددېنه وروسته رسول الله ﷺ هغه اوبه کوهي ته واچولې. لږ وخت کوهی پريږدی. بيا د هغې نه وروسته ټولو لښکريانو خپله او د هغوی حيوانات هم ماړه شو. تر څو چې يې د هغه ځای نه کوچ نه وو کړی. د هغه کوهي څخه يې اوبه استعمالولې.

---

[1] بخاری و کذا فی المشکاة : ۵۳۲

۳. ﴿ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِمَكَّةَ فَخَرَجْنَا فِي بَعْضِ نَوَاحِيهَا فَمَا اسْتَقْبَلَهُ جَبَلٌ وَلَا شَجَرٌ إِلَّا وَهُوَ يَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ ﴾ (۱)

**ترجمه** : سیدنا علی بن ابی طالب رضی الله عنه فرمايي: زه د رسول الله ﷺ سره په مکه کې وم. کله چې مونږ د مکې په علاقه کې یو طرفته لاړو: نو کوم غر او ونه چې هم مخامخ راتله، هغې به ویل السلام علیك یارسول الله!.

علماء کرام فرمايي: چې د انبیاؤ علیهم السلام معجزې د قرآن او احادیث متواتره څخه ثابت دي، پدې وجه ددې انکار انسان کافر کوي.

## لسمه عقیده: د اجماع امت نه انکار کول.

**جواب** : اجماع امت وايي: چې د رسول الله ﷺ نه وروسته په یوه زمانه کې د فقهاء مجتهدینو په یو حکم شرعي باندې اتفاق راشي.

پدې باندې عمل کول هم داسې ضروري دي، لکه په قرآن او حدیث باندې. د اجماع امت ثبوت هم د قرآن او حدیث څخه ملاویږي. په قرآن کریم کې راځي:

۱. ﴿ وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا ﴾ (۲)

**ترجمه** : او د الله پاك رسی مضبوطه ونیسی او خپل منځ کې اختلاف مه پیدا کوی.

۲. ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ ﴾ (۳)

**ترجمه** : اې ایمان والو! د الله پاك نه وویریږی او د رښتینو خلکو سره شی

۳. ﴿ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴾ (۴)

**ترجمه** : او څوك چې د رسول الله ﷺ مخالفت د هدايت واضح کیدو نه وروسته وکړي

---

[۱] ترمذي، والدارمي (ب) نیز اتحاف شرح احیاء : ۱/۲۰۳ تر ۲۱۲ کې هم کتل شي. (و اسناده ضعيف) (ج) دلائل النبوة مکمل دوه ټوکه دي.

[۲] سورة آل عمران :آیت ۱۰۳

[۳] سورة التوبة : آیت ۱۱۹

[۴] سورة النساء : آیت ۱۱۵

او د مؤمنانو د لارې نه علاوه په بله لاره روان شي: نو مونږ به هغه هم هغه طرفته واړوو کوم طرفته چې اوړيدلي دي، جهنم ته به يې داخل کړو او هغه ډېر بد ځای د واپس ورتلو دی

په اجماع امت کې دومره ډېر احاديث راغلي چې حد دتواتر ته رسيږي

## حدیث متواتر:

هغه حديث ته وايي: چې په هره زمانه کې دومره په کثرت سره ډېرو خلکو روايت نقل کړی وي، چې د هغوی ټولو په دروغو يا غلطی باندې متفق کيدل ناممکن وي [1].

۱: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي - أَوْ قَالَ أُمَّةَ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى ضَلَالَةٍ وَيَدُ اللَّهِ مَعَ الْجَمَاعَةِ وَمَنْ شَذَّ شَذَّ إِلَى النَّارِ﴾ [2].

**ترجمه**: رسول اللهﷺ فرمايي: الله پاك به زما امت په يوه ګمراهی نه راجمع کوي. د الله پاك لاس په جماعت باندې وي او څوك چې بيله لاره اختيار کړي هغه به جهنم ته ځي.

۲: سيدنا امير معاويه رضي الله عنه د خطبې پر مهال په عامه مجمع کې دا روايت واورولو: ﴿لَنْ يَزَالَ أَمْرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ مُسْتَقِيمًا حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ﴾ [3].

**ترجمه**: همېشه به دا امت برابر او مستقيم وي تر دې چې قيامت شي

۳: ﴿إِنَّ أُمَّتِي لَا تَجْتَمِعُ عَلَى ضَلَالَةٍ، فَإِذَا رَأَيْتُمُ اخْتِلَافًا فَعَلَيْكُمْ بِالسَّوَادِ الْأَعْظَمِ﴾ [4].

**ترجمه**: دنبي اکرم (ص) ارشاد دی، چې زما امت به په يوه ګمراهی نه راجمع کيږي. کله چې تاسو اختلاف وينی: نو خپل ځان د سواد اعظم سره لازم ونيسی

---

[1]) التوضيح والتلويح ۲/۳۱۲، وتسهيل الوصول ص: ١٤

[2]) ترمذي ابواب الفتن باب لزوم الجماعة ۲/٤٩، و مستدرك للحاكم ص ۱۱۵، ابن ماجة : ۲۸۳، ابوداؤد : ۲/۵۸٤.

[3]) بخاري كتاب العلم ۱/۱٦، صحيح مسلم كتاب الامارة : ص ١٤٣

[4]) ابن ماجة : ابواب الفتن باب سواد الاعظم ص ۲۸۳

# دامت اجماع به د چا لپاره حجت وي؟

پدېکې ګڼ اقوال دي

۱ امام مالك رحمه الله فرمايي: چې د اهل مدينه اجماع معتبره ده. [۱]

۲: د ځينو په نزد صرف د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع معتبره ده. [۲]

۳: د ټولو څخه زيات معتدل قول دا دی. چې اجماع په يوه زمانه کې د مجتهدينو فقهاؤ په يو حکم شرعي باندې متفق کېدل دي، بيا به ددې اجماع څخه خلاف د اهل بدعت. فاسق او عوام الناس د مخالفت اعتبار نه وي. همدا دريم قول د جمهورو علماء کرامو په نزد غوره قول دی. [۳]

**يوولسمه عقيده**

په قرآن کريم کې هيڅ نسخ نه ده راغلې.

**جواب** : د نسخ مطلب دا چې يو حکم ختمول. يعنې د يو حکم په ځای بل حکم راوړل. بيا دا نسخ د مفسرينو په نزد په درې قسمه ده

۱: الفاظ منسوخ کېدل. چې حکم يې باقي وي لکه د رجم د ايت حکم. چې د هغې الفاظ منسوخ دي؛ خو حکم يې نن هم موجود دی.

۲: الفاظ يې موجود وي؛ خو حکم يې منسوخ کولی شي، لکه د رشته دارو لپاره وصيت کول:

﴿ٱلْوَصِيَّةُ لِلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ [۴]

۳: الفاظ او حکم دواړه منسوخ کولی شي. لکه په حديث کې چې راځي: سورة الاحزاب د سورة البقرة برابر وو؛ خو نن د هغې تلاوت او حکم دواړه منسوخ شو. ددې د اهميت له امله دا د ناسخ او منسوخ حکم هم د مفسرينو په نزد ډير اهميت

---

[۱] التقرير شرح التحرير : ۳/۱۰۰

[۲] تسهيل الوصول : ۱۷۰

[۳] التقرير شرح التحرير : ۳/۹۷

[۴] سورة البقرة :آيت ۱۸۰

لري. هغه علوم چې د مفسرینو لپاره ضروري دي. په هغې کې د ناسخ او منسوخ علم هم حاصلولی شي

د قرآن کریم د نسخ په اړه د امت اتفاق دی. په متقدمینو کې د خو معتزله وو نه علاوه چا هم انکار نه دی کړی. په هغوی باندې مفسرینو ډیر په سختې سره رد کړی.

امام قرطبي رحمه الله فرمایي

﴿ معرفة هذا الباب أكيدة وفائدته عظيمة، لا تستغني عن معرفته العلماء، ولا ينكره إلا الجهلة الأغبياء ﴾.[1]

ترجمه د نسخ د باب معرفت ضروري دی. ددې فائده ډیره زیاته ده. ددې د پېژندګلوو څخه علماء کرام نشي بې پروا کیدی. د جاهلانو او بې عقلو څخه سوا ددې انکار څوك هم نشي کولی.

په تفسیر روح المعانی کې دي!

﴿ وانكرابو مسلم الاصفهاني وقوعه فقال انه وان جاز عقلا لكنه لم يقع ﴾.[2]

ترجمه : د نسخ صرف ابو مسلم اصفهاني انکار کړی. هغه وایي چې نسخ په احکام الهیه کې ممکن ده؛ خو چیرته هم نه ده واقع.

خلاصه دا چې د امت متقدمین او متاخرین علماء کرامو کې چا هم د نسخ مطلق انکار نه دی کړی؛ خو په منسوخ آیتونو کې اختلاف دی. چې هغه څومره دي: خو مطلقا د وقوع انکار ممکن نه دی.[3]

دا خبره دي واضحه وي چې په قرآن کریم کې نسخ پدې وجه نه ده شوې. چې الله پاك ته د مخکې څخه علم نه وو. چې وروسته په علم کیدو باندې یې اول حکم منسوخ کړ. بلکې د هغې د حکم په ورکولو کې الله پاك ته معلومه وه چې حالات به بدلیږي. بیا به بل حکم ورکول وي؛ نو په شروع کې یې یو حکم وکړ. بیا یې د حالاتو بدلیدو له امله بل حکم وکړ. لکه تکړه حکیم یا ډاکټر. سره د علمه چې په موجوده حالت کې

---

[1] تفسیر قرطبي : ١/٥٥

[2] روح المعاني ١/٣٥٢

[3] معارف القرآن : ١/٢٨٦

مریض ته بوه دوابي ورکړي. هغه پدې هم پوه دی چې څو ورځې وروسته به د مریض کیفیت بدلیږي: نو بله دوابي ورکول به وي. اول هغه بوه دوابي ورکړي. څو ورځې وروسته بیا ورته بله دوابي ورکړي

بکره حکیم یا ډاکټر دا هم کولی شي چې به اوله ورځ ټوله دوابي ولیکي. چې دوه ورځې دا دوابي مناسبه ده او بیا دا دوابي. بیا دا دوابي استعمالول دي: خو پدیکې د مریض به طبیعت باندې بوج او پدیکې خطره هم ده. چې د غلط استعمال له امله به د هغه طبیعت خراب شي.[1]

همدغه سان دا عقیده سائل چې د حیواناتو تصویر جائز دی. د اهل سنت والجماعت علماء کرامو دا عقیده ده هر تصویر چې د روح والا وي که د انسان وي یا د حیواناتو. حرام دی. په احادیثو کې ددې ثبوت ډیر ملاویږي. مثلا د صحیح مسلم په روایت کې راځي

۱ ﴿ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ إِنِّي رَجُلٌ أُصَوِّرُ هَذِهِ الصُّوَرَ فَأَفْتِنِي فِيهَا. فَقَالَ لَهُ ادْنُ مِنِّي. فَدَنَا مِنْهُ ثُمَّ قَالَ ادْنُ مِنِّي. فَدَنَا حَتَّى وَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِهِ قَالَ أُنَبِّئُكَ بِمَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « كُلُّ مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ يَجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا فَيُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ ﴾ [2]

**ترجمه** یو سړی سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما ته راغلو. عرض یې وکړ زه دا تصویران جوړوم. تاسو په دې اړه ما ته څه فتوی راکوی: نو ابن عباس رضي الله عنهما ورته وفرمایل چې ما ته رانزدې شه. بیا یې دوباره د نور رانزدې کیدو په اړه وفرمایل تر دې چې هغه دومره رانزدې شو. چې سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما د هغه په سر لاس کېښود. وې فرمایل چې زه نا ته هغه خبره کوم. کومه چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلې ده. هر تصویر جوړونکی به جهنم ته ځي او هغه چې څومره تصویران جوړ کړي دي. د هر یو په مقابله کې به یو مجسم سړی جوړولی شي. چې هغه ته به په جهنم کې عذاب ورکوي. وې

[1]) معارف القرآن ج۱ ص۲۸۳
[2]) مسلم شریف و راجع الی المشکوة ص ۳۸۵

فرمایل: که ستا ددېنه علاوه گزاره نه کیږي: نو د ونو یا د داسې شیانو تصویران جوړوه چې په هغې کې روح نه وي.

۲. ﴿ قَالَ قَتَادَةُ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما حَتَّى سُئِلَ فَقَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا صلی الله علیه وسلم يَقُولُ: مَنْ صَوَّرَ صُورَةً فِي الدُّنْيَا كُلِّفَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا الرُّوحَ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ ﴾ [1]

**ترجمه** : حضرت قتاده رحمه الله فرمايي: چې زه د ابن عباس رضي الله عنهما سره ناست وم. تر دې چې د هغوی څخه پوښتنه وشوه: نو هغوی وفرمایل: چې ما د محمّد رسول الله ﷺ نه اوریدلي، هغوی وفرمایل: چا چې په دنیا کې (ساه لرونکی) تصویر جوړ کړ: نو د قیامت په ورځ به هغه ته حکم وکړی شي. چې په هغې کې روح واچوي او هغه به هیڅکله په هغې کې د روح په اچولو قدرت ونه لري.

۳. ﴿ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رضی الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ: إِنَّ الَّذِينَ يَصْنَعُونَ هَذِهِ الصُّوَرَ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ ﴾ [2]

**ترجمه** : سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمایل: دا خلک چې تصویران جوړوي، د قیامت په ورځ به هغوی ته عذاب ورکولی شي. ورته وبه ویل شي چې کوم صورت تاسو پیدا کړی، په هغې کې روح واچوی.

د امت د جمهورو پدې باندې اجماع ده، د ائمه اربعه وو ټولو دا فتوی ده: چې د ساه لرونکو تصویر جوړول جائز نه دي. [3]

علامه نووي رحمه الله په شرح د مسلم کې فرمايي:

﴿ قَالَ أَصْحَابُنَا وَغَيْرُهُمْ مِنَ الْعُلَمَاءِ: تَصْوِيرُ صُورَةِ الْحَيَوَانِ حَرَامٌ شَدِيدُ التَّحْرِيمِ، وَهُوَ مِنَ الْكَبَائِرِ؛ لِأَنَّهُ مُتَوَعَّدٌ عَلَيْهِ بِهَذَا الْوَعِيدِ الشَّدِيدِ الْمَذْكُورِ فِي الْأَحَادِيثِ، وَسَوَاءٌ صَنَعَهُ بِمَا يُمْتَهَنُ أَوْ بِغَيْرِهِ، فَصَنْعَتُهُ حَرَامٌ بِكُلِّ حَالٍ؛ لِأَنَّ فِيهِ مُضَاهَاةً لِخَلْقِ اللهِ تَعَالَى الخ ﴾ [4]

---

[1] بخاري مع فتح الباري : ۱۰/۳۲۳

[2] بخاري مع فتح الباري : ۱۰/۳۱٦

[3] عمدة القاري ۲۲/۷۰، فتح الباري ۱۰/۳۱۵ وغيره

[4] نووي شرح مسلم : ۲/۱۹۹، د عکس د پوره تفصيل لپاره د مفتي شفيع رحمه الله رساله د تصوير شرعي احکام زياته فايده منده ده.

**ترجمه** : زمونږ اصحاب (شوافع) او نور علماء كرام فرمايي: چې د ساه لرونكو تصوير جوړول سخت حرام دي، د كبيره ګناهونو څخه دی، ځكه چې پدې باندې سخت وعيد راغلی، چې په ډېرو احاديثو كې ذكر دی، ټول پديكې سره برابر دي، څوك چې داسې تصوير جوړوي، چې عادة ذليل او د پښو لاندې كيږي. يا د بل شي وي: خو جوړول يې حرام دي، ځكه چې دا د الله پاك د صفت (خلق) ته تغير وركول دي.

## دولسمه عقيده: دا چې اكثر احاديث صحيح نه دي.

جواب: دا عقيده هم دقرآن او احاديثو څخه صريح خلاف دد. مثلا په قرآن كريم كې دي:

۱: ﴿ وَمَآ آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا ﴾ (١)

**ترجمه** : او رسول الله ﷺ چې څه تاسو ته دركړي، پس هغه ونيسی او د څه نه مو چې منع كوي د هغه څخه منع شی.

۲: ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ﴾ (٢)

**ترجمه** : د هيڅ مؤمن سړي او ښځې لپاره دا جائز نه دي چې الله پاك او د هغه رسول ﷺ د يو كار فيصله وكړي او د هغوی دي بيا هم څه اختيار باقي وي. (د كولو او نه كولو)

۳: ﴿ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴾ (جمعه آيت: ۲)

**ترجمه** : هم هغه (الله پاك) دی، چې په اميانو كې يې هم د هغوی نه يو رسول راوليږلو، چې هغوی ته به هغه آيتونه لولي، هغوی ته د كتاب او سنت تعليم وركوي، يقينا ددېنه مخكې خو هغوی په ښكاره ګمراهی كې وو.

د مفسرينو پدې خبره اتفاق دی چې پدې آيت كې د حكمت نه مراد د رسول الله ﷺ

---

(١) سورة الحشر :آيت ٧

(٢) سورة احزاب آيت: ٣٦

احادیث مبارکه دي. دا خبره خو واضحه ده چې د قرآن کریم ډېر اسونه به فهم کې نه راځي. تر څو چې د رسول الله ﷺ احادیثو ته رجوع ونکړی شي. مثلاً
﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ ﴾ [۱]

**ترجمه** لمونځ ادا کړئ او زکوة ورکوئ

اوس سوال دا پیدا کیږي چې لمونځ کله وکړو؟ څومره. کوم وخت یې وکړو؟ په لمانځه کې څه ولولو؟ او څنګه یې ولولو. رکوع. سجده. قعده او قیام وغیره کې څه ترتیب دی. کوم د کوم نه وروسته. د کوم نه مخکې ادا کړو؟ د لمانځه کولو لپاره نورې هم ډېرې خبرې پیژندل ضروري دي: خو ددې ټولو خبرو څخه په ظاهره کې قرآن کریم خالي دی. په احادیثو کې دا ټولې خبرې موجود دي او د قرآن کریم څخه دعوه ده. چې د قرآن کریم نه علاوه نور هم په رسول الله ﷺ باندې وحی نازلیدله د همدې نوم احادیث دي، پدې باندې قرآن کریم کې ډېر احادیث موجود دي
﴿ مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ [۳]

**ترجمه**: تاسو چې د خورماوو کومې ونې پرې کړې او کومې ونې چې مو ولاړې پرې اینښې. دا د الله پاك په حکم باندې وو

د آیت کریمه مختصره کیسه دا ده. چې په غزوه خیبر کې یهود په خپله قلعه کې خپله بند شو. رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته حکم وکړ. چې د هغوی باغونه وران کړي. چې دوی د قلعه نه بهر راوځي. پدې باندې یهودو مشهوره کړه چې مسلمانان خو فساد کوي: نو د یهودو د خبرو جواب په پورته آیت کریمه کې بیان شو. چې دا څه وشو؟ دا ټول د الله پاك په حکم سره وشو: خو هغه حکم په قرآن کریم کې موجود نه دی. هغه خو رسول الله ﷺ ته سیدنا جبرئیل ﷺ ویلي وو. هم ددې نوم خو حدیث دی. دېته د مفسرینو په اصطلاح کې وحی غیر متلو ویل کیږي

---

[۱]) سورة البقرة :آیت ۴۳
[۲]) الدر المنثور
[۳]) سورة الحشر :آیت ۵

هم پدې وجه امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي

۱ ﴿لَوْلَا السنةُ مَافَهِمَ احدٌ مِّنَّا القرانَ﴾ (۱)

**ترجمه** : که حديث نه وي؛ نو په مونږ کې به څوك هم په قرآن کريم نه وی پوه شوی.

د رسول الله ﷺ په سوونو احاديث پدې اړه راغلي دي. مثلا:

۲: ﴿عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: أَلَا إِنِّي أُوتِيتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ أَلَا يُوشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانُ عَلَى أَرِيكَتِهِ يَقُولُ عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْقُرْآنِ فَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَلَالٍ فَأَحِلُّوهُ وَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوهُ وَإِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم كَمَا حَرَّمَ اللهُ﴾ (۲)

**ترجمه** : سيدنا مقدام بن معديکرب رضي الله عنه فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: واورئ: ما ته قرآن هم راکړل شوی، د قرآن سره د هغې مثل هم. واورئ چې يو موړ سړي تکيه وهلی به وايي: چې خلکو! ستاسو لپاره قرآن کريم کافي دی: نو کوم شيان چې پديکې حلال دي هم هغه حلال گڼئ، حال دا چې د رسول الله ﷺ حرام کړل شوي شيان هغه شيان دي، څنګه چې د الله پاك حرام کړل شوي شيان دي.

۳: ﴿عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ مُرْسَلًا قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ، لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا: كِتَابَ اللهِ، وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ﴾ (۳)

**ترجمه** : امام مالك رحمه الله مرسلا روايت کړی: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: زه په تاسو کې دوه شيان پريږدم، تر څو چې تاسو دا په مضبوطی سره نيولې وي، تاسو به هيڅکله ګمراه نشی، ۱: کتاب الله. ۲: سنت رسول الله ﷺ.

## دیارلسمه عقیده: د جناتو (پيريانو) څخه انکار.

**جواب** : د جن تعريف. هغه يو داسې مخلوق دی، چې الله پاك د اور د شعلو څخه پيدا کړي دي. داسې طاقت لري چې د مرضی مطابق په هر صورت کې متشکل کيدی

---

[۱] ميزان شعراني ص: ۲۵

[۲] ابوداؤد، دارمي وابن ماجة وكذا فى المشكوة : ۲۹

[۳] موطاء امام مالك وكذا مشكوة : ۳۱

شي، د جناتو د تذکرې نه قرآن او حديث ډک دی. د هغې څخه د انکار هيڅ گنجائش نشته

## د جناتو (پيريانو) يادونه د قرآن کريم څخه په يو نظر کې

| ۱ | سورة انعام | ٤ آيتونه |
|---|---|---|
| ۲ | سورة الاعراف | ۲ آيتونه |
| ۳ | سورة هود | ۱ آيت |
| ٤ | سورة الاسراء | ۱ ايت |
| ٥ | سورة الكهف | ۱ آيت |
| ٦ | سورة النمل | ۲ آيتونه |
| ۷ | سورة السجده | ۱ آيت |
| ۸ | سورة سبا | ۳ آيتونه |
| ۹ | سورة الصافات | ۱ آيت |
| ۱۰ | سورة فصلت | ۲ آيتونه |
| ۱۲ | سورة الذاريات | ۲ آيتونه |
| ۱۳ | سورة رحمن | ٥ آيتونه |
| ۱٤ | سورة جن | ٦ آيتونه |
| ۱٥ | سورة الناس | ٦ آيتونه |
| ۱۷ | سورة شورى | ۱ ايت |
| ۱۸ | سورة زخرف | ۳ آيتونه |
| ۱۹ | سورة محمد | ۳ آيتونه |
| ۲۰ | سورة النجم | ۲ آيتونه |

| ۲۱ | سورة التحريم | ۱ آیت |
|---|---|---|
| ۲۲ | سورة الطارق | ۱ ایت |
| ۲۳ | سورة المعارج | ۱ ایت |
| ۲٤ | سورة الفجر | ۱ ایت |
| ۲۵ | سورة القدر | ۱ ایت |

## څو قرآني آیتونه سره د ترجمې !

۱. ﴿ وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ فَلَمَّا حَضَرُوْهُ قَالُوْٓا اَنْصِتُوْا ﴾ [۱]

**ترجمه** : کله چې مونږ متوجه کړل ستاسو طرفته جنات، نو هغوی قرآن اوریدلو. کله چې هغوی هلته ورسیدل: نو وې ویل: چې ټول چوپ شی.

۲. ﴿ قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ﴾ [۲]

**ترجمه** : ووایه! ما ته وحی شوې ده. چې د جناتو یو ټولي چې کله کلام واورید: نو وې ویل: چې مونږ یو عجیبه قرآن واوریدلو.

۳. ﴿ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ﴾ [۳]

**ترجمه** : جناتو به کار کولو د هغوی وړاندې د الله پاك په حکم سره.

او په نبوي احادیثو کې هم په کثرت سره د جناتو او شیاطینو ذکر شته. مثلاً:

۱. ﴿ سُئِلَ رسولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ لَيْسُوا بِشَيْءٍ فَقَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَ أَحْيَانًا بِالشَّيْءِ فيكُونُ حَقًّا ، قَالَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ قَرَّ الدَّجَاجَةِ فَيَخْلِطُونَ فِيهِ أَكْثَرَ مِنْ مِئَةِ كَذْبَةٍ، ثم ان الله حجب الشياطين بهذا النجوة التى يقذفون بها فانقطعت الكهانة اليوم كلا كهانة ﴾ (بخاری ص ۸۵۷)

[۱] احقاف : ۲۹
[۲] جن : ۱
[۳] سبا : ۱۲

**ترجمه** : د رسول الله ﷺ څخه د کاهنانو په اړه سوال وشو: نو هغوی وفرمايل ددې خلکو هيڅ اعتبار نشته. صحابه کرامو ﷡ عرض وکړ. يا رسول الله ﷺ: هغه خلک ځينې داسې خبرې کوي چې رښتيني وي. رسول الله ﷺ وفرمايل جنات څه خبرې د فرښتو څخه واوري او د کاهنانو په غوږونو کې يې اچوي. د خپل طرف نه هم هغې سره خبرې ګډې کړي. چې هغه بالکل دروغ وي؛ خو الله پاك د غيبو د خبرو پټولو (حفاظت) په واپس کيدونکو ستورو سره کړی دی

د جناتو انکار صرف پدې وجه کوي چې هغه مونږ ته په نظر نه راځي. بېشماره داسې شيان دي. چې انسان ته په نظر نه راځي: خو هغه يې مني مثلا روح. د انسان عقل. (هوا) او فرښتې وغيره وغيره. هم پدې وجه علماء عقايد ليکي چې د جناتو او فرښتو د وجود څخه انکار کول د قرآن او احاديثو څخه انکار کول دي. پدې وجه کفر دی. [1]

## څوارلسمه عقيده: د موسی علیه السلام د معجزې څخه انکار کول.

**جواب** : دا هم د قرآن او حديث څخه انکار دی. ددې له امله داسې عقيده ساتل کفر لره مستلزم دي. د انبياؤ ﷩ د معجزو ثبوت د قرآني آيتونو او متواترو اخبارو څخه ثابت دي. دا معجزې د انبياؤ ﷩ د تائيد او تصديق لپاره ورکول شوي دي. چې دا معجزې د هغوی د صداقت دليل وګرځي. بهر حال د موسی علیه السلام د معجزو ذکر خپله په قرآن کريم کې موجود دی. مثلا:

۱: ﴿ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ﴾ [2]

**ترجمه** : مونږ سيدنا موسی علیه السلام ته نهه معجزې ورکړې

۲: ﴿ وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ﴾ [3]

---

[1] عقائد اسلام : ۲/٦۲
[2] بنی اسرائيل : ۱۰۱
[3] البقرة : ٦۰

**ترجمه** : او هغه وخت کله چې موسی د خپل قوم لپاره د اوبو غوښتنه وکړه: نو موږ ورته وویل چې ډبره په خپل امسا ووهه، دا وو چې د هغې څخه دوولس چینې روانې شوې

۳. ﴿ وَاضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ آيَةً أُخْرَىٰ ﴾ [1]

**ترجمه** : پیوست کړه خپل لاس خپل بغل ته. چې هغه به تک سپین بې بد والي بهر شي. دا بله نخښه ده

۴. ﴿ قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ مِنْ رَبِّكَ ﴾ [2]

**ترجمه** : موږ تاته ستا د رب له طرفه د معجزې سره راغلي يو

د معجزو د ثبوت په اړه مولانا محمد ادریس رحمه الله فرمايي چې: معجزې دا د انبياؤ ﷺ د صداقت نخښې دي، ددې مثال داسې دی، چې کله د دنيا بادشاهان څوك د خپل خدمت لپاره منتخب کړي؛ نو د هغوی د عزت او کرامت لپاره هغه نخښې ورکوي. چې د نورو د حوصلې او تمنا څخه خارج وي، همدغه شان الله پاك چې کله چاته د نبوت منصب ورکوي؛ نو هغوی ته هم خاص خاص نخښې ورکړي. چې په هغې سره هغوی په ټول عالم کې ممتاز شي. [3]

## پنځلسمه عقيده

## سيدنا عيسى عليه السلام وفات شوی دی، په آسمان کې ژوندی نه دی.

**جواب** : دا عقيده هم د قرآن او سنت د نصوصو خلاف ده، مثلاً:

۱. ﴿ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا بَلْ رَفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ [4]

---

[1] طه : ۲۲

[2] طه : ۴۷

[3] عقائد اسلام : ۲/۶۸

[4] النساء : ۱۵۷، ۱۵۸

**ترجمه** : د دوی دا وینا چې مونږ د الله پاك رسول سیدنا عیسی بن مریم علیهما السلام وژلی، حال دا چې نه یې وژلی، نه یې په سولی (زندی) کړی. بلکې هغوی په خپلو کې سره په شک کې دي او څوك چې پدې معامله کې اختلاف ساتي. هغوی خپله په شك کې دي، هغوی ته ددې هیڅ علم نشته، سېوا د ګمان د تابعداری څخه. دوی یقینا هغه نه دی وژلی، بلکې الله پاك خپل طرفته پورته کړی. الله پاك غالب او د حکمت څښتن دی.

په روح المعاني کې دي: ﴿ وهو حيٌّ في السماءِ ﴾ سیدنا عیسی علیه السلام په آسمان کې ژوندی دی، هم پدې خبره د ټولو مفسرینو اتفاق دی.

۲: ﴿ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴾ [1]

**ترجمه** : او یو اهل کتاب هم نشته، مګر هغه به ضرور ایمان راوړي. په عیسی علیه السلام باندې (قیامت ته نزدې) د عیسی علیه السلام د وفات نه مخکې او هغه به د قیامت په ورځ په دوی باندې شاهد وي.

۳: ﴿ وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴾ [2]

**ترجمه** : سیدنا عیسی علیه السلام د قیامت د نخښو څخه دی. ته په قیامت کې شك مه کوه؛ زما تابعداري کوه. دا سیده لار ده.

د بېشماره متواترو احادیثو څخه دا خبره معلومیږي، چې سیدنا عیسی علیه السلام آسمان ته ورل شوی. قیامت ته به نزدې رانښکته کیږي، دغه شان د صحابه کرامو رضي الله عنهم او وروستیو علماؤ کې د چا هم پدې اړه اختلاف نه شته چې هغه به په آسمان کې نه وي.

۱: ﴿ عن ابن عباس رضي الله تعالى عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ينزل أخي عيسى ابن مريم من السماء ﴾ [3]

---

[1] النساء : ۱۵۹

[2] الزخرف : ٦١

[3] کنزل العمال : ۷/۲٦۸، ۷/۲۵۹

**ترجمه** : د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما وروړ سیدنا عیسی بن مریم علیه السلام به د اسمان څخه راښکته کیږي.

۲. ﴿ عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: كَيْفَ أَنْتُمْ إِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيكُمْ وَإِمَامُكُمْ مِنْكُمْ ﴾ [١].

**ترجمه** : سیدنا ابوهریره رضي الله عنه فرمایي: چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څه حال به وي ستاسو چې کله په تاسو کې د اسمان نه ابن مریم (عیسی علیه السلام) راښکته شي او ستاسو نه به امام وي.

۳. ﴿ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ إِلَى الْأَرْضِ، فَيَتَزَوَّجُ، وَيُولَدُ لَهُ، وَيَمْكُثُ خَمْسًا وَأَرْبَعِينَ سَنَةً، ثُمَّ يَمُوتُ، فَيُدْفَنُ مَعِي فِي قَبْرِي، فَأَقُومُ أَنَا وَعِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ بَيْنَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ ﴾ [٢].

**ترجمه** : سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: عیسی بن مریم علیه السلام به ځمکې ته راښکته کیږي. نکاح به کوي او د هغوی اولاد به هم کیږي. پنځه څلوېښت کاله به وي. بیا به وفات شي او زما سره په قبر کې به خامخا دفن کیږي. بیا به زه او عیسی علیه السلام د یو قبرستان نه پاڅو. پداسې حال کې چې ابوبکر او عمر رضي الله عنهما به زمونږ ترمنځ وي.

پدې مسئله کې د ټولو مسلمانانو اتفاق دی. چې سیدنا عیسی علیه السلام اسمان ته تشریف وړی. بیا به قیامت ته نزدې راکوځیږي. همدا خبره د ائمه اربعه وو څخه هم نقل ده شیخ عبدالوهاب شعراني رحمه الله فرمایي:

﴿ فقد ثبت نزول عيسى عليه السلام بالكتاب والسنة وزعمت النصارى ان ناسوته صلب ولاهوته رفع والحق انه رفع بجسده الى السماء والايمان بذلك واجب قال تعالى (بل رفعه الله اليه) ﴾ [٣].

---

[١] بخاري : ٤٩٠، مسلم : ١/٨٧، مشكاة : ٤٨٠ وغيره

[٢] كتاب الوفاء لابن الجوزي رحمه الله تعالى كذا في المشكوة : ص ٤٨٠

[٣] يواقيت : ٢/١٤٧

**ترجمه**: د سيدنا عيسى عليه السلام د اسمان نه راښکته کېدل. د کتاب الله او سنت رسول ﷺ څخه ثابت دي او نصارى وايي، چې هغوى په سولى (زندى) کړى شوى دى. او لاهوت اوچت کړى شوى دى؛ خو حق دا ده چې هغوى د بدن سره اسمان ته اوچت کړى شوى دى. پدې باندې ايمان راوړل واجب دي. د الله پاك ددې قول د وجې څخه چې ﴿ بل رفعه الله اليه ﴾ يعنې الله پاك هغوى خپل طرفته پورته کړى دى

## شپاړسمه عقيده: د شق القمر انکار کوي

**جواب**: اصل کې د شق القمر واقعه د قرآن کريم د آيت ﴿ اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ﴾ [١] او د احاديث صحيحه څخه ثابت ده. چې د هغې خلاصه دا ده: رسول الله ﷺ په منى کې تشريف فرما وو، مشرکين مکه د رسول الله ﷺ څخه د نبوت نخښه وغوښته: نو الله پاك دا معجزه ښکاره کړه چې سپوږمۍ يې دوه ټکړې کړه او خلکو ته وليدل: نو بيا خپل منځ کې سره يو ځاى شوه.

ددې واقعې د نورو طرفونو څخه راتلونکو خلکو هم اعتراف وکړ

د علامه طحاوي رحمه الله په نزد د شق القمر والا روايات متواتر دي. ددې انکار کول په هيڅ صورت کې جائز نه دى. مثلا:

١ ﴿ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شِقَّتَيْنِ، حَتَّى نَظَرُوا إِلَيْهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اشْهَدُوا ﴾ [٢].

**ترجمه**: د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ وچودله او دوه ټوټې شوه. هر چا وليده: نو رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل: شاهدي ورکړى.

٢ ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ أَهْلَ مَكَّةَ سَأَلُوا رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم أَنْ يُرِيَهُمْ آيَةً فَأَرَاهُمُ الْقَمَرَ شِقَّتَيْنِ حَتَّى رَأَوْا حِرَاءَ بَيْنَهُمَا ﴾ [٣].

---

[١] القمر: ١

[٢] بخارى و مسلم

[٣] بخارى و مسلم كذا فى المشكوة: ٥٢٤

**ترجمه** : د سيدنا انس بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دی، چې اهل مکه د رسول الله ﷺ نه دا وغوښتل، چې هغوی ته د خپل نبوت نخښه وښيي؛ نو الله پاك د سپوږمۍ دوه ټکړې کولو سره وښودل، تر دې چې هغوی حراء غر د دواړو ټکړو ترمنځ ولید.

٣. انْشَقَّ الْقَمَرُ بمكة حتى صار فرقتين فقال كفار قريش اهل مكة هَذَا سِحْرٌ سحركم به ابْنُ أَبِي كَبْشَةَ، انْظُرُوا السُّفَّارَ فَإِنْ كانوا رأوا ما رأيتم فقد صدق وان كانوا لم يروا مثل ما رأيتم فهو سحرٌ سَحَرَكُمْ به فسئل السُّفَّارُ قالَ وقَدِمُوا منْ كُلّ جهةٍ فقالُوا رأينا. [١]

**ترجمه** : د سيدنا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې د مکې معظمې د قيام په زمانه کې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه، د قريشو کافرانو ووېل چې دا د ابن ابي کبشه (رسول الله ﷺ) جادو دی، چې په تاسو يې کړی دی، پدې وجه تاسو مسافرو ته انتظار وکړی، څکه چې محمد ﷺ په ټولو خلکو باندې د جادو کولو طاقت نه لري. فرمايي: کله چې مسافر راغلل؛ نو هغوی هم ددې (شق القمر) اقرار وکړ.

په اسلامي عقائدو کې ليکل شوي: چې په شق قمر معجزه باندې ايمان راوړل فرض دي، ددې څخه انکار کول کفر دی، پدېکې تاويل کول ګمراهي ده. د کفر غټه خطره ده. څکه چې دا معجزه د صريحو نصوصو څخه ثابته ده، چې په هغې کې بالکل تاويل جائز نه دی. [٢]

## اولسمه عقيده: د شق صدر انکار کول.

**جواب** : د محققينو علماء کرامو په نزد د شق صدر واقعه رسول الله ﷺ سره څلور کرته راپېښه شوې ده!

١: د طفوليت په زمانه کې، کله چې يې عمر مبارك څلور کاله وو
٢: د لسو کالو په عمر کې ورته پېښه شوه
٣: د څلوېښتو کالو په عمر کې د نبوت څخه مخکې.
٤: معراج ته د تشريف وړولو نه مخکې.

---

[١]) ابوداؤد الطيالسي.
[٢]) عقائد اسلام : ٢/٧٢

د شق صدر صورت به دا وو، چې سيدنا جبرئيل او سيدنا ميکائيل عليهما السلام به راتلل او د رسول الله ﷺ سينه مبارکه به يې څيرله او د هغه زړه به راوويست. بيا به يې هغه په زمزمو ووينځی، ددېنه وروسته به يې دوباره په خپل ځای کې کېښوه. دا څلور واره ځلې شق صدر د صحيح او معتبرو روايتونو سره ثابت دی. بلکې د معراج د وخت د شق صدر واقعه خو د متواترو احاديثو څخه ثابت ده. ددې شق صدر علماء کرامو ډېر رازونه او حکمتونه ليکلي دي (١) چې د هغې د ليکلو ځای دا نه دی، او دا ويل چې داسې کيدل ناممکن دي، پدې وجه يې مونږ نه منو. دا خبره غلطه ده. لکه علامه قسطلاني او علامه زرقاني ﷫ چې فرمايي:

﴿ ثم ان جميع ما ورد من شق الصدر استخراج القلب وغير ذلك من الامور الخارقة للعادة مما يجب التسليم له دون التعرض لصرفه عن حقيقته اسلامية ﴾ (٢)

**ترجمه** : څه چې هم روايت شوي، د شق صدر او د قلب مبارك راويستل او د داسې قسم خلاف عادت خبر تسليمول واجب او لازم دی څنګه چې نقل شوي دي.

دا هم په هغه حقيقت باندې حمل کول پکار دي، د الله پاك د قدرت نه يو شی هم محال نه دی. هم دغه شان علامه زرقاني ﷫ فرمايي:

﴿ القدرة فلا يستحيل شيئا من ذلك هكذا قاله القرطبيُّ في المُفهِمِ والطيبيُّ والتوربشتيُّ والحافظ في الفتح والسيوطيُّ وغيرُه ويؤيد الحديث الصحيح أنهم كانوا يرون اثر المِخيَطِ في صدره قال السيوطيُّ وما وقعَ مِنْ بَعْضِ جَهَلَةِ العصرِ منْ انكارِ ذلك وحملِه على الامرِ المعنويِّ فَهُوَ جهلٌ صريحٌ وخطاءٌ قبيحٌ نشأ مِنْ خذلانِ الله تعالى وعكوفِهِمْ على العلومِ الفلسفيَّةِ وبعدهِمْ عَنْ دقائقِ السُّنَّةِ عافانا اللهُ مِنْ ذَنْبٍ ﴾ (٣)

**ترجمه** : امام قرطبي، طيبي، توربشتي، حافظ ابن حجر عسقلاني او علامه جلال الدين سيوطي ﷫ وغيره محققين علماء فرمايي چې د شق الصدر معجزه په خپل

---

(١) سيرة المصطفى : ١/٧٤

(٢) مواهب وشرح مواهب

(٣) زرقانی شرح مواهب ٦/٣٤

ځای حقیقت دی، د صحیح حدیث څخه ددې تائید هم کیږي. هغه دا چې په حدیث کې دي، چې صحابه کرامو ﷡ به د ګنډلو نخښې د رسول اللهﷺ په سینه مبارکه پخپلو سترګو لیدلې، علامه سیوطي ﷫ فرمايي: چې زمونږ د زماني ځینې جاهلان د شق صدر انکار کوي او دا امر معنوي ګڼي. دوی په صریح جهالت او سخته غلطۍ کې اخته دي. چې د الله پاك د نه توفیق او فلسفي علومو د مشغولیت او د علوم سنت نه د لرې والي نتیجه ده. الله پاك دې ترې مونږ محفوظ وساتي. (آمین ثم آمین)

## اتلسمه عقیده: د معراج څخه انکار

**جواب** : د معراج مطلب دا دی: چې یوه شپه په رسول اللهﷺ باندې د ځمکې څخه تر آسمانونو پورې او د هغه ځای څخه د جنت او جهنم سیل وکړی شو. مشهوره کیسه ده. په هغې کې د رسول اللهﷺ په امت پنځه وخته لمونځونه فرض شو. د علماء کرامو په نزد د مسجد حرام څخه تر مسجد اقصی پورې سفر ته اسراء ویل شوي. د مسجد اقصی څخه پورته تر آسمانونو پورې سفر ته معراج وايي. کله پوره واقعې ته هم معراج ویل کیږي.

د قرآن او حدیث څخه دا واقعه ثابته ده: پدې وجه ددې څخه انکار د یو مسلمان لپاره ممکن نه دی؛ لکه په قرآن کریم کې چې دي:

﴿ سُبْحٰنَ الَّذِیْۤ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِیْ بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ ﴾ [1]

**ترجمه** : پاك دی هغه ذات چې خپل بنده (رسول اللهﷺ) یې په یوه شپه کې د مسجد حرام (مکې) څخه مسجد اقصی ته بوتلو.

احادیث هم ددې واقعې په اړه ښه ډېر راغلي. مثلاً

۱. ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ أُرِيَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ ﴾ [2]

---

[1]) سورة الاسراء : ۱

[2]) البخاري : ٦٨٦

**ترجمه** : سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي په معراج کې چې رسول الله ﷺ څه ليدلي دي. هغه يې په غړيدلو سترګو ليدلي دی

۲ ﴿ وعن أبي بكرٍ من روايةِ شدّادِ بنِ أوسٍ عنه أنّه قال للنبيّ صلى الله عليه وسلم ليلةَ أُسرِيَ به طلبتُك يا رسولَ الله! البارحةَ في مكانِكَ فلم أجدْك فأجابَه أن جبريلَ عليه السلام حَمَلني إلى المسجدِ الأقصى ﴾ (۱)

**ترجمه** : سيدنا ابوبکر رضي الله عنه عرض وکړ يا رسول الله ﷺ ما تاسو بيګا ستاسو په کور کې لټولی؛ خو تاسو مې بيا نه موندلی؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: زه جبرئيل عليه السلام ځان سره بيت المقدس ته بوتلی وم.

په قول د شاعر: مکان اور لامکان سے اس کی منزل اور آگے ہے

نہ ہو حیران ابھی معراج انسان دیکھنے والے

ملا علي قاري رحمه الله د معراج د منکرينو په اړه د فقه اکبر په شرح کې فرمايي:

﴿ فی کتاب الخلاصة (۲) من انکر المعراج ينظر ان انکر الاسراء من مکة الی بيت المقدس فهو کافر ولو انکر المعراج من بيت المقدس لا يکفر وذلك لان الاسراء من الحرم الی الحرم ثابت بالآية وهي قطعية الدلالة والمعراج من بيت المقدس الی السماء ثبتت بالسنة وهي ظنية الرواية والدراية ﴾ (۳)

**ترجمه** : په خلاصة الفتاوی کې دي: چا چې د معراج څخه انکار وکړ: نو که هغه د مکې څخه تر بيت المقدس پورې د معراج څخه انکار کوي: نو هغه به کافر شي او که د بيت المقدس څخه وړاندې يې انکار وکړ (يعنې اسمان ته د تلو): نو هغه به کافر نه وي. ځکه چې د مکې څخه تر بيت المقدس پورې سفر. يعنې اسراء خو په قرآني قطعي آيت سره ثابت دی او معراج د بيت المقدس څخه تر اسمانه پورې سفر په حديث سره ثابت دی کوم چې ظني دی.

---

(۱) الشفاء للقاضي عياض : ۱/۱۵۳

(۲) خلاصة الفتاوی ۱/۱۴۹، وکذا فی الهندية : ۱/۹۳

(۳) شرح فقه اکبر ص ۱۳۵

دغه شان په عقائد الاسلام کې ليکلي دي چې د معراج په معجزه باندې ايمان راوړل فرض دي. ددې نه انکار کول کفر دی او پديکې تاويل کول ګمراهي ده. [1]

**يادونه** : د معراج په اړه پوره تحقيق په کتاب ضوء السراج في تحقيق المعراج، مصنفه مولانا محمد سرفراز خان صفدر شيخ الحديث ګوجرانواله کې کتلی شي.

## نولسمه عقيده: د امام مهدي څخه انکار کول

جواب پداسې حال کې چې د امام مهدي راتلل به قيامت ته نزدې کيږي. دا خبره د اهل سنت والجماعت په نزد د متواترو احاديثو څخه ثابته ده. مثلاً:

۱ ﴿ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ أَوْلَادِ فَاطِمَةَ ﴾ [2]

**ترجمه** : د سيده ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چې هغوی د رسول الله ﷺ نه واوريدل مهدي به زما د خاندان څخه وي يعنې د فاطمې رضی الله عنها څخه.

۲ ﴿ وَعَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ، يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ، وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ، يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا ﴾ [3]

**ترجمه** : سيدنا علي رضي الله عنه وفرمايل: رسول الله ﷺ ويلي، زر ده چې د هغه د نسب نه به يو سړی پيدا شي. چې نوم به يې ستاسو د نبي ﷺ په نوم وي، په اخلاقو کې به د هغه په شان وي. نه په پيدايش کې او هغه به ځمکه د عدل او انصاف څخه ډکه کړي.

۳ ﴿ عن عبدِ اللهِ بنِ مسعودٍ قال قال رسول الله ﷺ : يَمْلِكُ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي واسْمُ أبيهِ اسْمَ أبي.... هَذَا الحَدِيثُ حَسَنٌ صَحِيحٌ ﴾

**ترجمه** : د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی. چې رسول الله ﷺ وفرمايل: (دنيا به تر هغه وخته پورې پاتې وي تر څو زما د خاندان يو سړی د عربو بادشاهي

---

[1]) عقائد الاسلام : ۲/۷۲

[2]) ابوداؤد : ۲/۲۴۰، ابن ماجة وكذا في المشكوة ص : ٤٧٠

[3]) ابوداؤد : ص ۲۴۱، وكذا في المشكوة : ص ٤٧١

وکړي، د هغه نوم به زما د نوم په شان او د هغه د والد صاحب نوم به زما د والد صاحب د نوم په شان وي

د امام مهدي د انکار په اړه علماء فرمايي چې انکار په هيڅ صورت کې هم جائز نه دی او د امام مهدي رحمه الله په راتلو د امت اجماع هم ده [۱].

د هغه په راتلو د اهل سنت والجماعت اتفاق دی

## شلمه عقيده

### انسان هم د نبي برابر کيدی شي او په محنت سره دا مرتبه حاصلولی شي.

**جواب** : دا عقيده سائل هم د قرآن او حديث څخه خلاف ده. ځکه د امت محمديه اتفاق دی، چې نبوت يو وهبي منصب دی چا ته چې يې الله پاك ورکوي دا د هغه خوښه ده، پديکې د چا کوشش او محنت لره دخل نشته. د الله پاك ارشاد دی

۱: ﴿ رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ذُو الْعَرْشِ يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ يَوْمَ هُمْ بَارِزُونَ ﴾ [۲]

**ترجمه** : ( الله پاك ښه پيژني هغه څوک چا ته چې نبوت ورکوي ) هغه لويو مرتبو اود عرش مالك دی، راليږي روح (جبرئيل عليه السلام يا وحی) په خپل حکم سره. د خپلو بندګانو څخه په چا چې يې خوښه شي، ددې لپاره چې وويروي هغوی د هغې ورځې د ملاقات څخه په کومه ورځ چې به هغوی ښکاره راروان وي.

۲: ﴿ يُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ بِالرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ أَنْ أَنْذِرُوا أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاتَّقُونِ ﴾ [۳]

**ترجمه** : راليږي ملائکې په وحی سره. په خپل حکم باندې، په چا چې وغواړي په خپلو بندګانو کې، خبرداری ورکړي چې يقينا نشته حقدار د بندګۍ مګر زه! نو خاص زما څخه وويريږی!

---

[۱] د زيات وضاحت لپاره: شرح عقيده سفارينيه ۲/٦٧ وګوری، همدغه شان د شيخ ابن حجر مکي کتاب د مهدي منتظر علامات وګوری. من شاء فليراجع اليه.

[۲] سورة انعام: ۱۲۵

[۳] النحل : ۲

۳ ﴿ مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِنْ خَيْرٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَاللَّهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴾ [۱]

**ترجمه** : نه خوښوي كافران. اهل كتاب او مشركين چې نازل شي په تاسو څه خير. ستاسو د رب له طرفه او الله پاك خاص كوي په خپل رحمت سره څوك چې وغواړي او هغه د لوى فضل څښتن دى

امام غزالي رحمه الله فرمايي څنګه چې د انسان انسانيت او د ملايكو ملكيت اكتسابي نه دى. چې په مجاهدې او كوششونو سره حاصل شي. همدغه شان د انبياؤ او مرسلينو نبوت او رسالت هم كسبي نه دى. [۲]

پدې خبره د ټولو امت اتفاق او اجماع ده. دا خبره چې د يو نبي (معاذ الله) د توحيد تعليم مكمل نه دى. د ټولو انبياؤ عليهم السلام تعليم ناقص وو. دا عقيده هم د قرآن. حديث او دغه شان د امت د اجماع خلاف ده او داسې عقيده لرونكي خلك بالاتفاق كافران دي

## يويشتمه عقيده: مړي ته ثواب نه رسيږي !

**جواب** : دا خبره هم د اهل سنت والجماعت خلاف ده. د قرآن او حديث څخه دا خبره ثابته ده. چې انسان د خپلې نيكئ ثواب مړي ته بخښلى شي. پدې باندې د اهل سنت والجماعت اتفاق دى. لكه چې په متعددو روايتونو كې راځي يو صحابي د رسول الله ﷺ په مشوره د خپلې مور د ايصال ثواب لپاره كوهى (څا) وكنېست. [۳]

دغه شان رسول الله ﷺ يوې ښځې ته د هغې د پلار له طرفه د حج كولو اجازت وركړ [۴]

په قرآن كريم كې هم راځي!

۱: ﴿ وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا ﴾ [۵]

---

[۱] البقرة ۱۰۵

[۲] معارج القدوس

[۳] مشكاة

[۴] مشكاة

[۵] سورة اسراء : ۲٤

ترجمه: او دعا کې وو ایه چې اې زما ربه ما او په مور او پلار مې هم هغه شان رحم وکړه څنګه چې هغوی په ماشوم والي کې زما تربیت کړی وو

۲ ﴿اَلَّذِیْنَ یَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهٗ یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَیُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَیَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا﴾ [۱]

ترجمه کومو ملایکو چې عرش پورته کړی. کومې ملایکې چې د هغې نه شاو خوا دي. تسبیح او د خپل رب حمدونه وایي. پدې باندې ایمان راوړي او د مؤمنانو لپاره د امغفرت غوښننه کوي

پدې اړه علامه ابن الهمام رحمه الله فرمایي:

﴿ فَهٰذِهِ الْاٰثَارُ وَمَا قَبْلَهَا وَمَا فِي السُّنَّةِ أَيْضًا مِنْ نَحْوِهَا عَنْ كَثْرة قَدْ تَرَكْنَاهُ لِحَالِ الطُّولِ يَبْلُغُ الْقَدْرَ الْمُشْتَرَكَ بَيْنَ الْكُلِّ، وَهُوَ أَنَّ مَنْ جَعَلَ شَيْئًا مِنَ الصَّالِحَاتِ لِغَيْرِهِ نَفَعَهُ اللهُ بِهِ مَبْلَغَ التَّوَاتُرِ، وَكَذَا مَا فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى مِنَ الْأَمْرِ بِالدُّعَاءِ لِلْوَالِدَيْنِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا} وَمِنَ الْإِخْبَارِ بِاسْتِغْفَارِ الْمَلَائِكَةِ لِلْمُؤْمِنِينَ قَالَ تَعَالَى {وَالْمَلَائِكَةُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِمَنْ فِي الْأَرْضِ} وَقَالَ تَعَالَى فِي آيَةٍ أُخْرَى {الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا} وَسَاقَ عِبَارَتَهُمْ {رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ} إِلَى قَوْلِهِ {وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ} قَطْعِيٌّ فِي حُصُولِ الْاِنْتِفَاعِ بِعَمَلِ الْغَيْرِ﴾ [۲]

ترجمه: غرض دا احادیث او کوم چې ددېنه مخکې لیکل شوي. همدغه شان نور هغه روایتونه چې په سنتو او ډېرو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه روایت دي. چې مونږ د اوږد والي له امله نه دي ذکر کړي. د هغه ټولو شریکه خبره دا ده چې په ایصال ثواب سره الله پاك مړي ته فایده رسوي. دا خبره د تواتر حد ته رسیدلې ده. همدغه شان په کتاب الله کې چې د مور او پلار په حق کې د دعا حکم راغلی. د الله پاك ارشاد دی ﴿وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا﴾ اې زما ربه! ته زما په مور او پلار باندې رحم وکړه! څنګه چې هغوی په ماشوموالي کې زما پالنه کړې وه. دغه شان په قرآن کریم کې دا راغلي: چې ملایکې د مؤمنانو لپاره بخښنه غواړي، د الله پاك ارشاد دی: ﴿والملائكة

---

[۱] سورة المومن: ۷

[۲] فتح القدير شرح هداية: ۲/۳۰۹

﴿يسبحون بحمد ربهم﴾ چې ملايکې د خپل رب حمد بيانوي، پدې باندې يقين ساتي او د مؤمنانو لپاره د مغفرت دعا ګانې غواړي، دا ټول پدې خبره قطعي ثبوت دی چې د نورو د عمل نه فايده بل انسان ته رسيږي.

## د فرقه نيچريه په اړه د مفتيا نو رايې

کله چې فرقه نيچريه په ترقی کې وه: نو مولانا علي بخش خان مکې معظمې ته لاړ. د سر سيد د مذهبي عقيدو خلاف يې د هغه ځای د مذاهب اربعه وو د مفتيانو فتوی راوړه. د هغه څلورو واړو مذاهبو د مفتيانو پدې خبره اتفاق دی. فرمايي چې:

دا سړی ضال او مضل. بلکې هغه د ابليس لعين خليفه دی. چې د مسلمانانو د ګمراه کولو اراده لري او د هغه فتنه د يهودو او نصارٰی د فتنې څخه هم لويه ده. په اولوا الامر باندې ددې سړي څخه د انتقام اخستل. په ضرب او حبس کې بندول. هغه ته د تاديب ورکولو لپاره واجب دي.

او بيا مولوي علي بخش خان د مدينې منورې د لوی مفتي څخه فتوی واخسته. په هغې کې هغوی دا وليکل:

څه چې د در مختار او د هغې د حواشيو څخه معلوميږي، د هغې حاصل دا دی: چې دا سړی خو يا ملحد دی يا د اول نه کفر ته مائل وو. يا زنديق دی هيڅ دين نه لري، د حنفي مذهب د بيانونو څخه معلوميږي چې د داسې خلکو توبه د نيولو څخه وروسته نه قبليږي. که دې سړي د د نيولو څخه وړاندې توبه وکړه او د ګمراهی څخه يې خپل ځان وژغوره. په هغه کې د توبې علامات ښکاره شو؛ نو نشي به وژلی، کنه نو د هغه وژل واجب دي. (۱)

په تجانب اهل السنة کې دي چې کوم سړی د نيچريه پير (سر سيد احمد) په کفريه قطعيه يقينيه کې په يو کفر باندې د خبرېدو نه وروسته د هغه په کافر يا مرتد کيدو کې شک وکړي. يا هغه ته په کافر مرتد کيدو کې توقف وکړي؛ نو هغه هم په حکم د

(۱) منصب روز ليل ونهار لاهور فتاوی نمبر ۱۹ اپريل ۱۹۷۰ء

شریعت مطهره قطعا یقینا کافر او مرتد دی او که بې توبې مړ شو: نو د ابدي عذاب مستحق دی.[۱]

د بریلوي مکتب فکر مشهور عالم حشمت علي هم د سر سید د کفر فتوی ورکړې ده.[۲]

مولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله هم د ځینو د کفر او د ځینو د ګمراه کېدو فتوی ورکړې ده.[۳]

## د فرقه نیچریه د زیات تحقیق لپاره لاندې کتابونه وګورئ

د فرقه نیچریه د زیات تحقیق لپاره ددې کتابونو مطالعه زیاته فایده منده ده.

- امداد الفتاوی ۶/۱۶۶ تا ۱۸۵ ... مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله تعالی
- عقائد اسلام .... مولانا محمد ادریس کاندهلوی رحمه الله
- تفسیر حقانی، خصوصا مقدمه ..... مولانا عبدالحق حقانی صاحب رحمه الله
- انگریز کے باغي مسلمان ... جناب جانباز مرزا صاحب
- اصلاح الخیالی ... مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله
- اسلامي تهذیب وتمدن (باب دوم) قاری طیب صاحب رحمه الله
- نزهة الخواطر ۸/۳۰ تا ۳۸ ..... مولانا عبدالحئ لکهنوی رحمه الله
- علوم القرآن ص ۵٤ .... مولانا محمد یوسف بنوری
- مشکلات القران (بحث سر سید) علامه انور شاه کشمیری رحمه الله تعالی

د سر سید دا وینا چې د مریم رضي الله عنها نکاح د یوسف نجار نومي سړي سره شوې، د هغې په نتیجه کې سیدنا عیسی علیه السلام پیدا شوی، داسې عقیده ساتل د اهل سنت والجماعت په نزد کفر ده، ځکه چې د مریم رضي الله عنها سره د یوسف نومي سړي نکاح نده شوې.

---

[۱] تجانب اهل السنة : ۸٦
[۲] لیل ونهار، ۱۹ اپریل ۱۹۷۰ء
[۳] په امداد الفتاوی کې دیر په تفصیل سره ددې فرقې عقائد او ددې خلاف فتوی لیکل شوې ده. ٦/۱٦٦ تا ۱۸۵

په انسائیکلو پیډیا آف بایبل کې دي: چې په مریم ﷺ باندې بهتان پېنتهرا نالي نومي سړي لګولی وو دا خبره بالکل غلطه او بې بنسټه ده ځوك چې د قرآن کریم په آیتونو کې غور کوي، په هغه باندې به دا حقیقت ښه واضحه شي چې د مریم ﷺ نه د سیدنا عیسی علیه السلام پیدایش د الله پاك د نخښنو څخه وو. د قرآن کریم صفا اعلان دی'

﴿ اِنَّ مَثَلَ عِیْسٰی عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَیَكُوْنُ ﴾ (۱)

# [دغیر مقلدینو فرقه]

## دغیر مقلدینو د فرقې تاریخ

کله چې هندوستان ته انګریزان راغلل. په ۱۸۵۷ء کې د آزادی جنګ دبرطانیې دحکومت بنسټونه په خوځښت راوستل؛ نو انګریزانو یو چل جوړ کړ. چې په مسلمانانو کې د بې اتفاقی تخم وکري، کله چې دوی خپلو کې په جنګ شي؛ نو زمونږ لپاره به حکومت آسانه شي. ددې له امله هغوی دمذهب په نوم په مسلمانانو کې ډېرې ډلې جوړي کړې، په هغوی کې یوه ډله د غیر مقلدینو هم وه.

په لومړیو کې به دې فرقې خپل ځان ته محمدي ویل (حاشیه نظام الاسلام) خو مخالفینو به دوی د وهابي او غیر مقلدینو د ډلې په نوم یادول. انګریزانو به هغه چا ته وهابي ویل: ځوک به چې ډېر مجاهداو بهادر وو. هر وخت به یې سر راپورته کولو: نو ددې فرقې یو لوی محسن مولانا محمدحسین بټالوي کوشش وکړ او د انګریزانو دحکومت څخه یې خپل نوم اهل حدیث منظور کړ (سیرت ثنائي، ص ۳۷۲)

سرچارلس ایچې سن چې په هغه وخت کې دپنجاب لیفټننټ ګورنر (نایب والي) په حیث پېژندل کېده. هغه سره د مولانا محمدحسین بټالوي ډېرې ښې اړیکې وې، دهغه په کوششونو یې دخپلې فرقې دا نوم کېښود. پدې وجه چې انګریزان د وهابي د نوم په وجه دوی خپل مخالف ونه ګڼي.

---

(۱) سورة آل عمران : ۵۹

بيا دا فرقه بنه برابره د انګرېزانوپه وفادارۍ کې استعماله شوه. بيا هم مولانا محمد حسين بټالوي د جهاد په منسوخ کېدو باندې يوه رساله "الاقتصاد في مسائل الجهاد" ۱۲۹۳هـ کې وليکله. ددې رسالې په ليکلو د انګرېزانوحکومت ده ته ډېره ځمکه او انعام ورکړ (اولی اسلامي تحريک ،ص۲۹،او سيرت ثنائي،ص۳۷۲)

همدا شان کله چې مياں نذير حسين د غيرمقلدينو يو جوړونکی د حج په اراده لاړ: نو هغه اول د دهلي کمشنر ته لاړ. د هغه څخه يې يو ليکل شوی کاغذ واخيست. چې په هغې کې يې ليکلي وو. مولوي نذير حسين د دهلي يو لوی عالم دی. چا چې په ډېر نازک وخت کې دانګرېزانو حکومت سره خپله وفاداري ثابته کړې. هغه خپل فرض ادا کولو او د کعبې د زيارت په خاطر په سفر روان دی. اميد لرم چې د کوم انګريز سرکاري افسر مرسته غواړي؛ نو هغه به ورته مرسته ورکوي. ځکه چې هغه بنه په پوره توګه ددې مرستې حقداری دی. (الحيات بعد المماة۱۶۲)

هم دا ډول د ملکه وکټوريه د جشن جوبلي په موقع غيرمقلدينو يوه داسې لويه اداره جوړه کړه چې په هغې باندې يې وليکل: "د اهل حديثو د زړه نه دا دعا ده جشن جوبلي مبارک شه" (اشاعة السنة :۹/ ۲۰۶ شماره ۷)

هم دا ډول انګرېزانو په مسلمانانو باندې ډېر زيات ظلمونه وکړه. په نورو باندې يې پابندي ولګوله: خو د اهل حديثو په دغه زمانه کې ۲۸رسالې چاپ شوې. چې په هغې کې دوه روزانه ،۸ هفتې والا ،او۱۷د مياشتې والا وې

بهر حال دې فرقې د انګرېزانوپه مشرۍ کې ترقي وکړه. په اسلامي امت يې د ديني آزادی، افتراق او انتشار سکروټې بلې کړې

## دافرقه کله جوړه شوه ؟

دالکلام المفيد په تقريظ کې د مولانا عبدالديان صاحب د قول مطابق ددې بنياد اېښودونکي عبدالحق بنارسي وو او ددې بنياد په ۱۲۴۶هـ کې کېښودل شو.

ددې فرقې دپېدا کېدو نه تر اوسه پورې د يو نيم سلو (۱۵۰) کالو څخه زيات وخت نه دی شوی، تقريبا ۱۸۳۰ء سره نږدې نږدې دا فرقه جوړه شوې.

# د غیر مقلدینو د فرقې مشر د میاں نذیر حسین دهلوي حالات

**پیدائش** : دی په کال ۱۲۲۰ھ کې د بهار صوبې ضلع مونګر په یو کلي سورج ګړھ کې پیدا شوی

**تعلیم** : لومړنی تعلیم یې په پټنه کې حاصل کړی. بیا دهلي ته راغلو. دلته یې د حضرت شاه محمد اسحق دهلوي رحمه الله په درس کې د حاضرېدو کوشش یې وکړ: خو باقاعده داخله ورته ملاو نه شوه، ددې وجې نه به په درس کې حاضرېده خو کله کله

**استاذان** : د شاه محمد اسحق دهلوي رحمه الله په درس کې به کله کله شاملېدو. دویم استاذ یې د هغوی خپل خسر مولانا عبدالخالق (وفات ۱۲۶۱) وو. دا دواړه استاذان هم د میاں نذیر حسین نه خفه وو. یوه ورځ شاه اسحق رحمة الله علیه وفرمایل چې ددې هلک نه د وهابیت خطره مخې ته راځي، ډېر تېز هلک دی (تحفة العرب والعجم ص ۶

دویم استاد یې مولانا عبدالخالق وو، هغه دده نه ډېر سخت خفه وو. په قلاره قلاره شیعیت ته مائل کېده، لکه په "حاشیه کشف الحجاب" کې یې لیکلي دي. مولوي نذیر حسین دهلوي د سید محمد مجتهد شیعه نه د خطونو په ذریعه په امام ابو حنیفه رحمه الله باندې د طعن مضمونونه راغوښتي وو. بیا یې دا همت چې په ائمه کرامو رحمهم الله، صحابه کرامو رضی الله عنهم او فقهاؤ په طعن کې بوخت شو. داسې ائمه کرام رحمهم الله، صحابه کرام رضی الله عنهم او فقهاء چې هغوی د الله د عبادت ژوندی نمونې وې، دې خلکو د مسلمانانو په خپل منځ کې جنګول لوی عبادت فرض کړ. د مولوي نذیر حسین په شیعه کېدو کې شک نشته (حاشیه کشف الحجاب ص ۹)

حضرت حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمایي د مولوي نذیر حسین شهرت چې ما واورېد: نو زما ارمان وو چې زه دوره حدیث دده نه لولم، ما استخاره وکړه؛ نو خوب مې ولید: چې مولوي نذیر حسین چهاچ تقسیموي، پدې زه پوه شوم چې د اسلام مثال خو په احادیثو کې په شودو سره ورکول شوی. هغه سره شوده نشته، بلکه صرف چهاچ دي؛ نو د هغه علم هم د حقیقت څخه خالي دی

همدا ډول په تذکرة الرشيد کې يې ليکلي: چې مولانا عبدالمجيد مراروي فرمايي: چې ما مولوي نذير حسين نه حديث شروع کړه: نو اکثر به په خوب کې راته د خنزير بچي راتلل، بيا مې مولانا فضل الرحمن ګنج مراد آبادي سره مشوره وکړه، هغوی وفرمايل: د مولانا رشيد ګنګوهي څخه حديث لوله، کله چې مې ده سره حديث شروع کړه؛ نو په ځای ددې چې بد خوبونه ووينم، زړه ته به مې خوشحالي راتله. (تذکرة الرشيد ۲/ ۳۲۰)

د انګريز حکومت سره يې خاص تعلق وو ددې له امله د برطانيې حکومت هغه ته په ۱۸۹۷ دشمس العلما خطاب ورکړ.

**وفات:** سل کاله ژوند نه وروسته په ۱۳۲۰ کې هغه مړ شو.

**يادونه:** د غير مقلدينو دا ډله نواب صديق حسن خان، محمد حسين بټالوي، مولانا ثناءالله امرتسري او مولانا محمد ابراهيم سيالکوټي وغيره خلکو ډيره مضبوطې ورکړې ده.

## دغير مقلدينو دفرقې عقيدې او نظريې

(۱) د تقليد څخه انکار (۲) د امت د اجماع څخه انکار

## په څو نورو بنيادي مسئلو کې اختلاف

(۳) دشلو تراويحو څخه انکار (۴) په يو مجلس کې د درې طلاقو د واقع کېدو څخه انکار (۵) امام سره قراءت کول (۶) لمونځ کې په نامه لاسونه نه تړل. بلکې په سينه تړل (۷) لمونځ کې رفع اليدين کول (۸) په اوچت آواز سره آمين ويل (۹) دقربانۍ درې ورځې (۱۰) په موزو مسح کول

### د غير مقلدينو د فرقې عقيدې او نظريې، د قرآن او حديث څخه د هغې جوابونه

## اولنۍ عقيده: د تقليد څخه انکار

پدې سلسله کې غير مقلد عالم مولانا عبدالجبار ليکي:

"د مقلدينو احنافو په فرقه ډير افسوس دی. د شخصي تقليد کولو له امله، چې هغه

يو بدعت او نوی ايجاد شوی کار دی. د څه په وجه چې سړی په جهالت کې اوسي (نتائج تقليد)

دغسې مشهور عالم دين مولانا عبدالشکور عبدالقادر حصاروي ليکي خواص خو پوهيږي. زه د عوامو په خاطر څه عرض کوم چې مقلدين په لسو وجو ګمراه او د ناجيه فرقه څخه خارج دي، چا سره يې نکاح جائز نه ده. اوله وجه يې داده چې په موجوده حنفيانو کې شخصي تقليد دی، چې سراسر حرام او ناجائز دی. (سياحة الجنان بمناکحة اهل الايمان ص ۵)

په يو بل ځای کې ليکي چې: ريښتوني او ناجيه فرقه داهل حديثو ده. پاتې نوري في النار والسقر دي؛ نو لهذا نکاح د فرقه ناجيه په خپل منځ کې پکارده. د اهل بدعت سره دي نه وي، ددې لپاره چې مخالفت لازم نه شي، بلکې په يو ځای کې خو يې تقليد ته شرک ويلي. (سياحة الجنان بمناکحة اهل الايمان: ص ۲۳)

جواب: ددې په خلاف د جمهورو عالمانو اتفاق دی. چې تقليد ضروري دی. ددېنه بغير سړی په صحيح لاره نشي چلېدی. ځکه ډېرې مسئلې په قرآن او حديث کې په واضحه توګه نه دي ذکر شوي؛ نو پدې صورت کې د سړي په خپل عقل او علم د اعتمادکولو نه ښه دادي چې هغه د يو عالم مجتهد په خبره اعتماد وکړي. د همدې اعتماد نوم تقليد دی.

**د تقليد تعريف** : "العمل بقول امام مجتهد من غير مطالبة دليل."

ترجمه: "د کوم يو مجتهد په قول باندې عمل کول بغير د دليل د غوښتنې نه"

**تقليد په دوه قسمه دی:** (۱)تقليد مطلقا (۲)تقليد شخصي

**تقليد مطلقاً**: هغه ته وايي: چې د يو معين او ټاکلي مذهب د ټولو مسئلو پابندي نه کول، بلکې څه مسئلې د يو مجتهد اخستل او څه مسئلې د بل مجتهد اخستل.

**تقليد شخصي**: ديو معين او ټاکلي مذهب تقليد کول، چې د هغې نسبت کوم امام طرفته وي، لکه امام شافعي رحمه الله، امام ابو حنيفه رحمه الله. امام مالک رحمه الله، امام احمد رحمه الله بن حنبل رحمه الله وغيره.

# د تقليد ثبوت د قرآن مجيد نه

(۱) فَسْـَٔلُوٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۳﴾ (سورة النحل آيت ۴۳)

ترجمه: که تاسو نه پوهېږئ؛ نو د اهل علمو څخه پوښتنه کوئ.

ددې آيت په تفسير کې علامه آلوسي رحمه الله فرمايي

"واستدل بها على وجوب المراجعة للعلماء فيما لا نعلم" (روح المعاني ۴/ ۱۴۸)

ترجمه: "ددې آيت څخه استدلال شوی، د کومې خبرې علم چې نه وي، په هغې کې عالمانو ته رجوع کول واجب دي"

هم دا خبره علامه عبدالبر رحمه الله فرمايي د علماء کرامو پدې خبره اتفاق دی، چې د عوامو لپاره د خپل امام تقليد واجب دی، ځکه چې د الله تعالى د قول فَسْـَٔلُوٓا اَهْلَ الذِّكْرِ الاية نه هم دا مراد دی. (جامع بيان العلم وفضله ۲/ ۹۸۹)

(۲) وَ اِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَ اِلٰٓى اُولِي الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ شورة النساء آيت ۸۳

ترجمه: کله چې هغوی ته د امن يا دخوف څه معامله پېښه شي؛ نو هغه ډېره مشهوره کړي، که چيرې د الله پېغمبر او په خپلو کې چې کوم اولی الامر دي هغې ته يې راوړي؛ نو په هغې کې چې کوم اهل استنباط (يعنې مجتهدين) دي، هغوی به په ښه طريقه ددې حقيقت معلوم کړي.

(۳) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ. سورة النساء آيت ۵۹

ترجمه: "اې مؤمنانو! د الله، د رسول او په خپلو کې د اولی الامر اطاعت کوئ."

اُولِي الْاَمْرِ څخه مراد د اکثرو مفسرينو په نزد علماء او مجتهدين دي، همدا خبره حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالى عنه، حضرت جابر بن عبدالله رضی الله تعالى عنه، حضرت حسن بصري رحمه الله، حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله په څېر د اکابرو مفسرينو څخه نقل دي.

علامه آلوسي رحمه الله فرمايي:

"فان العلماء هم المستنبطون المطرحون للاحكام" روح المعاني

ترجمه: بېشکه د عالمانو څخه مراد هغه څوک دي. چې د احکامو استنباط او هغه اخذ کوي (يعني علماء او مجتهدين)

(۴) فَلَوْ لَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَ لِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوْا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ سورة التوبة آيت ۱۲۲

ترجمه: په هره يوه فرقه کې يوه (ډله) ولې نشته. چې د دين پوهه پيدا کړي. خپل قوم ووېروي. کله چې د هغوی طرفته راواپس شي. کېدی شي چې دوی ووېرېږي

(۵) وَّ اتَّبِعْ سَبِيْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَيَّ سورة لقمان آيت ۱۵.

ترجمه: کوم خلک چې ما ته رجوع کوي د هغوی د لارې اتباع کوی.

د وَّ اتَّبِعْ صيغه د امر ده: کوم خلک چې الله تعالی ته رجوع کوي: نو د هغوی اتباع واجب ده.

د روح المعاني صاحب فرمايي: "واتبع سبيل من اناب الى بالتوحيد والاخلاص بالطاعة وحاصله اتبع سبيل المخلصين" (روح المعاني ۲۱/ ۷۸)

تر.. : يعنې کوم خلک چې په توحيد او اخلاص سره د توحيد د لارې تابعداري کوي. د داسې مخلصينو د لارې اتباع وکړی.

## د تقليد ثبوت د احاديثو څخه

د تقليد حکم د ډېرو احاديثو څخه ملاوېږي، د هغو نه څه ستاسو وړاندې پېش کوو.

(۱) عن ابي حذيفة رضي الله تعالى عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اقتدوا بالذين من بعدي ابي بكر وعمر" (ترمذي: ۲/ ۲۰۷، مستدرک: ۳/ ۷۵، وابن ماجه: ص ۸۰)

ترجمه: حضرت حذيفه رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې هغه وفرمايل: زما نه وروسته د دوی دواړو اقتداء کوی: يعنې د ابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه.

حضرت اسود بن يزيد رحمه الله فرمايي

(۲) "اتانا معاذ بن جبل رضي الله عنه باليمن معلما واميرا فسألناه عن رجل توفي وترك ابنته ولخته فاعطى الابنة النصف والاخت النصف" (بخاري ۲ ۹۹۷)

ترجمه: حضرت اسود بن يزيد رحمه الله فرمايي چې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه مونږ له يمن ته د امير يا حاکم په طور راغی؛ نو مونږ د هغوی نه پوښتنه وکړه. چې يو سړی مړ شوی، د هغه يوه لور او يوه خور پاتې ده، د هغه ميراث به څنګه تقسيمېږي؟ نو حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه د مړي ترکه نيمه يې لور او نيمه د هغه خور ته ورکړه

(۳) فعليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ واياكم ومحدثات الامور فإن كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة" (مسند احمد: ۴ ۲۷، ترمذي ۲ ۱۷۶، مسند دارمي ۲۶، مستدرک للحاکم: ۱/۹۵)

ترجمه: زما سنت او د خلفاء راشدينو سنت کوم چې هدايت يافته دي په کلکه ونيسی. په خپلو جامو سره يې کلک ونيسی، او په دين کې د نوي نوي خبرو څخه ځان وساتی؛ ځکه چې هره نوې خبره بدعت دی او بدعت ګمراهي ده.

## دتقليد ثبوت د اسلافو د اقوالو نه

علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله فرمايي:

"يجب على العامي وغيره ممن لم يبلغ مرتبة الاجتهاد التزام مذهب معين من مذاهب المجتهدين" (شرح جمع الجوامع بحواله خير التنقيد ۱۷۵)

ترجمه: عام خلک او هغه کسان چې د اجتهاد درجې ته نه وي رسېدلي. په هغوی د کوم خاص (امام) تقليد واجب دی.

حضرت بحر العلوم مولانا عبد العلي فرنګي محلي رحمه الله فرمايي

"وعليه بنى ابن الصلاح منع التقليد غير الائمة الاربعة" (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ۲۶۹)

ترجمه: پدې بنياد ابن الصلاح رحمه الله د څلورو امامانو نه علاوه د نورو د تقليد ممانعت رد کړی.

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمايي:

حضرت اسود بن یزید رحمه الله فرمایي:

(۲) "اتانا معاذ بن جبل رضی الله عنه بالیمن معلما او امیرا فسئلناه عن رجل توفی وترك ابنته واخته فاعطی الابنة النصف والاخت النصف" (بخاري ۲/ ۹۹۷)

ترجمه: حضرت اسود بن یزید رحمه الله فرمایي چې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه مونږ له یمن ته د امیر یا حاکم په طور راغی؛ نو مونږ د هغوی نه پوښتنه وکړه، چې یو سړی مړ شوی، د هغه یوه لور او یوه خور پاتې ده، د هغه میراث به څنګه تقسیمیږي؟ نو حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه د مړي ترکه نیمه یې لور او نیمه د هغه خور ته ورکړه

(۳) فعلیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین تمسکوا بها وعضوا علیها بالنواجذ وایاکم ومحدثات الامور فان کل محدثة بدعة وکل بدعة ضلالة" (مسند احمد: ۴/ ۲۷، ترمذي: ۲/ ۱۷۶، مسند دارمي: ۲۶، مستدرک للحاکم: ۱/ ۹۵)

ترجمه: زما سنت او د خلفاء راشدینو سنت کوم چې هدایت یافته دي په کلکه ونیسی، په خپلو جامو سره یې کلک ونیسی؛ او په دین کې د نوي نوي خبرو څخه ځان وساتی؛ ځکه چې هره نوې خبره بدعت دی او بدعت ګمراهي ده.

## دتقلید ثبوت د اسلافو د اقوالو نه

علامه جلال الدین سیوطی رحمه الله فرمایي:

"یجب علی العامی وغیره ممن لم یبلغ مرتبة الاجتهاد التزام مذهب معین من مذاهب المجتهدین" (شرح جمع الجوامع بحواله خیر التنقید: ۱۷۵)

ترجمه: عام خلک او هغه کسان چې د اجتهاد درجې ته نه وي رسېدلي، په هغوی د کوم خاص (امام) تقلید واجب دی.

حضرت بحر العلوم مولانا عبد العلي فرنګي محلي رحمه الله فرمایي:

"وعلیه بنی ابن الصلاح منع التقلید غیر الائمة الاربعة" (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت: ۴۶۹)

ترجمه: پدې بنیاد ابن الصلاح رحمه الله د څلورو امامانو نه علاوه د نورو د تقلید ممانعت رد کړی.

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمایي:

"لن عقيدة المذاهب الاربعة المدونة المحررة قد اجتمعت الامة ومن يعتد به منها على جواز تقليد ها الى يومنا هذا وفي ذالك من المصالح ما لا يخفى لا سيما في هذه الايام التى قصرت فيها الهمم جدا واشربت النفوس الهوى واعجب كل ذى رأى برايه" (حجة الله البالغ ۱/ ۱۵۴)

ترجمه: پدیکې شک نشته چې ددې څلورو مذاهبو په تقلید کولو د ټول امت اجماع ده، دچا په خبره چې اعتماد کېدی شي، څکه چې دامدون شوي او لیکلي شکل کې موجود دي، پدیکې چې کوم مصلحتونه دي هغه هم پټ نه دي. خا ص کر پدې زمانه کې چې همتونه ډیر کمزوري شوي او هریو درائې صاحب په خپله رایه باندې مغروردی

## د تقليد شخصي ثبوت

څنګه چې د اصحابو ﷺ او تابعينو ﷺ په زمانه کې مطلقا د تقليد ثبوت ملاويږي. چې فقهاؤ به د اصحابو ﷺ نه مسئلې زده کولې. دغه ډول ددې ثبوت هم ملاويږي. چې د يو خاص کس تقليد به هم کېده. چې هغې ته په اصطلاح کې تقليد شخصي وايي.

(۱)ان اهل المدينة سالو ابن عباس رضى الله تعالى عنهما عن امرأة طافت ثم حاضت قال لهم تنفر قالو لاناخذ بقولك وندع قول زيد بن ثابت رضى الله تعالى عنه" (بخارى: ۱/ ۲۳۷)

ترجمه: دمديني خلکو يو ځل د حضرت ابن عباس ﷺ نه د يوې ښځې په باره کې پوښتنه وکړه، چې هغې طواف وکړ، بيا ورته حيض پيښ شو. حضرت ابن عباس ﷺ وفرمايل چې لاړه به شي: نو هغوی وويل چې مونږ ستاسو په قول عمل نه کوو او د زيد بن ثابت ﷺ قول قبلوو.

د حضرت ابن عباس ﷺ په شان د صحابي فتوی يې قبوله نه کړه، د زيد بن ثابت ﷺ قول يې قبول کړ: نو ددې څخه دا معلومه شوه. چې د مدينې منورې خلکو به د حضرت زيد بن ثابت ﷺ شخصي تقليد کولو.

(۲) څه خلکو د حضرت ابو موسی اشعري ﷺ څخه د يوې مسئلې معلومول غوښتل، هغوی جواب ورکړ: خو دا يې هم ورسره وفرمايل چې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه هم پوښتنه وکړی، چې د ابن مسعود ﷺ نه يې پوښتنه وکړه: نو هغوی

د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه د فتوې خلاف فتوی ورکړه. پدې باندې حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه وفرمایل

"لاتسئلوني مادام هذا الحبر فیکم" (صحیح بخاري ۲، ۲۹۷، ابوداؤد، ترمذي)

ترجمه: ترکومه چې دا لوی عالم په تاسو کې موجود وي؛ نو زما نه د مسئلې پوښتنې مه کوی.

## صرف د څلورو امامانو د تقلید وجه

کله چې دا څلور مذهبونه یعنې حنفي، مالکي، شافعي او حنبلي او د هغوی کتابونه جوړ شو، د هغوی مذهبونه د عالم په اطرافو کې خپاره شو؛ نو اوس د ټولو رجوع همدې مذهبونو ته شوې.

(۱) لکه حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمایي

"لما اندرست المذاهب الحقة الا هذه کان اتباعها اتباعا للسواد الاعظم" (عقد الجید ص ۳۲)

ترجمه: ددې څلورو نه علاوه نور مذهبونه ختم شو؛ نو اوس هم ددې اتباع د سواد اعظم اتباع ده.

(۲) په یو بل ځای کې حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمایي

"فالمذهب للمجتهدين سرٌّ الهمه الله تعالى العلماء وجمعهم عليه من حيث يشعرون او لا يشعرون" (الانصاف)

**ترجمه**: دائمه اربعه مذهبونه اختیارول یو راز دی. چې الله تعالی د امت د عالمانو په زړونو کې اچولی. پدې یې راجمع کړل هغوی که پدې راز پوه دي او کنه.

(۳) شیخ احمد چې په ملاجیون رحمه الله باندې مشهور دی فرمایي

"قد وقع الاجماع على ان الاتباع انما يجوز للاربعة وكذا لا يجوز الاتباع لمن حدث مجتهدا مخالفا لهم" (تفسیرات احمدیه: ص ۳۴۶)

**ترجمه**: پدې باندې اجماع ده. چې اتباع هم دائمه اربعه وو جائز ده، ددې حضراتو نه وروسته د دوی د مسلک نه د مخالف مجتهد تقلید صحیح نه دی.

لکه مطلب دا چې، پدې څلورو امامانو باندې اجماع شوې ده.

(٤) علامه ابن نجيم مصری رحمه الله فرمايي

"خالف الائمة الاربعة فهو مخالف للاجماع" (الاشباه والنظائر ص ١٣١)

ترجمه: "دچا يوه فيصله هم چې دائمه اربعه وو خلاف وي؛ هغه داجماع خلاف دی"

(٥) قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايي

"فان اهل السنة والجماعة قدافترق بعدالقرن الثلثة اوالاربعة على اربعة المذاهب ولم يبق فى فروع المسائل سوى هذه المذاهب الاربعة فقد انعقدالاجماع المركب على بطلان قول من يخالف كلهم وقد قال الله تعالى ويتبع غير سبيل المؤمنين نوله ماتولى ونصله جهنم" (تفسير مظهري ٢ ٦٤)

**ترجمه:** د دریمې يا څلورمې صدی نه وروسته په فروعي مسئلوکې د اهل سنت والجماعت څلور مذهبونه پاتې شو. کوم پنځم مذهب باقي نه شو. مطلب دا چې پدې اجماع شوه. هغه مسئله چې ددې څلورو مذهبو څخه خلاف وي هغه به باطل وي. د الله تعالى فرمان دی. کوم سړی چې د مؤمنانو يعنې د اهل سنت والجماعت لاره پريږدي. په بله لاره لاړ شي؛ نو هغه چې هر څه کوي. کوي دي. مونږ به هغه جهنم کې داخل کړو.

(٦) علامه محي الدين نووي رحمه الله شارح مسلم فرمايي

"اماالاجتهاد المطلق فقالواختم بالأئمة الاربعة حتى اوجبوا تقليد واحد من هؤلاء على امة ونقل امام الحرمين الاجماع عليه" (روضة الطالبين بحواله نور الهداية ص ١٠)

**ترجمه:** د مطلق اجتهاد په اړه علماء فرمايي: اجتهاد په ائمه اربعه وو ختم شوی. تر دې چې تولو محققينو عالمانو پدې امامانو کې د يو امام تقليد په امت باندې واجب کړی او امام الحرمين رحمه الله دائمه اربعه وو د تقليد په واجب کېدو اجماع نقل کړې ده.

(٧) علامه سيد احمد طحطاوي رحمه الله صاحب فرمايي

فعليكم يا معشر المؤمنين باتباع الفرقة الناجية المسماة باهل السنة والجماعة فان نصرة الله فى موافقتهم وخذلانه وسخطه ومقته فى مخالفتهم وهذه الطائفة الناجية قد اجتمعت اليوم فى المذاهب الاربعة وهم الحنفيون والمالكيون والشافعيون والحنبليون ومن كان خارجا من هذه المذاهب الاربعة فى هذا الزمان فهو من اهل البدعة والنار" (طحطاوى على الدر المختار ٤/١٥٣)

**ترجمه:** اې د مسلمانانو ټولیه! په تاسو باندې چې کومه د نجات فرقه داهل سنت والجماعت په نوم یادیږي. پیروي کول واجب دي. ځکه چې د الله تعالی مرسته داهل سنت والجماعت سره په موافقت کولو کې ده. د اهل سنت والجماعت په مخالفت کولو کې خپل ځان د الله تعالی د غضب او ناراضګی جوګه ګرځول دي. دا د خلاصی موندو والا ټولې (یعنې اهل سنت والجماعت) نن جمع کړی شوي دي. په څلورو واړو مذهبونو حنفي، مالکي. شافعي او حنبلي دي او کوم سړی چې پدې زمانه کې ددې څلورو مذهبونو نه خارج وي هغه د اهل بدعت او د النار (اور) والا څخه دي.

## د تقلید پرېښودو نقصانات

که تقلید پرېښودل شي: نو ډېر نقصانونه را پیداکیږي. چې په هغې کې ځینې دا لاندې دي

(۱) د تقلید پرېښودو سره اتحاد او اتفاق د امت ختم شي.

(۲) د تقلید پرېښودل دبې دینی او الحاد لپاره سبب جوړیږي.

(۳) د تقلید پرېښودو سره باطلې فرقې پیداکیږي. مثلاً د نیچریت فرقه چې بنیاد اېښودونکی یې سر سید احمد خان دی، په اول کې دی هم غیر مقلد وو. هم دارنګه د حدیثو څخه انکارکونکې فرقه چې د هغې بنیاد اېښودونکی عبدالله چکړالوي دی. دا هم یو غیر مقلد وو.

(۴) د مرزایت فتنه ددې وجې هم غیر مقلد کېدل وو. ځکه چې په اول کې مرزا غلام احمد قادیانی غیر مقلد وو

(۵) دتقلید پرېښودو سره د اجماع مخالفت هم په وجود کې راځي مثلاً د تراویحو رکعتونه او په یو مجلس کې درې طلاقونه .دا اجماعي مسئلې دوی نه مني

(۶) د تقلید په پرېښودو د صحابه کرامو رضي الله عنهم او ائمه عظامو رحمهم الله وغیره څخه اعتماد له لاسه پورته شي.

(۷) د تقلید په پرېښودو سره سړی د حدیثو نه هم رو رو باغي شي

د تقلید په اړه د نور تحقیق لپاره ددې کتابونو مطالعه کول هم زیاته فایده لري.

نظام الاسلام ..... د حضرت علامه سيد احمد شهيد رحمه الله خليفه جناب محمد وجيه كلكتوي صدر مدرس مدرسه عاليه كلكته.

تقليد شخصي.....مولانا مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله.

تقليد ائمه او مقام امام ابو حنيفه رحمه الله.....مولانا محمد اسماعيل سنبهلي صاحب

الكلام المفيد في اثبات التقليد.....شيخ الحديث سرفراز خان صفدر

تقليد كي شرعى حيثيت.....شيخ الاسلام مولانا مفتي محمد تقي صاحب.

تقليد ائمه كا مسئله..... شيخ الاسلام مولانا مفتي محمد تقي صاحب

تحقيق مسئله تقليد.....مناظر اسلام مولانا محمد امين اوكاړوي رحمه الله

خير التنقيد في سير التقليد.....مولانا خير محمد جالندهري رحمه الله

اجتهاد اور تقليد.....قاري محمد طيب صاحب رحمه الله

السهم الحديد في نحر العنيد بجواب نتائج التقليد....جناب مولانا سيد امين الحق صاحب

الكلام الفريد في التزام التقليد.....مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله

تنقيح التنقيد.....مولانا مرتضى حسن چاند پوري رحمه الله

خير البراهين في رد غير مقلدين.....مولانا خير محمد جالندهري رحمه الله

رساله تقليد و اجتهاد.....مولانا محمد ادريس كاندهلوي رحمه الله

ترک تقليد كې بهيانک نتائج.....مولانا بشير احمد قادري صاحب

تنبيه الضالين و هداية الصالحين، د مسئله تقليد په اثبات باندې د خليفه هند او حرمينو شريفينو د عالمانو د فتوو مجموعه.....ترتيب كونكى مولانا عنايت علي دهلوي

تنوير الحق.....نواب قطب الدين محدث دهلوي

توقير الحق..... نواب قطب الدين محدث دهلوي

تحفة العرب والعجم..... نواب قطب الدين محدث دهلوي

مدار الحق بجواب معيار الحق.....مولانا محمد شاه پنجابي

انتصار الحق في اكساد واباطيل معيار الحق...مولانا ارشاد حسين محدث رامپوري

صاحب تنقيد في بيان التقليد.....مولانا سيد بدرالدين خان دهلوي بن مولانا رشيد الدين خان دهلوي

سبیل الرشاد... مولانا رشید احمد گنگوهي رحمه الله

ادله کامله شیخ الهند مولانا محمود الحسن دیوبندي رحمه الله دا رساله د مولانا محمد حسین بټالوي غیر مقلد دلسو سوالونو په جوابونو په اړه لیکل شوې ده

ایضاح الادله شیخ الهند رحمه الله دا د مصباح الادله جواب دی (مصباح الادله کوم چې د ادله کامله په جواب کې لیکل شوی دی)

اوشحة الجید في اثبات التقلید . مولاناظهیراحسن شوق نیموي رحمه الله (صاحب د آثار السنن)

فتح المبین فی کشف مکائد غیر المقلدین... مولانامنصورعلي خان مراد آبادي (د مولانا محمد قاسم نانوتويؒ شاگرد) دا د الظفر المبین في مغالطات المقلدین جواب دی، ډېر ښه کتاب دی. د میر محمد کتب خانې آرام باغ کراچی څخه چاپ شوی

نصرالمقلدین..... مولانا حافظ احمد بټالوي. دا هم د الظفرالمبین جواب دی. پدیکې یې د تقلید په مسئله باندې په تفصیل سره رڼا اچولې ده. د تقلید په تردید کې چې کومه خبره هم د الظفرالمبین صاحب کړې ده. هغه خبره نقل کوي او تفصیل سره جواب ورکوي.

الاقتصاد في بحث التقلید والاجتهاد....حکیم الامت مجدد دین و ملت. مولانا شاه اشرف علي تهانويؒ.

حفظ الرحمن لمذهب النعمان.....مجاهد ملت حضرت مولانا حفظ الرحمن سیوهاروي صاحبؒ

## دویمه عقیده: د اجماع امت انکار

**جواب:** ددې په خلاف د جمهورو عالمانو په نزد د ادله اربعه په حجت کېدو هم اجماع ده. ددې منل او عمل پرې کول ضرروري دي، ددې اجماع انکار خوارج او اکثر اهل روافض کوي، ددېنه علاوه ټول امت دا اجماع حجت مني

## د اجماع تعریف

"اتفاق المجتهدین الصالحین من امة محمد ﷺ فی عصر علی امرٍ مّنَ الامورِ" (توضیح و تلویح ص ۵۱۶)

"په یوه زمانه کې د نبي کریم ﷺ د امت د صالحو مجتهدینو په یو خاصه واقعه او امر باندې اتفاق کولو ته اجماع ویل کیږي"

# داجماع ثبوت د قرآن د آيتونو څخه

(۱) وَ مَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَ يَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَ نُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ؕ وَ سَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾ (سورة نساء آيت ۱۱۵)

**ترجمه**: كوم يو هم چې د رسول الله ﷺ مخالفت وكړي. پداسې حال كې چې دوی ته سيده لار ښكاره شوې وي او دی په بې سمي لار تګ كوي ؛ نو مونږ به حواله كړو دی هم هغه طرف ته كوم چې ده اختيار كړې ده. وبه يې غورځوو دې جهنم ته او هغه ډېر خراب ځای دی.

په پورتني آيت كې الله تعالى په سبيل المؤمنين باندې اتباع كول واجب ګرځولي دي،هم دا سبيل المؤمنين د اجماع نوم دی.

(۲) وَ اعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّ لَا تَفَرَّقُوْا (سورة آل عمران آيت ۱۰۳)

**ترجمه**: دالله رسی په جمع سره په كلكه ونيسی! او په خپلو كې بې اتفاقي مه كوی.

په پورتني آيت كې الله تعالى د تفرق او انتشار نه منع كړې ده، انتشار به راشي. د اجماع په پرېښودو سره.

(۳) اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ (سورة نساء آيت ۵۹)

**ترجمه**: د الله تعالى اطاعت وكړی، د رسول ﷺ او د امر د څښتنانو اطاعت وكړی.

په پورتني آيت كې داولی الامر نه مراد د امت مجتهدين دي. كه چيرې مجتهدين په يو حكم اتفاق وكړي: نو د هغوی اطاعت كول به هم واجب او ضروري وي

(۴) وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ هَدٰىهُمْ (سورة توبة آيت ۱۱۵)

**ترجمه**: او الله تعالى يو قوم هم د هدايت نه وروسته نه ګمراه كوي.

دې پورتني آيت څخه معلومه شوه چې د علماؤ او مجتهدينو په زړه كې الله تعالى د حق نه خلاف خبره نه اچوي. كوم علم چې هم د هغوی په زړونو كې اچول كيږي، په هغوی د عالمانو او مجتهدينو اتفاق وي: نو هغه به هم په حقه وي. ددې وجې به په هغې عمل واجب وي. (مفهوم توضيح و تلويح)

# د اجماع ثبوت د نبوي احاديثو څخه

(۱) "لم يكن الله ليجمع امتي على الضلالة" (مسند احمد ۶/ ۱۷۸، دارمي ۱/ ۲۵، ابن ماجه: ۳۸۳، ترمذي ۲/ ۲۹)

**ترجمه:** "الله تعالى به زما امت په ضلالت باندې نه يوځاى كوي"

(۲) "ان امتي لاتجتمع على الضلالة" (ترمذي: ۲/ ۲۹)

**ترجمه:** "زما امت په ضلالت باندې اتفاق نه شي كولى"

(۳) "يدالله على الجماعة ومن شذ شذ في النار" (مسند احمد ۱/ ۴۲۶، ابو داؤد ص ۳۳)

**ترجمه:** "جماعت باندې د الله تعالى لاس وي، كوم چې د جماعت نه جدا شي، هغه به جهنم كې داخل شي"

(۴) "مارآه المؤمنون حسنا فهو عندالله حسن" (احمد: ۱/۳۷۹، والطيالسي: ۲۳)

**ترجمه:** "كوم شى چې مسلمانانو ښه وګڼلو، هغه د الله تعالى په نزد هم ښه وي"

(۵) "عن معاذ بن جبل رضى الله تعالى عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الشيطان ذئب الانسان كذئب الغنم يأخذ الشاذة والقاصية والناحية واياكم والشعاب و عليكم بالجماعة والعامة والمسجد." (احمد: ۵/ ۲۳۲، والطبراني ۲/ ۱۶۴)

**ترجمه:** "د حضرت معاذ بن جبل ﷛ څخه روايت دى، هغوى د نبى كريم ﷺ څخه نقل كوي: چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: چې شيطان د انسان لپاره ديو ليوه په څېر دى، څنګه چې يواځې شي او يو طرفته شي؛ نو هغه چېلۍ لېوه خوري. تاسو د قبيلو او جمعې نه لرې كېدو څخه ځان وساتى، په تاسو باندې جماعت سره يو ځاى والى لازم دى"

(۶) "اتبعوا السواد الاعظم فانه من شذ شذ في النار" (المستدرک: ۱/ ۲۱۶)

**ترجمه:** "په تاسو باندې د لويې ډلې اتباع لازمه ده. ځكه چې كومه ډله د لويې ډلې څخه جدا شي هغه به جهنم ته داخليږي"

# د کومو خلکو اجماع غوره ده

پدیکې د عالمانو څو قوله دي:

(۱) د ځينو عالمانو په خيال اجماع صرف د صحابه وو غوره ده. (سبيل الوصول ص ۱۷۰)

(۲) دامام مالک رحمه الله وغيره په نزد د اهل مدينه د اجماع اعتبار دی. د نورو د موافقت يا مخالفت اعتبار نشته.

(۳) ځينې وايي: چې د يوې زمانې د ټولو مسلمانانو اتفاق د اجماع لپاره شرط دی. پدې اتفاق باندې د عوامو، خواصو، عالمانو او جاهلانو وغيره د ټولو متفق کېدل ضروري دي. (التقرير و التحير ۳/ ۱۰۰)

(۴) د ټولو نه ښه مذهب د جمهورو قول دی. هغه دا چې اجماع صرف د سنت متبعينو فقهاء کرامو غوره ده، د خلکو موافقت يا مخالفت پدې اجماع څه اثر نشي کولی.

## [په څو بنيادي مسئلوکې اختلاف]

## د تراويحو شل رکعته

د تراويحو په اړه د غير مقلدينو عالم مولوي وحيد الزمان ليکي:

"د رمضان په شپو کې د تراويحو د رکعتونو څه ټاکلی تعداد نشته" (نزل الابرار ۱/ ۱۲۶)

هم داډول د غير مقلدينو يو بل عالم ابوالخير نورالحسن خان ليکي:

"حاصل دا چې په مرفوع روايت کې څه شمېر نه دی راغلی" (العرف الجاري ص ۸۴)

هم دغه شان نواب صديق حسن خان ليکي:

"د تراويحو لمونځ د خپل اصل په اعتبار سره سنت دی. ځکه چې دا ثابته ده نبي کريم ﷺ دا لمونځ يو څو شپې کړی، بيا يې دا صرف په امت باندې د مشقت په وجه پرې اېښی وو، چې چيرته په عامو خلکو واجب نه شي. يا هغوی په خپله دا وجب ونه ګڼي، په صحيح مرفوع روايتونو کې ددې شمېر څه ټاکلی مقدار نه دی راغلی؛ خو د يو حديث څخه صرف دومره معلومېږي، چې تاسو ﷺ به عبادتونه د رمضان په

مياشت کې د نورو مياشتو په پرتله لږ زيات کول. مسلم شريف کې نور هم راغلي دي. چې ددې لمونځ رکعتونه به زيات وو.

**جواب**: د تراويحو شل رکعته د صحابه کرامو رضی الله عنهم د اجماع څخه ثابت دي. ځکه شل رکعته تراويحو ته بدعت ويل ګمراهي ده. ځکه چې پدې باندې د فاروقي دور نه واخله تر دولسمې صدۍ تر آخره پورې د ټولو اتفاق دی. په اسلافوکې د چا هم پديکې اختلاف نشته. شل رکعته تراويح د حضور ﷺ د زمانې نه تر ننه پورې په هره زمانه کې لوستل کيږي.

## د حضور( ﷺ ) په زمانه کې تراويح

(۱) عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما ان رسول الله صلی الله عليه وسلم کان يصلی فی رمضان عشرين رکعة والوتر" (مصنف لابن ابي شيبة ۲/ ۳۹۴. والبيهقی ۲ ۴۹۶. والطبرانی ۱۱ ۳۹۳)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمايي: چې تاسو ﷺ به شل رکعته تراويح او وتر کول.

## د حضرت ابوبکر( رضی الله عنه ) په زمانه کې تراويح

"فتوفی رسول الله صلی الله عليه وسلم والامر علی ذالك ثم کان الامر علی ذالك فی خلافة ابی بکر رضی الله تعالی عنه وصدرا من خلافة عمر رضی الله تعالی عنه" (طحطاوي ۱ ۲۶۹)

**ترجمه**: د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی: چې د حضور ﷺ تر وفاته پورې او د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کې او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خلافت د زمانې تر شروع پورې هم دا عمل وو (چې خلکو به خانته خانته شل رکعته تراويح کولې)

## د حضرت عمر فاروق ( رضی الله عنه ) د خلافت په زمانه کې

"عن يحیٰ بن سعيد انّ عمر بن الخطّاب رضی الله عنه امر رجلاً يصلی بهم عشرين رکعةً" (مصنف ابن ابی شيبة ۲/ ۳۹۳)

**ترجمه**: حضرت يحی بن سعيد انصاري روايت کوي چې حضرت عمرفاروق رضی الله عنه يو سړي ته حکم وکړ: تر څو هغه خلکو ته شل رکعته تراويح ورکړي.

هم دا رنګه د ابوداؤد شريف په يو روايت کې دي

"عن الحسن أن عمر بن الخطاب رضى الله تعالى عنه جمع الناس على أبي بن كعب رضى الله تعالى عنه فكان يصلي بهم عشرين ركعة" (ابوداؤد ۱/ ۲۰۲)

**ترجمه:** حضرت حسن رضي الله عنه څخه روايت دی چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خلک د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه په اقتداء کې جمع کړل؛ حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه به خلکو ته شل رکعته تراويح په جمع ورکول.

## د حضرت عثمان (رضي الله عنه) د خلافت په زمانه کې

"عن سائب بن يزيد رضى الله تعالى عنه قال كانوا يقومون على عهد عمر بن الخطاب رضى الله تعالى عنه في شهر رمضان لعشرين ركعة قال وكانوا يقرءون بالمئين وكانوا يتوكئون على عصيهم في عهد عثمان رضى الله تعالى عنه من شدة القيام" (السنن الكبرى ۲/ ۴۹۶)

**ترجمه:** حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه فرمايي چې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کې به په رمضان شريف کې شل رکعته تراويح لوستل کېدې. دی وايي چې په يو يو رکعت کې به سل سل آيتونه لوستل کېده. د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې به خلکو د قيام د سختوالي له امله د خپلو امساګانو څخه مرسته اخسته.

## د حضرت علي (رضي الله عنه) د خلافت په زمانه کې

"عن عبدالرحمن السلمى عن على رضى الله تعالى عنه دعا القرآء في رمضان فامر منهم رجلا يصلى عشرين ركعة وكان على رضى الله تعالى عنه يوتر بهم" (سنن الكبرى للبيهقي ۲/ ۴۹۶)

**ترجمه:** حضرت عبدالرحمن سلمی د حضرت علی رضي الله عنه نه روايت کوي چې حضرت علی رضي الله عنه په رمضان شريف کې قاريان را وبلل بيا يې يو کس ته حکم ورکړو چې هغه خلقو ته شل رکعته تراويح ور کړي او حضرت علي رضي الله عنه به په خپله وترور کول.

## شل رکعته تراويحو باندې دصحابه کراموا جماع

ملا علي قاري رحمه الله نقل کوي چې شل رکعته ته تراويحو باندې دټولوصحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع ده او هم دا حال د تابعينو هم دې نو بيا هغوي فرمائي

لجمع الصحابة على ان التراويح عشرون ركعة" (مرقاة شرح مشكوة ۳ ۱۹۴)

**ترجمه:** "دټولوصحابه کرامو رضي الله عنهم په شل رکعته تراويحو باندې اجماع ده"

او امام محمد رحمه الله فرمائي

"لان المسلمين قد اجمعوا على ذالك." (مؤطا امام محمد ص ۱۴۰)

**ترجمه:** دټولو مسلمانانو په شل رکعته ته تراويحو باندې اجماع ده"

## د ځلور وائمه کرامو رحمهم الله په شلو رکعتو تراويحو اتفاق

د امام ابو حنيفه رحمه الله د مذهب فقهاؤ د ټولو کتابونو نه مستند کتاب شامي کې دي

"وَهِيَ عشرونَ ركعةً وهُوَ قولُ الجمهورِ وعليهِ عملُ الناسِ شرقاً وغرباً." (شامي ۱ /۴۷۴)

**ترجمه:** تراويح هم شل رکعته دي، دا د جمهورو عالمانو وينا ده. هم دا ډول د مشرق او مغرب د ټولو خلکو پدې عمل دی"

## د امام شافعي ( رحمه الله ) مذهب:

" وقال الشافعي رحمة الله عليه وهكذا ادركت ببلدنا بمكة يصلون عشرين ركعة ." (ترمذي ۱/ ۱۶۶)

**ترجمه:** امام شافعي رحمه الله فرمايي چې هم دا د شلو رکعتو تراويحو عمل ما په خپل ښار مکه کې وموند"

## د امام مالک ( رحمه الله ) مذهب:

"فالمشهور عن مالك ست وثلاثون والوتر بثلاث" (فتح الباري ۱ ۱۸۱)

**ترجمه:** دامام ملک رحمه الله مشهورقول د شپږ دېرشو رکعتونو تراويحواو درې رکعته د وترو دی"

## د امام احمد بن حنبل (رحمه الله) مذهب:

"والتراويح سنةٌ مؤكدةٌ وهِيَ عشرونَ ركعةً بعشرِ تسليماتٍ." (المقنع ۱ ۱۸۳)

**ترجمه:** تراویح سنت مؤکده دي او هغه شل رکعته د لسو سلامونو سره دي.

تر ننه پورې د جمهورو عالمانو په شلو رکعتونو تراویحو عمل دی. په حرمینو شریفینو کې نن هم شل رکعته لوستل کیږي.

د تراویحو په سلسله کې د نور تحقیق لپاره ددې کتابونو مطالعه زیاته فایده منده ده:

الحق الصريح في اثبات التراويح.... مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله

الراى النجيح في عدد التراويح..... مولانا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله

ركعات التراويح..... مولانا حبيب الرحمن اعظمی رحمه الله

ركعات التراويح جديد مذيل برد انوار المصابيح ۲ جلدونه.. مولانا عبد الباري قاسمي صاحب

ينابيع ترجمه رساله تراويح..... مترجم مولانا محمد سرفراز خان صاحب

تحقيق مسئله تراويح..... مولانا محمد امين اوكاړوي صاحب رحمه الله

التوضيح عن ركعات التراويح..... مولانا ابو القاسم محمد رفيق دلاوري

فتح الرحمن فی عدد قیام رمضان..... مولانا محمد حسين نيلوي صاحب

ترويحات خمسه.... مولانا مير محمد رباني صاحب

خير البيان في عدد قيام رمضان..... مولانا بشير احمد صاحب

خير المصابيح في عدد ركعات التراويح. مولانا خير محمد جالندهري رحمه الله

تنبيه الحيران على مغالطات صاحب البرهان... مولانا نور احمد چشتي صاحب

مسنون نماز تراويح..... مولانا محمد امين صفدر اوكاړوی صاحب رحمه الله

القول الفصيح فی عدد ركعات التراويح..... مولانا قاضي شمس الدين صاحب

القول الصحيح في عدد ركعات التراويح.... مولانا قاضي شمس الدين صاحب

بیس رکعات تراویح کا احادیث سې ثبوت..... جناب پیر جی سید مشتاق علي شاه ابدالي صاحب

بیس تراویح..... مولانا محمّد فیاض خان سواتي صاحب

## په یو مجلس کې درې طلاقه

**جواب:** که چیرې یو مجلس کې په یو ځای کې درې طلاقه ورکول شي: نو اوس د جمهورو فقهاؤ او ائمه اربعه وو د ټولو اجماع ده چې دا هم درې واقع کیږي. ددې نه خلاف د اهل روافض او غیرمقلدینو په نزد درې طلاقه د یو طلاق رجعي په حکم کې دی.

## په یو مجلس کې درې طلاقه واقع کیږي د احادیثو څخه ددې ثبوت

(۱) "اخبرنا سلیمانُ بنُ واقدٍ عن ابنِ وهبٍ قال اخبرنا مخرمةُ عن ابیهِ قال سمعتُ محمودَ بنَ لبیدٍ قال اخبرنا رسولُ الله عن رجلٍ طلّق امرتَه ثلثَ تطلیقاتٍ جمیعاً فقام غضبانَ ثم قال ایلعبُ بکتاب الله عزَّ وَجَلَّ وانَا بین اَظهرِکُم حتّٰی قامَ رجلٌ فقالَ یارسولَ الله اَلا اَقتُلُه" (نسائي ۱ ۳۶. وکذا مشکوة: ۲۸۴ وغیره)

**ترجمه:** محمود بن لبید څخه روایت دی. هغه فرمایي: چې حضور ﷺ ته خبر ورکول شو. چې یو سړي خپلې ښځې ته په یو ځای درې طلاقه ورکړي دي. حضور ﷺ غصه شو او پدې حالت کې دا وویل: چې ولې د الله کتاب سره لوبې کوی. پداسې حال کې چې زه ﷺ په تاسو کې موجود یم. د حضور ﷺ دا غصه چې یې ولیده: نو یو صحابي ﷺ ودرېد او عرض یې وکړ. ولې یارسول الله! دا سړی زه قتل نه کړم

او د حضرت عویمر عجلاني په واقعه کې راځي:

(۲) " فلما فرغ قال عویمرُ کذبتُ علیها یارسولَ الله ان امسکتُها فطلّقها ثلاثاً" (بخاری ۲ ۸۱. ابوداؤد: ۱/ ۳۱۲. و کذا مؤطا امام مالک ص ۲۰۶)

**ترجمه:** حضرت عویمر او د هغه بي بي څخه چې فارغ شو: نو حضرت عویمر وفرمایل: که چیرې زه اوس هم دا خپل ځان سره وساتم؛ نو ددې مطلب دا دی چې ما دروغ

وویل. بیا هغه خپلې بي بي ته درې طلاقه ورکړل.

## د حضرت عمر (رضي الله عنه) فتوی

"عن انسٍ رضی الله تعالی عنهُ قالَ: کان عمرُ اذا اُتِیَ برجلٍ قد طلّق امرتَه ثلاثاً فی مجلسٍ اَوجَعَه ضرباً وفرّقَ بینهمَا" (مصنف لابن ابی شیبة ۵/ ۱۱)

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه فرمايي. حضرت عمر رضي الله عنه ته یو داسې سړی راوستل شو. چې هغه خپلې ښځې ته په یو مجلس کې درې طلاقه ورکړي وو: نو هغه به یو خل ښه سزا ورکړه او بیا به یې د دواړو په منځ کې بېلتون راوست.

## د حضرت عثمان (رضي الله عنه) فتوی

"روی وکیعٌ عن معاویةَ بنِ یحیٰ انّه قالَ جاء رجلٌ الی عثمانَ بنِ عفانَ فقال طلقتُ امرتی فقال بانتْ منك بثلاثٍ" (سنن سعید بن منصور ۳/ ۲۵۹)

**ترجمه**: حضرت معاویه بن ابی یحي فرمايي: یو سړی د حضرت عثمان رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو. ویې ویل چې ما خپلې ښځې ته یو زر طلاقونه ورکړي دي: نو هغوی رضي الله عنه وفرمایل: بانت منك بثلاث، هغه ستا څخه په درې طلاقونو جدا شوه.

## د حضرت علي (رضي الله عنه) فتوی

"وروی وکیعٌ عن حبیبِ بنِ ابی ثابتٍ قالَ جاءَ رجلٌ الی علیّ ابنِ ابی طالبٍ رضی الله تعالی عنه فقال اِنّی طلقتُ امراتی الفاً فقال له علیٌّ بانتْ منكَ بثلاثٍ" (سنن بیهقي ۷/ ۳۳۵. زادالمعاد ۲/ ۲۵۹. مصنف لابن ابی شیبة ۵/ ۱۳. طحطاوي ۲/ ۳۰)

**ترجمه**: حضرت حبیب بن ابی ثابت روایت کوي. چې حضرت علي رضي الله عنه ته یو سړی راغلو. ویې ویل چې ما خپلې ښځې ته زر طلاقونه ورکړي دي. هغه وفرمایل چې هغه ښځه ستا څخه په درې طلاقونو جدا شوې.

## د حضرت عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) فتوی

"عن مسروقٍ عن عبدِالله انه قالَ لِمَنْ طلّق امرته مائةً بانتْ بثلاثٍ وسائرُ ذلك عدوانٌ" (مصنف عبدالرزاق ۵/ ۱۲، طحطاوي ۲/ ۳۰، سنن بيهقي ۷/ ۳۳۲، مصنف لابن ابی شیبة ۵/ ۱۲)

**ترجمه:** حضرت مسروق روایت کوي، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وفرمایل څوک چې خپلې ښځې ته سل طلاقه ورکړي: نو په درې طلاقو سره هغه جدا شوه، باقي طلاقونه زیاتي دي.

## د حضرت ابن عباس (رضي الله عنه) فتوی

حدثنا اسمعيلُ أنَا ايوبُ عن عبدِالله ابنِ كثيرٍ عنْ مجاهدٍ فقال كنتُ عندَ ابنِ عباسٍ رضى الله تعالى عنهما وجاءه رجلٌ فقالَ انّه طلّق امراتَه ثلاثاً قال سكتَ حتّى ظننتُ انّه رَادُّهَا اليهِ قالَ اَيَنْطلِقُ احدُكمْ فيركبُ الحُمُوقَةَ" (ابوداؤد ۱/ ۳۶، طحاوي ۲/ ۳۱، دارقطني ۲/ ۴۵۱، بيهقي ۷/ ۳۳۷)

**ترجمه:** حضرت مجاهد رحمه الله فرمايي چې زه حضرت ابن عباس رضي الله عنه سره ناست وم. يو سړی راغلو او هغه ويل: چې ما خپلې ښځې ته يو ځل درې طلاقه ورکړي دي. ابن عباس رضي الله عنه چپ وو، تر دې پورې چې ما ګمان وکړ، چې هغه به د بېرته رجعت کولو فيصله وکړي، بيا يې وفرمايل: خلک اول په حماقت سپاره شي، بيا وايي چې اې ابن عباس رضي الله عنه! اې ابن عباس رضي الله عنه! بېشکه الله تعالى فرمايلي کوم خلک چې د هغه نه وويرېږي، د هغه لپاره د خلاصي صورت شته. او تا د الله تعالى نه يره ونکړه. ددې له امله ستا لپاره د خلاصي کومه لار نشته. تا د خپل رب نافرماني کړې ده او ستا ښځه ستا څخه جدا ده.

## د حضرت عبدالله بن عمر (رضي الله عنه) فتوی

عن نافعٍ كان عمرُ رضى الله تعالى عنهما اذا سُئِلَ عَمَّنْ طلّق ثلاثاً قال لوطلّقتَ مرةً او مرتينِ فانّ النبى صلى الله عليه وسلمَ اَمَرَنِيْ بهذا فان طلقها ثلاثا حرمت حتى تنكح زوجا غيرَه" (بخاري ۲/ ۷۹۲ و ۸۳۰، مسلم ۱/ ۴۷۶، دارقطني ۱/ ۴۳۶)

**ترجمه**: حضرت نافع فرمايي. کله چې به حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه سوال وشو. چې سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي: نو جواب به يې ورکولو چې که يو ځل يا دوه ځله طلاق ورکړي: نو رجعت به يې کړی وو. ځکه چې حضور ﷺ پدې مسئله کې د رجعت حکم ورکړی: خو که درې طلاقه ورکول شي: نو بيا به حرامه وي. ترڅو چې بل سړي سره نکاح ونکړي.

## د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص (رضي الله عنه) فتوی

حدثنا يونس عن عطاء بن يسار رضي الله تعالى عنه انه جاء رجلٌ الى عبدالله بن عمرو فسئله عن رجل طلق امرأته ثلاثاً قبل ان يمسها قال عطاء فقلتُ له طلاقُ البكر واحدةٌ فقال عبدالله انما انت قاصٌ الواحدة تبينها والثلاث تحرمها حتى تنكح زوجاً غيره."

**ترجمه**: حضرت عطاء بن يسار څخه روايت دی. يو سړی حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ ته راغلی او هغه د هغه کس په اړه پوښتنه وکړه چې هغه د صحبت نه مخکې درې طلاقه ورکړي وي. عطاء فرمايي. چې ما عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ ته وويل چې په غير مدخوله باندې خو يو طلاق واقع کيږي. حضرت عبدالله بن عمرو وفرمايل. ته زما واعظ او فقه ګو يې. بيا يې وفرمايل چې غير مدخوله په طلاق سره بائنه ګرځي. په درې طلاقونو سره خو داسې حرامه شي. چې تر څو بل سره نکاح ونکړي نشي حلاله کيدی.

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع

هم دا رنګه د حضرت ابوهريره ﷺ. حضرت عائشه ﷺ. حضرت مغيره ﷺ. حضرت انس ﷺ او د تابعينو فتوی هم ده. همدا ډول د دوی اجماع هم ده

## د ائمه اربعه وو فتوی

دا فتوی د ائمه اربعه وو او د ټولو محدثينو ده. چې ددې ټولو په نزد درې طلاقه واقع کيږي.

د ېرې کمې مسئلې داسې دي. چې په هغې کې د څلورو واړو امامانو يعني د

امام ابو حنيفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله اتفاق شوی وي؛ خو دا مسئله داسې ده چې پديکې ځلورو واړو امامانو سره سره ټول محدثين هم متفق ښکاري.

## د سعودی عرب د اکابرو مفتيانو فيصله

د سعودي عرب د ټولو څخه لوی د فقهې مجلس چې د هغې نوم "هيئة کبارالعلماء" دی. په دغه اجلاس کې په اتفاق سره ددې خبرې فېصله شوې. چې په يو مجلس کې ورکول شوي درې طلاقه به هم درې شمارل کيږي. پدې مجلس کې چې کوم خلقک شريک وو، د هغوی نومونه دادي: شيخ عبدالعزيز بن باز. شيخ عبدالله بن محمد. شيخ محمد امين الشنقطی، شيخ سلمان بن عبيد. شيخ عبدالله قساط. شيخ محمد حرکان، شيخ ابراهيم بن محمد آل الشيخ. شيخ عبدالرزاق عفيفی. شيخ عبدالعزيز بن صالح، شيخ راشد بن جيس، شيخ صالح بن عيدان. شيخ عبدالله بن منيع وغيره.
د طلاق ثلاثه په مسئله باندې ډېرو عالمانو کتابونه ليکلي دي په هغې کې ځينې دا دي:

(۱) مکمل بحث مجلة البحوث الاسلاميه، ۱۳۹۷ھ تقريبا په ۱۵۰ صفحو باندې مشتمل دی.

(۲) عمدة الاثاث......مولانا فقير محمد جهلمي صاحب.

(۳) الاعلام المرفوعة فی حکم الطلقات المجموعة.....محدث اعظم هند مولانا حبيب الرحمن اعظمي رحمه الله

(٤) الازهار المرفوعه ......محدث اعظم هند مولانا حبيب الرحمن اعظمی رحمه الله

(۵) عمدة الاثاث .....شيخ الحديث ابو الزاهد سرفرازخان صفدر صاحب

(٦) اکٹھي تين طلاق کاشرعی حکم......مولانا محمد فقيرالله مامون کانجن

(۷) تين طلاق قرآن و سنت کی روشني ميں.......مفتی عبدالستار خيرالمدارس

(۸) تين طلاق کا ثبوت......مولاناشهاب الدين ندوي صاحب

(۹) طلاق ثلاث صحيح عقائد کی روشني ميں......مولانا حبيب الرحمن قاسمي

(۱۰) تين طلاق کا مسئله دلائل شرعيه کی روشنی ميں......مولانا مفتی سيد محمد سلمان منصور پوري قاسمي صاحب.

# امام پسې قرأت کول

**ترجمه**: قرآن او احادیثو کې په امام پسې د قراءت کولو ممانعت راغلی ، پدې مسئله کې سره ددې چې د امامانو په منځ کې هم اختلاف شته؛ خو د هغوی په خپلو کې داسې سختې نشته، کومه چې نن سبا د غیر مقلدینو سره ده. د امامانو په منځ کې اختلاف شته. دامام پسې مطلقا قرأت جائز نه دی. هغه که په جهري لمونځ کې وي او که سري وي (موطأ امام محمد ص ۹۶)

د امام مالک رحمه الله مذهب: هغوی فرمایي: د امام پسې په جهري لمونځونو کې قراءت جائز نه دی؛ خو په سري لمونځونو کې که مقتدي قراءت کول غواړي: نو کولی بې شي. (موطأ امام مالک ص۲۹، التمهید ۱/ ۳۷)

د امام شافعی رحمه الله مذهب: امام شافعی رحمه الله په کتاب الام کې فرمایي: چې یواځې او امام په هر رکعت کې سورة الفاتحه لوستی شي. دا واجب دي. (۱/ ۹۳)

د مقتدي په اړه فرمایي: که چیرې د امام قراءت نه شي اوریدی: نو مقتدي دي قراءت وکړي (کتاب الام ۱/ ۱۶۶)

د امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب: مقتدي چې د امام قراءت اوري: نو په هغه قراءت کول واجب نه دي. بلکې د امام احمد رحمه الله په نزد غوره هم نه دي. (المغني ۳۳۰، ۲۹)

دائمه اربعه وو په مذاهبو کې دا واضحه ده: چې په لمونځ کې د مقتدي قراءت کول صحیح نه دي. دا د یو امام قول هم نه دی. څوک چې فاتحه نه لولي. د هغه لمونځ نه کیږي

# په قرآن کې ممانعت:

وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿۲۰۴﴾ (اعراف آیت ۲۰۴)

**ترجمه**: او کله چې قرآن لوستل کیږي: نو هغې ته غوږ ونیسی او چوپ اوسی، ددې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي.

د مفسرینو وینا ده چې دا آیت د لمونځ په اړه نازل سوئ دی (تفسیر ابن کثیر ۳ ۶۲۳، المغني لابن قدامه ۱ ۶۰).

## دامام پسې د مقتدي قراءت کولو څخه په احادیثو کې منع راغلې:

(۱) عن ابي موسى الاشعريِ يرويهٖ جريرٌ عن سليمانَ عن التيمىِ انّ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم خَطَبَنَا فبيّنَ لنا سُنّتَنَا وعلّمَنَا صلاتَنَا فقال اذا صلّيْتُمْ فاقيمُوا صُفُوفَكُمْ ثم لِيَؤُمَّكُمْ احدُكم فاذا كبّر فكبّرُوْا واذا قَرَأَ فانصِتُوْا وَاِذَا قال غيرِ المغضُوبِ عليهمْ" (مسلم شريف باب التشهد في الصلوة ۱ ۱۷۴)

**ترجمه**: حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمایي چې د الله تعالی رسول ﷺ خطبه وړکوله. په هغې کې یې مونږ ته سنت وښودل. او د لمونځ طریقه یې وښوده. ارشاد یې وفرمایه. کله چې تاسو لمونځ کوئ: نو خپل صفونه سیده کړی. بیا دې په تاسو کې یو کس امامت وکړي. کله چې امام تکبیر ووایي: نو تاسو هم تکبیر ووایی. کله چې امام قراءت کوي: نو خاموش اوسی او کله چې هغه غیرالمغضوب علیهم ووایي: نو تاسو آمین وایی.

(۲) عن ابي هريرة رضى الله تعالى عنه قال: قال رسولُ الله صلى الله عليه وسلم انما جُعلَ الامامُ ليؤتمَّ به فاذا كبّر فكبّرُوْ واذا قَرَأَ فانْصِتُوْا واذَا قالَ غيرِ المغضوبِ عليهمْ فقولوْا آمينْ، واذا ركع فاركعُوْا واذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا اللهم ربنا لك الحمد" (ابن ماجه ص ۶۱ .باب اذا قرأ الامام انصتوا)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي حضور ﷺ وفرمایل چې امام ددې لپاره ټاکل شوی. چې د هغه اقتداء وکړی شي: نو بیا چې کله هغه تکبیر وکړي. تاسو هم تکبیر وایی. کله چې هغه قراءت کوي: نو تاسو خاموش اوسی. کله چې هغه غیرالمغضوب علیهم ووایي: نو تاسو آمین وایی. کله چې رکوع کوي: نو تاسو هم رکوع کوی او کله چې هغه سمع الله لمن حمده وایي: نو تاسو اللهم ربنا لك الحمد وایی.

(۳) حدثنا اسحٰق بنُ موسٰى الانصاريُّ نامعنٌ نامالكٌ عن ابي التميم وهب بن كيسانَ انه سمعَ جابرَ بنَ عبدِالله رضى الله تعالى عنه يقولُ من صلى ركعةً لم يقرأ فيها بِأُمِّ القرآنِ فلم يُصَلِّ الا ان يكون وراء الامام، هذا حديثٌ حسنٌ صحيحٌ" (ترمذي ۱/ ۴۲)

**ترجمه**: حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي: چا چې يو ركعت بغير د سورة فاتحه نه وكړ. هغه گويا لمونځ ونكړ. مگر هغه څوک چې هغه د امام پسې ولاړ وي. امام ترمذي وايي ددې حديث حسن صحيح دې)

## خلفاء راشدينو به هم امام پسې د قرأت څخه منع كوله

(۱) ان ابابكرٍ وعمرَ و عثمانَ كانوا ينهونَ عن القراءةِ خلفَ الامامِ "(عمدة القارى ۳ ۶۷. واعلاء السنن ۴/ ۸۵)

**ترجمه**: حضرت ابوبكر رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت عثمان رضي الله عنه به امام پسې د قراءت كولو څخه منع كوله.

(۲) "ان عمر بن الخطاب رضى الله تعالى عنه قال ليت فى فم الذى يقرأ خلف الامام حجراً" (موطٔ امام محمد ص ۹۸)

**ترجمه**: حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: كاش كوم سړى چې امام پسې قراءت كوي. د هغه په خوله كې كاڼي واچول شي.

(۳) "قال عليٌّ من قرأ مع الامام فليسَ علَى الفطرةِ". الجوهر النقي ۲/ ۱۶۹. و كذا مصنف عبدالرزاق ۱/ ۱۳۷. زجاجة المصابيح ۱/ ۲۵۱)

**ترجمه**: حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل كوم سړى چې امام پسې قراءت كوي. هغه په فطرت باندې نه دى.

## د حضرت عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) فرمان

" قال جاءَ رجلٌ الى عبدِالله فقال لابي عبدالرحمن اقرأُ خلفَ الامامِ؟ قال انصتْ للقرآن فانَّ فى الصلاة شغلا وسيكفيك ذالك الامام" (موطأ امام محمد ص ۷۸. و مصنف عبد الرزاق ص ۱۳۸)

ترجمه: د حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ په خدمت کې يو سړی حاضر شو، ويې ويل: زه د امام پسې قراءت کوم؟ هغه وفرمايل د قرآن لپاره خاموش اوسه؛ ځکه چې په لمونځ کې شغل وي او تا ته د قراءت لپاره امام کافي دی.

## د حضرت عبدالله بن عمر (﷛) فرمان

"عبدالرزاق قال اخبرنا داؤد بن قيس عن زيد بن اسلم عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما كان ينهى عن القراءة خلف الامام." (موطأ امام محمد ص ۷۶)

ترجمه: حضرت زيد بن اسلم د عبدالله بن عمر ﷜ څخه روايت کوي چې ابن عمر ﷜ به د امام پسې قرأت څخه منع کوله.

## د حضرت جابر (﷛) فرمان

"عن جابر رضى الله تعالى عنه قالَ لا يقرأُ خلفَ الامامِ ولَا ان جهَر ولا ان خافت" (زجاج مصابيح: ۱/ ۲۵۱)

ترجمه: حضرت جابر ﷜ وفرمايل: امام پسې دي قراءت نه کيږي. نه په جهري لمونځونو کې او نه په سري لمونځونو کې.

همدا رنګه ډيرو صحابه کرامو او تابعينو په امام پسې د قرأت کولو څخه په سختی سره منع کړې ده.

## د حضور (ﷺ) آخري عمل هم امام پسې د قرأت نه کولو وو

مرض الوفات کې چې کله مسجد نبوي کې حضرت ابوبکر صديق ﷜ امامت کولو، حضور ﷺ چې کله په خپل مرض کې کمی محسوس کړ؛ نو جماعت ته يې تشريف راوړ. ابوبکر صديق ﷜ چې هغه وليد؛ نو وروسته شو. حضور ﷺ امام شو او هم د هغه ځای څخه يې قراءت شروع کړ، کوم ځای چې حضرت ابوبکر صديق ﷜ پرې اينی وو. د هغه ځای څخه يې لمونځ شروع کړ. (مسند احمد: ۱/ ۲۳۲، و سنن دار قطني: ۱۵۳)

ددېنه معلومه شوه چې حضور ﷺ پدې آخري لمونځ کې سورة فاتحه هم ونه لوسته. څومره مقدار قراءت او سورة الفاتحه چې تاسو نه پاتې شوې وه هغه نبي کریم ﷺ دوباره ونه لوسته. ‹ دلیل القوی علی ترک قراءة المقتدي›

## د نور تحقیق لپاره لاندیني کتابونه وګورئ:

فتاوی ابن تیمیه...... ۲/ ۱۴۱ تر ۱۵۰.

الدلیل القوی علی ترک قراءت المقتدي......مولانا احمد علی محدث سهارنپوری رحمه الله

هدیة المعتدی فی قراءت المقتدی ......مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله

توثیق الکلام فی انصات المقتدی خلف الامام ......مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله

الدلیل الحکم......مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله

فصل الخطاب فی مسئله ام الکتاب ......مولاناعلامه سید محمد انوار شاه کشمیري رحمه الله د دارلعلوم دیوبندزوړ شیخ الحدیث

فاتحة الکلام ......مولانا ظفراحمد عثمانی صاحب رحمه الله

الدلیل المبین علی ترک القرآت للمقتدین ......مولانااحمدحسن فیض پوری صاحب

الفرقان فی قراءت ام القرآن ......مولاناناظر حسین میرتي

اظهارالحق ......مولانا عبدالعزیز سهالوی صاحب

کیفیت مناظره تحریري ...... مولانا عبدالعزیز سهالوی صاحب

احسن الکلام فی ترک القراءت خلف الامام ......شیخ الحدیث مولانامحمد سرفراز خان صفدرصاحب

اطیب الکلام ......مولانامحمد عبدالمتین خان زاهد

خاتمة الکلام ......مولانا فقیر الله مامون کانجن صاحب

تدقیق الکلام ......مولانا عبدالقدیر محدث کیمل پوری صاحب

تحقیق مسئله قرأة خلف الامام ......مولانا حبیب الرحمن کاندهلوي بن مولانا اشفاق الرحمن کاندهلوي ‹دده نظریات اول صحیح وو بیا د حدیثو منکر شو ›

تحقیق مسئله فاتحة خلف الامام .... مولانا عبد الرشید کشمیری مدرس جامعه مدنیه لاهور

قراءت خلف الامام پر تحریری مناظره ... مولانا حافظ محمد حبیب الله ډیروی صاحب

## په لمانځه کې د نامه په ځای په سینه باندې لاسونه تړل

**جواب**: په لمانځه کې د نامه نه لاندې د لاسونو تړلو ثبوت په ډېرو روایتونو کې په لمونځ کې د نوم نه لاندې د لاسونو تړلو ثبوت ملاویږي. نو بیا د پته څنګه خلاف سنت ویل کیږي؟

## د حضرت وائل بن حجر (رضي الله عنه) روایت دی.

(۱) "حدثنا وكيعٌ عن موسَى بنِ عُمَيْرٍ عنْ علقمةَ بنِ وائلِ بنِ حُجْرٍ رضى الله تعالى عنه عنْ ابيهِ قالَ رايتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم وضَع يمينَه عَلى شِمَالِهِ فِي الصَّلٰوةِ تحتَ السُّرَّةِ" (مصنف لابن ابی شیبة: ۲/ ۳۹۰)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه فرمایي: ما نبی کریم ﷺ ولید، چې هغه په لمونځ کې ښی لاس په چپ لاس باندې ایښی وو او دواړه لاسونه یې د نوم نه لاندې ایښي وو.

(۲) "حدثنا... قال ابوْهريرةَ رضى الله تعالى عنه أخذُ الْاَكُفِّ على الْاَكُفِّ فى الصَّلوة تحتَ السُّرَّة" (اعلاء السنن: ۲/ ۱۸۲)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی. هغوی فرمایي چې لاسونه دي په لاسونو ونیول شي او د نوم لاندې دي کېښودل شي.

(۳) حدثنا ابوْ معاويةَ عنْ عبدِ الرَّحمنِ بنِ اسحاقَ عنْ زيادِ بْنِ زيدِ السُّوائيِّ عنْ ابِيْ جُحَيْفَةَ عن عليٍّ رضى الله تعالى عنه قال مِنْ سُنَّةِ الصَّلوة أنْ تُوضَعَ الايدىْ تحتَ السُّرَّةِ (مصنف لابن ابی شیبة: ۱/ ۲۹۰)

**ترجمه**: حضرت علی کرم الله وجهه څخه روایت دی. فرمایي چې د سنتو په لمونځونو کې دا دی چې لاسونه دي په لاسونو باندې د نوم نه لاندې کېښودل شي.

## د حضرت انس بن مالک (رضي الله عنه) فتوی

(۴) "عن انس رضی الله تعالی عنه قال ثلث مّن اخلاق النّبوّة تعجیل الافطار وتاخیر السّحور و وضع الید الیمنی علی الیسری فی الصّلوة تحت السّرّة" (معارف السنن: ۲/ ۴۴۴)

**ترجمه:** حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی: چې د نبوت په صفاتو کې درې صفتونه دي (۱) په روژه ماتې کې چالاکي کول (۲) په پېشمنې کې وروسته والی کول (۳) په لمونځ کې ښی لاس په چپ لاس باندې د نوم نه لاندې تړل۔

## د حضرت ابومجلز (رضي الله عنه) فتوی

(۵) "حدثنا یزید...قال سمعت ابا مجلز او سالته قال قلت کیف یضع قال یضع باطن کف یمینه علی ظاهر کف شماله ویجعلها اسفل من السّرّة" (مصنف لابن ابی شیبة: ۱/ ۳۹۱)

**ترجمه:** حضرت ابو مجلز رضي الله عنه نه د هغه شاګرد حجاج پوښتنه وکړه چې په لمونځ کې لاسونه څنګه وتړم؟ نو هغه وفرمایل: چې د ښي لاس دننه برخه د چپ لاس په بهرنی برخه باندې د نوم د لاندې تړه۔

## د حضرت ابراهیم نخعي (رحمه الله) فتوی

(۶) "حدثنا وکیع ابن تبیع عن ابراهیم قال یضع یمینه علی شماله فی الصّلوة تحت السّرّة" (مصنف ابن ابی شیبة: ۱/ ۳۹۰، ۳۹۱ .و زجاجة المصابیح: ۱/ ۲۳۳)

**ترجمه:** حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي: چې لمونځ کې دي ښی لاس په چپ لاس باندې د نوم د لاندې کېښودل شي۔

**یادونه:** دنوم دلاندې دلاسونوتړلو په اړه دا لاندیني کتابونه کتل زیات فایده مند دي:

الدرة الغرة في وضع الیدین تحت السرة .....مولانا محمد ظهیر احسن شوق نیموی رحمه الله

نماز میں هات نیچے باندهنا.....مولانا محمد امین صفدري اوکاړوي رحمه الله

نماز میں ناف کے نیچے هاته باندهنے کاثبوت.....مولاناحاجي فیاض خان سواتي صاحب.

# په لمونځ کې رفع اليدين کول

**جواب**: د لمونځ په شروع کې د تکبير تحريمه پر مهال رفع اليدين (دواړه لاسونه پورته کول) په اتفاق سره سنت دي، رکوع ته د تلو او د رکوع نه د پاڅېدو پر مهال رفع اليدين د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد سنت نه دي.
لکه څنګه چې د ډېرو روايتونو څخه معلومېږي.
تکبير تحريمه نه علاوه رکوع ته د تلو او درکوع څخه د ولاړې پر مهال رفع اليدين د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد سنت نه دي، که چيرې څوک رفع اليدين کوي: نو جائز نه دي (شامي: ۱/ ۳۷۴)
د امام مالک رحمه الله مذهب: د امام مالک رحمه الله په نزد هم رفع اليدين سنت نه دي. لکه څنګه چې په شرح صغير کې دي:
وندب رفع اليدين مع الامام اى عنده لا عند ركوع ولا رفع منه ولا عند قيام من اثنتين "(د تکبير تحريمه په وخت کې رفع اليدين مستحب دی، رکوع ته د تلو او د رکوع څخه د ولاړې پر مهال او د دويم رکعت نه وروسته دريم رکعت لپاره دپاڅېدو په وخت مستحب نه دي (بلغة السالک للصاوي مع الشرح الصغير ۱ /۱۱۸وکذا في کتاب الفقه علي المذهب الاربعة ۱/ ۲۵۰)
د امام شافعي رحمه الله مذهب: رفع اليدين شته. لکه څنګه چې علامه نووي رحمه الله فرمايي:
"واما رفعهما في تكبير الركوع وفي الرفع منه فمذهبنا انه سنة فيهما"(المجموع ۳/ ۳۹۹.وکذا في کتاب الام ۱/ ۱۲۶)
"پاتې شو رفع اليدين د رکوع د تکبير او د رکوع نه د سر پورته کولو پر مهال: نو زمونږ مذهب دا دی، چې په دواړو ځايونو کې سنت دي"
د امام احمد رحمه الله مذهب: دده مذهب د امام شافعي رحمه الله په څېر دی. چې رفع اليدين شته، لکه څنګه چې په کتاب الفقه على المذاهب الاربعة کې دي:" الحنابلة قالوا يسن للرجل والمرأة رفع اليدين فهي حذو المنكبين عند تكبيرة الاحرام والركوع والرفع منه " حنابله وايي: چې د سړي په څېر ښځې ته هم دواړه لاسونه تر اوږو پورې پورته کول سنت

دي، د تکبیر تحریمه په وخت رکوع ته د تلو په وخت او د رکوع نه د ولاړېدو پر مهال. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ۱/ ۲۵۰)

حقیقت دا دی چې رفع الیدین او ترک رفع الیدین دواړه روایتونه شتون لري. په احادیثو کې د ترک رفع الیدین څو روایتونه.

(۱) "قال رایت رسول الله صلی الله علیه وسلم رفع یدیه حتی یحاذی بهما، وقال بعضهم حذو منکبیه واذا اراد ان یَّرکعَ وَ بعدَ مَا یرفعُ راسَه من الرُّکوعِ لایرفَعُهمَا وَ قالَ بعضُهم ولایرفعُ بَیْنَ السَّجْدَتَیْنِ والمعنَی واحِدٌ" (صحیح ابو عوانه ۲/ ۹۰)

**ترجمه**: حضرت سالم د خپل پلار ابن عمر ﷺ څخه روایت کوي. فرمايي چې ما نبي کریم ﷺ ولید، کله چې به نبي کریم ﷺ لمونځ شروع کړ: نو دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول. کله چې به مو د رکوع اراده کوله او رکوع څخه به پورته کېدی؛ نو لاسونه به مو نه پورته کول او د سجدو په منځ کې به مو هم لاسونه نه پورته کول.

(۲) علقمة قال: قال عبدُالله بنُ مسعودٍ رضیَ الله تعالی عنهُ اَلَا اُصَلِّیْ بِکُمْ صلوةَ رسولِ الله صلی الله علیه وسلم فصَلّٰی فلمْ یرفعْ یدیهِ اِلاّ فِیْ اَوّلِ مَرَّةٍ" (ترمذی ۱/ ۳۵، ابوداؤد ۱/ ۱۰۹، نسائي ۱/ ۱۶۱)

**ترجمه**: حضرت علقمه فرمايي، چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ وفرمایل چې تاسو ته د حضور ﷺ لمونځ وکړم؟ بیا هغه لمونځ وکړ: نو هغه د اول ځل نه علاوه رفع الیدین ونه کړه.

(۳) "عن تمیمِ بنِ طرفةَ عن جابرِ بنِ سمرةَ رضی الله تعالی عنه قالَ: خرجَ علینَا رسولُ الله صلی الله علیه وسلَّمَ فقال مَالِیْ اراکم رافعیْ ایدیکُمْ کانها اذنابُ خیلٍ شمسٍ اُسْکُنُوْا فِی الصَّلٰوةِ"، مسلم ۱/ ۱۸۱، وابوداؤد ۱/ ۱۴۳)

**ترجمه**: حضرت جابر بن سمرة ﷺ څخه روایت دی. حضور ﷺ زمونږ د کور خواته تشریف راوړ؛ نو وې فرمایل: څه خبره ده؟ چې تاسو په رفع الیدین ګورم، لکه د مستو اسونو لکۍ چې وي. په لمونځ کې سکون اختیار کړی.

(۴) "عن البراء بن عازب رضی الله تعالی عنه أنّ رسول الله صلی الله علیه وسلم کان اذا افتتح الصلوة رفع یدیه الی قریب مّن اذنیه ثمّ لایعودُ وفی روایةٍ مرةً واحدةً وفی روایةٍ ثم لم یرفعهما حتّٰی یفرغَ" (ابوداؤد ۱/ ۱۰۹، مصنف ابن ابی شیبة ۱/ ۲۳۶، طحاوی ۱/ ۱۱۰)

**ترجمه**: حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دى حضور ﷺ به چې كله لمونځ شروع كړ؛ نو د غوږنو ته نژدې به يې لاسونه پورته كول. ددېنه وروسته به مو نه پورته كول. په يو روايت كې دي چې بيا به يې لمونځ نه تر فارغېدو پورې رفع اليدين نه كول.

(۵) عن عباد بن زبیر رضی الله تعالی عنه انّ رسول الله صلی الله علیه وسلم کان اذا افتتح الصلوة رفع یدیه فی اول الصلوة ثمّ لم یرفعهما فی شیٔ حتّٰی یفرغَ" (اخرجه البيهقي في الخلافيات)

**ترجمه**: حضرت عباده بن زبير رضي الله عنه څخه روايت دى چې حضور ﷺ به د لمونځ په شروع كې رفع اليدين كول، بيا به يې د لمونځ نه تر فارغېدو پورې په يو ځاى كې هم رفع اليدين نه كول.

## حضرت ابوبكر، حضرت عمر او حضرت علي (رضي الله عنهم) به رفع اليدين نه كول

(۶) عن محمد بن جابر عن حماد بن ابی سلیمان عن ابراهیم عن علقمة عن عبدالله رضی الله تعالی عنه قال صلیتُ مع رسول الله صلی الله علیه وسلم وابی بکر وعمر فلم یرفعوا ایدیهم الا عند افتتاح الصلوة" (مجمع الزوائد ۱/ ۱۰۱، دارقطني ۱/ ۳۹۹، سنن بيهقي ۲/ ۷۹)

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى. چې ما نبي كريم ﷺ، حضرت ابوبكر، او حضرت عمر رضي الله عنهما سره لمونځ كړى دى. هغوي به د تكبير تحريمه نه علاوه رفع اليدين نه كول.

(۷) عن عاصم بن کلیب عن ابیه وکان من اصحاب علیّ رضی الله تعالی عنه انّ علیّ ابن ابی طالب کرم الله وجهه کان یرفعَ یدیهِ فی التکبیر الاُولیٰ التی یفتتح به الصلوة ثم لایرفعهما فی شیٔ من الصلوة" (مؤطا امام محمد: ۹۴)

**ترجمه**: حضرت عاصم بن كليب د خپل پلار څخه روايت كوي. او دى د حضرت علي رضي الله عنه د ملګرو څخه وو، حضرت علي رضي الله عنه به صرف د لمونځ په اول تكبير كې

رفع اليدين کول د د بنه وروسته به يې رفع اليدين نه کول.

## د حضرت ابوبکر بن عياش قول

" ما رأيتُ فقيهاً قطّ يفعلُه يرفعُ يديه في غيرِ التكبيرة الأُولى " (شرح معاني الآثار للطحاوي ۱ ۱۳۴)

ترجمه: ما کوم يو فقيه کله هم په رفع اليدين نه دی ليدلی. چې د تکبير تحريمه نه علاوه رفع يدين وکړي.

## د مدينې منورې د خلکو عمل هم د ترک رفع اليدين وو

امام مالک رحمه الله هم د مدينې د خلکو عمل خپل مذهب جوړوي. د امام مالک رحمه الله په مذهب کې رفع اليدين نشته، هم دا خبره ابن رشيد مالکي رحمه الله ليکلې ده

"منهم من اقتصر به على الاحرام فقط ترجيحاً لحديث عبدِالله بن مسعودٍ وحديثُ براءِ بن عازبٍ رضي الله تعالى عنه وهو مذهبُ مالكٍ لموافقة العملِ بِه" (هداية المجتهد ۱ ۱۹۳)

ترجمه: خه فقهاؤ د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او حضرت براء بن عازب رضي الله عنه روايت ته ترجيح ورکړې او رفع اليدين يې صرف د تکبير تحريمه سره خص کړې او هم دا مذهب د امام مالک رحمه الله دی. ځکه چې د هغه په موافقت کې عمل جاري وو.

## د مکې مکرمې د خلکو عمل هم د ترک رفع اليدين وو

په سنن ابی داؤد کې حضرت ميمون مکي رحمه الله څخه روايت دی. چې حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه رفع اليدين سره لمونځ وکړ: نو حضرت ميمون مکي رحمه الله ډېر حېران شو. ډېر زر د ابن عباس رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو، عرض يې وکړ. چې ابن زبير رضي الله عنه خو داسې لمونځ کوي. چې ما خو کله هم هغه پداسې لمونځ ندی ليدلی: نو ابن عباس رضي الله عنه د هغه حېرانتيا ختمه کړه. ويې فرمايل چې دا هم سنت دي. (ابوداؤد ۱/ ۱۰۹، ومسند احمد ۱/ ۲۵۵)

# د کوفې د خلکو عمل هم د ترک رفع الیدین وو

محمد بن نصر مروزي رحمه الله د کوفې د خلکو په اړه فرمايي
"كلهم لا يرفع الا فى الاحرام" ټول اهل کوفه به صرف او صرف د تکبیر تحریمه په وخت رفع الیدین کول.(الاستذکار ۴/۱۰۰)

# د رفع الیدین د پرېښودلو وجې

(۱) د رفع پرېښودل د قرآني آیت "وقوموالله قنتين" زیات مطابق دی.
(۲) حضور ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله څخه د ترک رفع الیدین عمل په تواتر سره ثابت دی.
(۳) د مکې، مدینې او کوفې د خلکو عمل هم د ترک رفع الیدین وو.
(۴) د رفع الیدین د راویت کونکو صحابه کرامو عمل هم همېشه د رفع الیدین کولو نه وو، د هغوی څخه د ترک رفع روایت هم په صحیح سند سره نقل دي او دا چې د ترک رفع الیدین د راویانو نه همېشه ترک رفع الیدین ثابت دي.
(۵) د رفع الیدین ټول روایتونه فعلي دي، د ترک رفع الیدین څه روایتونه فعلي دي. څه قولي دي، په فعلي او قولي روایتونو کې چې کله تعارض راشي؛ نو قولي روایتونو ته ترجیح ورکول کېږي.
(۶) د ترک رفع الیدین روایت کونکي زیات فقیه دي ددې وجې نه به د ترک رفع الیدین عمل مقدم وي.
(۷) د خلفاء راشدینو په زمانه کې هم د ترک رفع الیدین عمل جاري وو.
په ترک رفع الیدین باندې عالمانو ډېر کتابونه لیکلي دي، چې ځینې یې پکې دا دي:
جلاء العین اردو.......مولانا ظهیر احسن شوق نیموي صاحب رحمه الله
ضیاء العین.......مولانا ظهیر احسن شوق نیموي صاحب رحمه الله
انوارالعینین اردو.......مولانا اشفاق الرحمن کاندهلوي رحمه الله
ازالة الرین اردو.......مولانا قاضي نور محمد قلعه دیدار سنګ
نور الصباح اردو.......مولانا محمد حبیب الله ډېروي صاحب

تحقيق مسئله رفع اليدين مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر صاحب رحمہ اللہ

اسوه سرور كونين في ترک رفع اليدين مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر صاحب رحمہ اللہ

غير مقلدين او مسئله رفع اليدين مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر صاحب رحمہ اللہ

تحقيق حديث فمازالت تلك الصلوة حتى لقى الله تعالى مولانا محمد امين اوكاړوي صاحب رحمہ اللہ

پير بديع الدين شاه راشدي سې رفع اليدين پر تحريري ګفتګو مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر اوكاړوي صاحب رحمہ اللہ

الرسائل فى تحقيق المسائل كا مختصر علمي جائزه مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر اوكاړوي صاحب رحمہ اللہ

مباحث رفع اليدين... مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر اوكاړوي صاحب رحمہ اللہ

اصح القولين فى تحقيق رفع اليدين.....محمد اجمل خان

احاديث سيد الكونين في ترک رفع اليدين ......مولانا غلام على اعوان

سنت رسول الثقلين في ترک رفع اليدين ....مولانا عبد الرشيد كشميري

مسئله رفع اليدين پر انعام يافته تحريري مناظره مولانا حافظ محمد حبيب الله ډيروي

ترويح العينين في مسئلة رفع اليدين مولانا محمد احسن محدث فيض پورى صاحب

كشف الرين عربي مولانا محمد هاشم سندهى. ترجمه مولانا حافظ عزيز الرحمن صاحب (ايم.اې.ايل ايل بي)

نيل الفرقدين عربي محدث علامه انور شاه كشميري رحمہ اللہ

بسط اليدين عربي محدث علامه انور شاه كشميرى رحمہ اللہ

# په تیز آواز سره آمین ویل

**جواب:** په ډېرو روایتونو کې د امام د وَلَاالضَّالِّیْن نه وروسته آمین په رو ویل راغلي.
(مسند احمد: ۴/ ۳۱۶، و کذا فی نصب الرایة: ۱/ ۳۶۹)

(۱) "ان النبيّ صلی الله علیه وسلم قرأ غیر المغضوب علیهم ولا الضالین فقال آمین وخَفَضَ بها صوته" (رواه الحاکم و قال صحیح الاسناد و زجاجة المصابیح: ۱/ ۲۵۸)

**ترجمه:** نبی کریم ﷺ چې کله "غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین" ولوست: نو آمین یې وویل: او د آمین ویلو په وخت یې آواز مبارک په رو کړ.

(۲) "عن علقمةَ بنِ وائلٍ عن ابیه انه صلّٰی مع النبی صلی الله علیه وسلم فلما بلغ غیر المغضوب علیهم ولاالضّالّیْنَ فقال آمین وخفض بها صوتَه" (احمد: ۴/ ۱، والطیالسي: ۱۰۲۴، والحاکم: ۲/ ۲۳۲)

**ترجمه:** حضرت علقمه د خپل والد حضرت وائل رضی الله عنه نه روایت کوي: چې هغوی حضور ﷺ پسې لمونځ ولوست، کله چې هغه "غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین" ته ورسېد؛ نو هغه په رو آمین وویلو.

(۳) "صلی وعنه عن ابیه مع ان النبی صلی الله علیه وسلم فلما بلغ غیر المغضوب علیهم ولاالضالین قال آمین ولخفَی بها صوتَه"

**ترجمه:** حضرت علقمه د خپل والد حضرت وائل رضی الله عنه څخه روایت کوي چې هغه حضور ﷺ پسې لمونځ ولوست، کله چې هغه "غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین" ته ورسېد: نو هغه په رو آمین وویل.

(۴) "وعن ابي وائل رضی الله تعالی عنه قال لم یکن عمرٌ وعليٌ رضی الله تعالی عنهما یجهرَانِ ببسم الله الرحمن الرحیم ولا بِآمین" (زجاجة المصابیح: ۱/ ۲۵۹، و کذا في طحاوي ص۹۹)

**ترجمه:** حضرت ابو وائل رضی الله عنه څخه روایت دی: حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت علي رضی الله عنه به په لمونځ کې (د سورة فاتحه نه مخکې) بسم الله په جهر سره نه لوسته او (د سورة فاتحه نه وروسته) آمین به یې هم په جهر نه لوسته.

(یادونه: هم دا ډول پدې مسئله کې د عالمانو اختلاف دی او دا اختلاف صرف د افضلیت دی؛ خو نن سبا پدې مسئله ډېر بحث کیږي:

دامام ابو حنیفه رحمه الله مذهب: امام او مقتدي دواړه دي په روآمین ووایي. (شامي: ۱: ۴۹۱)

دامام مالک رحمه الله مسلک: امام او مقتدي دي په روآمین ووایي. (بلغة السالک ۱ ۱۱۹)

د امام شافعي رحمه الله مذهب: د امام شافعي رحمه الله زوړ قول خو دا وو. چې په جهري لمونځونو کې دي امام او مقتدي دواړه آمین په جهر لولي: خو نوی قول یې دا دی چې د امام لپاره آمین په جهر ویل سنت دي، مقتدیانو لپاره په پټه ویل سنت دي. فتوی د امام شافعي رحمه الله په زوړ قول ده. (شرح مهذب ۲/ ۲۶۸. معارف السنن ۲ ۲۹۷)

د امام احمد رحمه الله مذهب: د امام احمد رحمه الله په نزد هم امام او مقتدي دواړو ته په جهر آمین ویل سنت دي. (المغني لابن قدامه ۱/ ۳۶۹))

(۵) "عن ابراهیم قال: قال عمر رضی الله تعالی عنه اربعٌ یخفیهن الامام، التعوذ وبسم الله الرحمن الرحیم وآمین واللّٰهم ربنا ولك الحمد، فتخلص ان اخفاء التامین هو مذهب عمر وعلی وعبدالله وابراهیم النخعی وجمهور الصحابة والتابعین وسائر اهل الکوفة" (معارف السنن ۲/ ۴۱۳. کنز العمال ص ۲۴۹)

**ترجمه:** حضرت ابراهیم نخعي رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل امام به څلور شیان په مزه وایي: (۱) اعوذ بالله (۲) بسم الله الرحمن الرحیم (۳) آمین (۴) اللّٰهم ربنا ولك الحمد. آمین په مزه ویل دا د حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت علی رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، ابراهیم نخعی رحمه الله د جمهورو صحابه کرامو، تابعینو او ټولو اهل کوفه مذهب دی.

## په مزه د آمین ویلو د ترجیح وجه

(۱) آمین ویل دعا ده او د دعا په اړه قرآن مجید کې راځي "اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً" خپل رب په عاجزی او په رو رو رابلی.

(۲) څنګه چې اعوذ بالله په قرآن کې نه لیکل کیږي هم دا رنګه آمین هم نه لیکل

کيږي؛ نو دا دواړه د قرآن کريم حصه نه ده، هغه چې د قرآن حصه نه وي، هغه به په مزه مزه لوستل کيږي

(۳) نبی کريم ﷺ چې آمين په جهر ويلی، هغه يې د تعليم لپاره ويلی وو، لکه څنګه چې مولانا يوسف بنوري رحمه الله د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه روايت نقل کوي

"فقال آمين يمد بها صوته ماأراه الا ليعلمنا" (معارف السنن ۲/ ۴۰۶)

**ترجمه**: حضور ﷺ آمين ويلو، د آمين ويلو په وخت به يې خپل آواز راکش کړ، تر کومه پورې چې زه پوهېږم؛ نو ددې مقصد مونږ ته تعليم راکول وو۔

(۴) د خلفاء راشدينو، جمهورو صحابه کرامو او تابعينو عمل هم د آمين په مزه ويلو وو، ددې وجې څخه به هم دا افضل وي.

د آمين بالجهر د نور تحقيق لپاره دا لاندې کتابونه زيات فايده مند دي

(۱) تحقيق مسئله آمين ...... مناظر اسلام مولانا محمد امين صفدر اوکاړوي رحمه الله

(۲) الحبل المتين في اخفاء التامين ...... مولانا ظهير احسن شوق نيموي رحمه الله

(۳) البلاغ المبين في اخفاء التامين ...... مولانا محمد شاه پنجابي صاحب

(٤) اظهار التحسين في اخفاء التامين..... مولانا حافظ محمدحبيب الله ډېروي

(۵) الفوز المبين بالاخفاء بالتامين.... مولانا محمد حسن فيض پوري صاحب

## د مالوچو، وړېښمو او نايلون په جرابو مسح کول

**جواب**: د څلورو واړو فقهاؤ په نزد موزو باندې مسحه کول جائز دي. د مالوچو، وړېښمو او نايلون په موزو مسحه کول جائز نه دي. حال دا چې د غير مقلدينو په نزد مطلقا جائز ده.

د جمهورو علماؤ په نزد دا په هغه صورت کې جائز ده کله چې پديکې درې شرطونه وي.(۱) هغې ته اوبه نه ورځي (۲) بغېر د څه شي د تړلو څخه هغه په پښو کلکې پاتې کيږي، عام طور دا د نايلون جرابې چې وي، پديکې دا شرطونه نشته. د څرمنې په موزو مسح کول د احاديثو څخه ثابت دي؛ نو بيا دا چې ابن حجر رحمه الله فرمايي:

" و قد صرح جمع من الحفاظ بان المسح على الخفين متواتر وجمع بعضهم رواته فجاوزوا الثمانين منهم العشرة" (نيل الاوطار ۸۰ ۱۷۶)

**ترجمه**: د حافظانو يو لوی جماعت دا تصريح کړې، چې د مسح على الخفين حکم متواتر دی، ځينو حضراتو چې ددې روايت کونکي صحابه راجمع کړل: نو هغه د اتياؤ څخه زيات وو، چې په هغې کې عشره مبشره هم شامل وو

## د څرمنې په موزې د مسح کولو ثبوت د احاديثو څخه

(۱) "عن اسامة بن شريك رضي الله تعالى عنه قال كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم في السفر لا ننزع خفافنا ثلاثة ايام ولياليهن ولكن معه في الحضر نمسح على خفافنا يوما وليلة " (طبراني في الكبير، و ابو يعلى الموصلي في مسنده)

**ترجمه**: حضرت اسامه بن شريک څخه روايت دی چې مونږ به د حضور ﷺ سره په سفر کې شريک وو، درې ورځې او شپې به مو موزې نه وباسلې. د قيام په حالت کې به مو يود شپه او ورځ په موزو مسح کوله.

(۲) عن عايشة رضي الله تعالى عنها قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يامرنا ان يمسح المقيم يوماً وليلةً والمسافر ثلاثاً" (نسائي في الكبرى ۱۳۱، والبيهقي في الكبرى ۱۳۰۳، و ۱۳۰۵)

**ترجمه**: حضرت عايشه رضي الله عنها څخه روايت دی، هغوی فرمايي چې نبی کريم ﷺ مونږ ته حکم وکړ. چې مقيم سړی دې په موزو يوه شپه او يوه ورځ، مسافر سړی دې درې شپې او درې ورځې مسح کوي.

(۳) "عن خزيمة بن ثابت رضي الله تعالى عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم المسح على الخفين للمسافر ثلاثة ايام وللمقيم يوما وليلة" (ابوداؤد:۱۵۷، والترمذي :۹۵، وابن ماجه ۵۵۳)

**ترجمه**: حضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دی. چې حضور ﷺ وفرمايل: چې مسح په موزو د مسافر لپاره درې شپې او درې ورځې. د مقيم لپاره يوه ورځ او يوه شپه ده.

پښې وينځل دا فرض دي، د څرمنې په موزو د مسحې کولو احاديث متواتر دي. ددې

له امله د څرمني د موزې لپاره پښه وينځل پرېښودل شوه؛ خو د مالوچو په موزو د مسح کولو لپاره احاديث متواتر نشته، ددې وجې نه دا به باسل کيږي. پښه وينځل به فرض وي لکه چې امام کمال الدين ابن همام رحمه الله فرمايي

"لاشك ان المسح على الخف على خلاف القياس فلا يصلح اتفاق غيره به الا اذا كان بطريق الدلالة وهو ان يكون في معناه ومعناه الساتر لمحل الفرض الذى هو بعدد متابعة المشى فيه في السفرة وغيره"، فتح القدير شرح هدايه ۱/ ۱۰۹)

**ترجمه:** پدې خبره کې هيڅ شک نشته، چې په موزو مسح کول دا د عقل څخه خلاف مشروع دي؛ نو لهذا کوم دويم شی دي پدې باندې قياس نه کړی شي. تر دې چې هغه د دلالة النص په طور د څرمنو د موزې په حکم کې داخل شي. د موزو نه مراد داسې موزې دي، چې هغې پښه پټه کړې وي، په هغې کې د سفر پر مهال دوران کې مسلسل تلل ممکن وي.

هم دا رنګه علامه جصاص رحمه الله فرمايي:

" والاصل فيه انه قد ثبت ان مراد الآية الغسل على ما قدمنا فلو لم ترو الآثار المتواتر عن النبى صلى الله عليه وسلم في المسح على الخفين لما اجزنا المسح ولمّا لم تَرِوَ الآثارُ في جواز المسح على الجوربين في وزن ودودها في المسح على الخفين أبقينا حكمَ الغَسل على مرادِ الاية" (احكام القرآن للجصاص ۲: ۳۲۸)

**ترجمه:** په اصل کې حقيقت دا دی: چې د قرآن په آيتونو کې د پښو وينځل فرض راغلي دي، لکه څنګه چې مخکې تېر شو: نو بيا دا چې که چيرې د حضور ﷺ څخه په موزو باندې د مسحې روايت د متواترو احاديثو څخه ثابت نه وی؛ نو مونږ به کله هم په موزو باندې مسح کول جائز نه وو ګرځولي. دا چې په جورابو د مسحې کولو احاديث وزني نه دي. لکه څنګه چې په موزو د مسحې کولو احاديث روايت شوي دي، ددې وجې نه مونږ هلته د قرآن د آيتونو اصل مطلب يعنې د پښو وينځلو حکم په ځای ساتلی دی.

خلاصه داده: چې د څرمنې په موزو د ټولو عالمانو او فقهي امامانو يعنې امام ابو حنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام احمد رحمه الله او د اسلافو په نزد مسح کول جائز ده او د ټوټې په موزې که په هغې کې د څرمنې د موزې شرطونه وي؛ نو جائز به وي، کنه نو دا به ويستل کيږي او د ټولو امامانو په نزد به د پښو وينځل ضروري وي.

## لسمه عقيده: د قربانۍ څو ورځې دي؟

**جواب**: دقربانۍ د ورځو په باره کې د امت متواتر عمل او د جمهورو فقهاؤ عمل د درې ورځو دی، لکه څنګه چې په احاديثو راځي:

(۱) **مالکٌ عن نافعٍ عن عبدالله بنِ عمرَ رضی الله تعالی عنهما قال الاضحی يومان بعد يوم الاضحی** (موطأ امام مالک: ص ۱۱۸)

**ترجمه**: " امام مالک رحمه الله د حضرت نافع څخه او هغه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت کوي: چې د قربانۍ درې ورځې دي يعنې دوه ورځې د اختر نه وروسته "

(۲) **مالکٌ انه بلغه عن عليِّ بنِ ابیْ طالبٍ رضی الله تعالی عنه مثل ذلکَ**" (موطأ امام مالک: ص ۴۹۷)

**ترجمه**: " امام مالک رحمه الله فرمايي: چې حضرت علي رضي الله عنه هم د قربانۍ درې ورځې فرمايي."

هم دا ډول حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې:

(۳) "**الاضحی يومان بعد يوم النحر**" (الجوهر النقي : ۷/ ۲۹۶)

**ترجمه**: "چې د اختر نه وروسته د قربانۍ صرف دوه ورځې دي."

هم دا ډول حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې:

(۴) "**الاضحی ثلاثة ايام**" (محلي ابن حزم ۷/ ۳۷)

**ترجمه**: " د قربانۍ صرف درې ورځې دي "

حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه فرمايي چې:

(۵) "قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من ضحی منکم فلا یصبحنّ بعد ثالثةٍ ویبقی فی بیته منه شیٔ" (بخاری ۱/ ۱۳۵. مسلم ۲/ ۱۵۸)

**ترجمه:** "حضرت سلمه بن اکوع ﷜ فرمایي چې حضور ﷺ وفرمایل کوم سړی چې په تاسو کې قرباني کول غواړي؛ نو د دریمې شپې څخه وروسته چې د هغه په کور کې د قربانۍ د غوښې یو تیکه هم پاتې نه شي."

هم دا خبره مغني علامه ابن قدامه ﷫ کې ده.

(۶) "وهذا قول عمرَ وعليٍّ وابنِ عمرَ وابنِ عباسٍ رضی الله تعالی عنهم وابیْ هریرةَ رضی الله تعالی عنه وانسٍ رضی الله تعالی عنه قال احمدُ ایامُ النَّحرِ ثلاثة من غیر واحدمن اصحاب رسول الله (الی ان قال) ولنا ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن ادخار لحوم الاضاحی فوق ثلاث ولایجوز الذبح فی وقت لایجوز ادخار الاضحیة" (المغني لابن اقدامه: ۱۱/ ۱۱۴)

**ترجمه:** "هم داخبره د حضرت عمر ﷜، حضرت علي ﷜، حضرت ابن عمر ﷜، حضرت ابن عباس ﷜، حضرت ابوهریره ﷜، حضرت انس ﷜ مذهب دی. امام احمد ﷫ فرمایي: چې د قربانۍ صرف درې ورځې دي. د رسول الله ﷺ بېشماره صحابه کرامو ﷡ څخه همدا روایت نقل دی او همدا د امام مالک ﷫ او سفیان ثوري ﷫ مسلک دی."

امام احمد ﷫ فرمایي: د قربانۍ ورځې چې په هغې (ګویا) اجماع شوې ده. هغه صرف دوه ورځې دي او بس، علامه ابن قدامه فرمایي چې: زمونږ دلیل هغه حدیث دی، په کوم کې چې نبی ﷺ د درې ورځو څخه زیات د قربانۍ د غوښې د جمع کولو مخالفت کړی دی، څکه چې تر کومه پورې د قربانۍ غوښه ایښودل صحیح نه دي، تر هغه وخت قرباني کول صحیح نه دي. په څلورمه ورځ قرباني کول نه خو د حضور ﷺ او نه د یو صحابي څخه په صحیح سند سره ثابت دي.

د نور تحقیق لپاره ددې کتابونو مطالعه فایده منده ده.

دا دوه رسالې په عام طور سره ملا ویږي:

مسئله قرباني مع رساله سیف یزداني د شیخ الحدیث مولانا سرفراز صفدر صاحب

قرباني اور اهل حدیث مناظر اسلام مولانا محمد امین صفدر رحمه الله

## د غیر مقلد فرقې په اړه د مفتیا نو رایې

(۱) د امداد الاحکام فتوی

د اهل حدیثو جماعت کافر نه دی، پدیکې چې کوم خلک د څلورو مذهبونو تقلید کول شرک او مقلدینو ته مشرک یا ائمه اربعه وو ته خراب وایي. هغه فاسق دی او کوم چې داسې نه دي، صرف د تقلید پرهېزکوونکي دي.د محدثینو په مذهب د اهل ظواهرو د حدیث اتباع کول افضل ګڼي. پدیکې د نفس د اتباع څخه کار نه اخلي. هغه فاسق هم نه دی، بلکې هغوی په اهل سنت والجماعت کې شامل دي. (امداد الاحکام: ۱/ ۱۶۸)

(۲) د سابقه مفتي اعظم هند مولانا مفتی کفایت الله صاحب رحمه الله فتوی:

هو: اهل حدیث مسلمانان دي، په اهل سنت والجماعت کې داخل دي. د نور تحقیق لپاره وګوری، (کفایت المفتي: ۱/ ۳۳۳)

د غیر مقلد فرقې په اړه د زیات تحقیق لپاره د هرې مسئلې په آخر کې د کتابونو نومونه لیکل شوي. هلته یې کتلی شی.



# [بريلوي فرقه]

## د بريلوي فرقې تاريخ

د نولسمې صدۍ نه تر آخره پورې په برصغير کې هر چا ځان ته اهل سنت والجماعت حنفي ويل، د تصوف په څلورو واړو سلسلو يعنې قادري، چشتي، نقشبندي، سهروردي کې به يې بيعت کولو او په ټولو مسئلو کې د امام ابو حنيفه‌ رحمه الله مقلد او په عقايدو کې يې امام ابو الحسن اشعري او ابو منصور ماتريدي خپل مقتدا منلو، دا سلسله تقريبا د حاجي امداد الله مهاجر مکي پورې روانه وه، چا هم په برصغير کې د ديوبندي بريلوي اختلاف نوم نه وو اوريدلی، په ټولو مسلمانانو کې هم پدې نقطه نظر اتفاق او اتحاد وو، په همدغه زمانه کې چې کله د هند مسلمانانو د ترکيانو ملګرتيا وکړه او انګريزان د ترکيانو خلاف وو، د انګريزانو سياست دا وو چې مسلمانان په جنګ سره واچوي او دوی خپل حکومت وکړي، د همدې کار لپاره دوی احمد رضا خان بريلوي تيار کړ او بيا يې په هغوی باندې دوه مهم کارونه وکړه.

۱: مسلمان ملکونه د ترکې سره يو ځای وو، پدې وجه پوره يورپ کې د مسلمانانو رعب وو؛ خو ددې اتفاق د اثر ختمولو لپاره احمد رضا خان بريلوي ډيره لويه کارنامه وکړه او يو مستقل کتاب يې پدې موضوع د دوام العيش په نوم باندې وليکلو چې ترکيانو ته د خلافت هيڅ حق نشته.

۲: دويم مهم کار احمد رضا خان بريلوي دا وکړ، چې د سوونو کلونو نه چې کوم مسلمانان متحد وو، هغه يې د مسلك په نوم سره په دوه ټوټو ووېشل، داسې اختلاف پيدا شو، چې يو کيدل يې په نظر نه راځي، که غور وکړی شي؛ نو د دواړو ډلو قرآن يو، رسول يو، الله يو، بيت الله يو؛ خو د هغوی خپل منځ کې د کفر او اسلام داسې ديوالونه جوړ شو، چې نور هم مضبوط شو، د احمد رضا خان بريلوي يو مستند قاري احمد بيلي نهيتی د سرای اعلی حضرت په مقدمه کې ليکي:

په ۱۲۹۷ھ کې مولانا شاه احمد رضا خان قلم پورته کړ او کتابونه یې ولیکل فتوی یې ورکړه د حرمین شریفین په سفر یې د مشاهیر علماء حرمین شریفین نه د علماء دیوبند د لیکلو خلاف تصدیقات حاصل کړه. چې هغه یې د حسام الحرمین په نوم په کتابي شکل کې خپاره کړه. مولانا احمد رضا خان بنځوس کاله مسلسل پدې کوشش کې اخته وو. تر دې چې دوه فکرونه قائمولو سره د بریلوي او دیوبندي جماعتونو د علماء او عوامو ترمنځ د تخالف او تصادم دا سلسله نن هم چلیږي او روانه ده. (۱) تقریبا همدا خبره مصنف مولانا نعیم الدین مراد آبادي هم لیکلې ده

د موجوده صدی نه وړاندې مسلمانان په هر حیثیت سره بنه په نظر راتلل. هغوی کې دینداري هم وه. اسلامي غیرت هم. په دنیا کې د هغوی عزت هم وو. رعب او طاقت او کفار به هم د هغوی د طاقت او شان و شوکت څخه ریږیدل

بهر حال د انګریزانو سیاست کامیاب شو. چې په مسلمانانو کې یې اختلاف پیدا کړ. په مسلمانانو کې ددې فرقې په ذریعه داسې اختلافونه پیدا شو. چې یو طرفته د مسلمانانو نه دینداري. رعب. وقار. غیرت او شوکت چې د قوم د ژوند سرمایه وه ختم شو. او دویم مسلمانان په خپلو کورونو کې دوه مستقل ذهنونو ولا جوړ شو بریلوي او دیوبندي.

فالله خیر حفظا وهو ارحم الرحمین

# دا فرقه کله وجود ته راغله

دا بریلوي فرقه تقریبا په ۱۲۹۷ھ کې وجود ته راغلې

---

(۱) سرائي اعلی حضرت : ۸

## د بريلوي فرقې د باني مولانا احمد رضا خان بريلوي د ژوند حالات[1]

**پيدائش** : احمد رضا خان د هندوستان په صوبه اترپرديش (يوپي) کې واقع ښار بريلي کې زېږېدلی، پدې وجه هغوی ته بريلوي ويل کېږي[2].

د پلار نوم يې تقي علي او د نيکه نوم يې رضا علي وو[3].

په ۱۴ جون ۱۸۵۶ء کې پيدا شوی. پلار يې ده ته نوم احمد ميان کېښود. نيکه يې احمد رضا او مور يې امن ميان نوم ايښی وو[4].

خو هغوی خپل نوم عبد المصطفی کېښود او هم دا به يې استعمالولو[5].

**تدريس** : ابتداء کې يې د خپل والد سره په مصباح العلوم کې درس شروع کړ. بيا يې په ۱۸۹۴ء کې د اشاعت العلوم په نوم مدرسه جوړه کړه. ددېنه وروسته يې په ۱۹۰۴ء کې يو بل دار العلوم د منظر اسلام په نوم جوړ کړ. بيا يې څو کاله د تدريس او فتوی ورکولو کار وکړ؛ خو بيا يې وروسته د حکمت په خاطر د فتوی ورکولو، تصنيف او تاليف کې ځان مشغول کړ او د مدرسې ټول نظام يې خپل ځوی حامد رضا خان بريلوي ته وسپارلو.

**تصنيفات** : د هغوی د تصنيفاتو تعداد د ۲۰۰ څخه تر زرو پورې ښودل شوی خو حقيقت دا دی: څه ته چې کتاب ويل کېږي، د هغې تعداد د لسو څخه زيات نه دی. د ټولو څخه يې لوی کتاب فتاوی رضويه ده، چې په اته ټوکو کې ليکل شوی

---

[1]) د اعلی حضرت د حالاتو کتلو لپاره به ددې کتابونو مطالعه فايده منده وي: ۱: جائزة المعارف الاسلامية ٤/٤٨٥، مطبوعه جامعه پنجاب، ۲: اعلی حضرت مصنف بشری، ۳: حيات اعلی حضرت مصنف ظفر الدين مبادی رضوی. ٤: من هو احمد رضا (شجاعت علی قادری) ٥: ملفوظات اعلی حضرت، ٦: فتاوی رضويه کی ابتداء ميں، ۷: ذکر رضا، ۸: الفاضل بريلوی مصنف مسعود احمد، ۹: انوار رضا، ۱۰: ياد اعلی حضرت مصنف عبدالحکيم شرف قادری ۱۱: باغ فردوس مصنف ايوب رضوی. ۱۲: مقدمه دار العيش مصنف مسعود احمد.

[2]) ذکره المعارف الاسلامية: ٤/٤٨٥، حيات اعلی حضرت (ظفر الدين بهاری رضوی)

[3]) تذکرة علماء هند ص: ٦٤

[4]) اعلی حضرت (بسنوی) ص ۲٥

[5]) من هو احمد رضا : (شجاعت قادری) ص ۱٥

**وفات:** په ٢٥ صفر ١٣٤٠هـ. د ١٩٢١ء مطابق د ٦٥ کالو په عمر کې د دنیا نه رخصت شو

## د بریلوي فرقې عقیدې او نظریې

١ رسول الله ﷺ ته علم غیب حاصل وو. [1]

٢: رسول الله ﷺ نور وو [2]

٣ رسول الله ﷺ حاضر او ناظر دی، څه چې غواړي تصرف کولی شي [3]

٤: رسول الله ﷺ مختار کل دی. [4]

٥: د غیر الله نه مرسته غوښتل. [5]

**په څو بنیادي مسئلو کې اختلاف**

٧: د درود او سلام لوستلو لپاره درېدل. [6]

٨: قبرونو لره پخول او په هغې باندې ګنبدونه جوړول. [7]

٩: په قبرونو باندې شمعې بلول. [8]

١٠: دریمه، لسمه، شلمه، څلویښتي او کال کول. [9]

١١: په خوراك ختم کول. [10]

١٢: د جنازې نه وروسته د دعا اهتمام کول. [11]

١٣: د رسول الله ﷺ په نوم کټې (د لاس وړې) ګوتې مچو کول [12]

---

[1]) خالص الاعتقاد (خیر) ص ٣٥

[2]) حدائق بخشش : حصه اول صفحه ٨٠

[3]) برکات الاحداد وملحوظ حصه چهار ... ص ٧٠، وبرکات الابرار ص ١١ (مصنف احمد رضا خان)

[4]) برکات الاحداد ص ٨، وملفوظات حصه چهارم ص ٧٠

[5]) الامن والعلی : ص ٢٩، (احمد رضا خان بریلوی)

[6]) الانوار الساطعه: (عبد السمیع بریلوي) ص: ٢٥٠

[7]) جاء الحق : ص ٢٨٢، (احمد یار خان)

[8]) فتاوی رضویه : ٤/١٤٤

[9]) انوار ساطعه

[10]) جاء الحق ص : ٢٥٤

[11]) مقیاس الحنفیت ص : ٥٢٩

[12]) فتاوی رضویه : ٢/٤٩٦

۱۴: یا رسول الله ویل. [1]

## د بریلوي فرقې عقیدې او نظریې، د قرآن او حدیث څخه د هغې جوابونه

### لومړی عقیده: رسول الله ﷺ عالم الغیب وو

رسول الله ﷺ ته علم غیب ورکول شوی وو، پدې سلسله کې مولانا احمد رضا خان بریلوي فرمایي:

زه تاسو ته نه وایم، چې ما ته علم غیب دی، ځکه چې تاسو ددې خبرې اهل نه یی: کنه نو دا حقیقت دی چې ما ته د ماکان ومایکونُ علم شته. [2]

په یو بل ځای کې لیکي چې:

رسول الله ﷺ ته د هر شي علم ورکول شوی. [3]

په بل ځای کې احمد رضا خان لیکي چې:

رسول الله ﷺ ته ټول کلي اوجزئي علم جاصل شو. د هرڅه نه یې احاطه وکړه. [4]

په یو بل ځای کې لیکي:

لوح او قلم چې په هغې کې ټول ماکان ومایکون دي، هغه د رسول الله ﷺ د علومو یوه ټوټه ده. [5]

**جواب**: ددې په خلاف قرآن، حدیث او د امت اجماع متفقه ده، چې عالم الغیب صرف د الله پاك ذات دی، علم غیب وایي: هغه شیان چې کوم اوس لا وجود کې نه دي راغلي یا راغلي خو دي، تر اوسه پورې په یو مخلوق باندې د هغو ظهور نه دی شوی.

چې د رسول یا نبی په درجه کې چاته د وحی په ذریعه یا یو ولي ته د کشف او الهام په ذریعه د غیب د خبرونو علم ورکول شو؛ نو هغه د غیبو د حدودو څخه

---

[1]) حدائق بخشش : ۲/۵۰

[2]) خالص الاعتقاد : ۳۵

[3]) مختصر عقائد اهل السنة والجماعة بریلوی مطبوعة کلکته

[4]) الدولة الحکیة : ص ۲۳۰

[5]) خالص الاعتقاد : ۳۸

ووتلو. همدغه شان د کومو شيانو علم چې د اسبابو او آلاتو په ذريعه وي: نو هغې ته به غيب نشي ويل کېدی

نعيم الدين مراد آبادي ليکي

د هغه څخه په نړۍ کې هيڅ خبره پټه نه ده. يو شی هم دده څخه په پرده کې نشته. دا پاك روح د عرش په اوچت والي او د هغې په ښکته والي د دنيا او آخرت په جنت او درزخ ټولو باندې خبر دی. ځکه چې دا ټول د هغه جامع الکمالات ذات لپاره پيدا شوي دي. (۱)

رسول اللهﷺ الله پاك هم پيژني او ټول موجودات. مخلوقات او د هغوی د ټولو احوالو نه، سره د اهتمام او کمال خبردار دی. په ماضي. حال. مستقبل کې يو شی. په هيڅ حال کې هم د رسول اللهﷺ څخه پټ نه دی. (۲)

همدغه شان په ډيرو عبارتونو کې د رسول اللهﷺ د علم الغيب اثبات موجود دی (۳).

## د قرآن کريم څخه د علم الغيب نفی

په قرآن کريم کې د الله نه ما سېوا څخه د علم غيب نفی!

۱: ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ (۴)

**ترجمه** : تاسو ووايې! چې څومره مخلوقات په آسمان او ځمکه کې دي. د الله پاك نه سېوا څوك هم د غيبو په خبرو نه پوهيږي.

۲: ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ (۵)

**ترجمه** : د غيبو کنجيانې د الله پاك سره دي. د هغه نه سېوا چا ته هم نه دي معلومې.

---

(۱) الکلمة العلياء لاعلاء علم المصطفى : ١٤

(۲) تسکين الخواطر فى مسئلة الحاضر والناظر : ٦٥

(۳) د اوږد والي له خاطره ټول نه شم ذکر کولی، د عبارت د نقلولو پر ځای به صرف په حواله باندېبسنه وکړو. ۱: مواعظ نعيمية احمد يار ص ۱۹۲، ۲: الدولة المکية ۲۳، ۳: خالص الاعتقاد ص ۲۸، ۳۸، ۵۶، الکلمة العلياء لاعلاء علم المصطفى وغيره.

(۴) سورة النمل :آيت: ٦٥

(۵) سورة الانعام : آيت ٥٩

۳: ﴿ قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴾ [1]

**ترجمه** : تاسو ووایې زه د خپل ځان لپاره د ګټې او تاوان اختیار نه لرم، که ما ته غیب معلوم وی: نو ما به ډیر خیر ځانته راجمع کړی وی او ما ته به هیڅ تاوان نه وی رسیدلی، زه خو صرف د مؤمنانو ویرونکی او هغوی ته زیری ورکونکی یم

۴: ﴿ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴾ [2]

**ترجمه** : یقینا د الله پاك سره د قیامت علم دی. هغه باران کوي. هغه ته معلوم دي څه چې په رحمونو کې دي، یو نفس ته هم معلومه نه ده. چې هغه به سبا څه کوي. یو نفس ته هم معلومه نه ده. چې هغه به په کومه ځمکه باندې مري. یقینا الله عالم او با خبره ذات دی.

۵: ﴿ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا ﴾ [3]

**ترجمه** : الله پاك ته د هغوی مخکې وروسته ټول احوال معلوم دي. هغوی د الله پاك احاطه په علم سره نشي کولی.

## د احادیث نبویه څخه د علم غیب نفی

د احادیثو څخه هم معلومیږي چې علم غیب د الله پاك خاصه ده د الله پاك نه سیوا چا ته هم نه دي معلوم.

د احادیثو د ذخیرې څخه څو مبارك حدیثونه دا دي

۱: د سیدنا انس ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ په یوه لاره باندې راتیر شو؛ نو رسول الله ﷺ ته په لاره یوه خورما (کجوره) ملاو شوه: نو رسول الله ﷺ وفرمایل:

---

[1] سورة الاعراف : آیت ۱۸۸
[2] سورة لقمان : آیت ۳٤
[3] سورة طه : آیت ۱۱۰

﴿ لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الصَّدَقَةِ لَأَكَلْتُهَا ﴾ [1] .

۲ یو ځل رسول الله ﷺ د ربیع بنت معوذ رضي الله عنها په واده کې حاضر شو. هلته د انصارو ماشومانو د خپل پلار نیکه مناقب بیانول. هغه چې په بدر کې شهیدان شوي وو. په ماشومانو کې یوې جینۍ دا وویل ﴿ وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ ﴾ په مونږ کې یو نبي دی. چې هغه ته د سبا خبرې هم معلومې دي؛ نو رسول الله ﷺ وفرمایل:

﴿ دَعِي هَذِهِ وَقُولِي بِالَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ ﴾ [2]

**ترجمه** : دا خبره پرېږده؛ هم هغه خبره کوه کومه چې دې وړاندې کوله.

۳ د سیدنا ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

﴿ قَدْ أُرِيتُ هَذِهِ اللَّيْلَةَ، ثُمَّ أُنْسِيتُهَا، فَالْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ وَالْتَمِسُوهَا فِي كُلِّ وِتْرٍ ﴾ [3]

**ترجمه** : ماته دا شپه (لیلة القدر) وښودل شوه. بیا زما څخه هېره شوه. تاسو دا د آخري لسو په طاق شپو کې ولټوی.

## د عقایدو د عالمانو اتفاقي فیصله

ملا علي قاري (د مشکوة شارح) فرمایي:

﴿ اعلم ان الانبياء عليهم السلام لم يعلموا المغيبات من الاشياء الا ما اعلمهم الله تعالى احيانا وذكر الحنفية تصريحا بالتكفير باعتقاد ان النبي صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب لمعارضته قوله تعالى قل لا يعلم من في السموات والارض الغيب الا الله ﴾ [4]

**ترجمه** : پوه شه؛ یقینا چې انبیاء علیهم السلام په غیبي شیانو علم نه لري، سبوا د هغې نه کوم چې هغوی ته ورکول شوي. احنافو په صراحت سره د هغه چا تکفیر کړی، څوک چې دا عقیده لري: رسول الله ﷺ په غیبو باندې پوهیده، ځکه چې دا سې عقیده د الله پاك ددې قول ﴿ قل لا يعلم من في السموات الاية ﴾ په مقابل کې ده.

---

[1]) بخاری ومسلم کذا فی المشکوة : ۱۶۱

[2]) مشکوة المصابیح ص ۲۷۱ ... البخاری

[3]) مشکوة المصابیح ۱۸۲، رواه البخاری ومسلم

[4]) شرح فقه اکبر

علامه ابن نجيم رحمه الله فرمايي:

﴿لَوْتَزَوَّجَ بِشَهَادَةِ اللهِ وَرَسُولِهِ لَا يَنْعَقِدُ وَيَكْفُرُ لِاعْتِقَادِهِ أَنَّ النَّبِيَّ يَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ (١)

**ترجمه** : كه يو سړى واده وكړي او په هغې كې الله او رسول ﷺ شاهدان كړي: نو دا نكاح نه تړل كيږي، دهغه دا اعقيده ساتل كفردى، چې رسول الله ﷺ په غيبو پوهيږي

۳: په شرح عقائد نعفي كې دي!

﴿ وبالجملة العلم بالغيب هو تفرد به الله تعالى لا سبيل اليه للعباد الا باعلام منه او الهام ﴾ (٢)

**ترجمه** : خلاصه دا ده چې علم غيب يو داسې شى دى، چې صرف الله پاك ته معلوم دى، بندګان هغه ته نشي رسيدلى، صرف پدې طريقه چې الله پاك يې په وحى يا الهام سره ورته بيان كړي.

۴: په فتاوى قاضى خان (متوفى ۵۹۲هـ) كې دي.

﴿ وبعضهم جعلوا ذلك كفرا لانه يعتقد ان رسول الله ﷺ يعلم الغيب وهو كفر ﴾ (٣)

**ترجمه** : او ځينو خلكو دېته كفر ويلى: ځكه هغه دا عقيده ساتي چې رسول الله ﷺ په غيبو پوهيږي او دا عقيده ساتل كفر دى.

## دويمه عقيده: رسول الله ﷺ نوروو بشر نه وو

ددې په اړه خپله احمد رضا خان بريلوي ليكي.

رسول الله ﷺ د الله پاك د نور ټوټه ده، د بشريت په پرده كې ځمكې ته رالېكته شوى دى. (٤)

---

(١) البحر الرائق : ١/١٦

(٢) شرح عقائد نسفى صفحه : ١٢٣

(٣) فتاوى قاضى خان كتاب النكاح كې ددېنه علاوه د نورو محدثينو او فقهاء كرامو عبارتونه د اوږد والي له امله لري كړى شو، صرف په حوالو باندې مو بسنه وكړه.

فتاوى عالمگيري ٢/٤١٢، خلاصة الفتاوى : ٤/٣٥٤، فصول عماديه ص : ٦٤، فتاوى بزازية ص : ٣٢٥، عمدة القارى شرح بخارى : ١/٥٢٠، علامه ابن عابدين شامى ص ٣٠٦، مالا بد منه ص ١٧٦، وغيره.

(٤) حدائق : حصه اول ص ٨٠

احمد رضا خان لیکي: اردو شعر

اٹھا پردہ دو چہرہ کہ نور باری حجاب میں ہے

زمانہ تاریک ہو رہا ہے کہ مہر کب سے نقاب میں ہے

دغه شان په یو بل ځای کې لیکي:

رسول الله ﷺ د نور څخه دی او ټول مخلوق د هغوی د نور څخه دی. (١)

په یو بل ځای کې لیکي:

بېشکه الله پاك صورت محمدي ﷺ د خپل پاك نوم بدیع نه پیدا کړ. په کرورونو کاله الله پاك هم دې صورت محمدي ﷺ ته کتل. په خپل اسم مبارك منان او قاهر سره بیا یې تجلي وفرمایل په خپل اسم پاك اللطیف غافر سره. (٢)

یو ځای کې لیکي: فرشتې د رسول الله ﷺ د نور څخه پیدا شوي. ځکه چې رسول الله ﷺ فرمایي: الله پاك هر یو شی زما د نور څخه پیدا کړی. (٣)

**جواب** : ددې په خلاف د قرآن او احادیثو په رڼا کې د اجماع امت دا عقیده ده چې انبیاء ﷺ بشر (انسانان) وو.

## د قرآن کریم آیتونه

پدې اړه د قرآن کریم ډیر آیتونه دي چې د هغو څخه ځینې لاندې لیکل شوي:

١: ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ (٤)

**ترجمه** : تاسو ووایئ: یقینا زه ستاسو په شان بشر یم. ماته دا وحی کیږي چې بېشکه ستاسو معبود یو دی.

٢: ﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ إِنَّهُ عَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴾ (٥)

---

(١) مواعظه نعیمیه ص : ١٤

(٢) فتاوی نعیمیه : ٣٧

(٣) صلاة الصفا مندرجه مجموعه رسائل : ١/٣٧

(٤) سورة الکهف :آیت ١١٠

(٥) سورة شوری : آیت ٥١

**ترجمه** : نه دی ممکن د هیڅ انسان لپاره چې الله پاك هغه سره خبرې وکړي، مګر په وحی یا د پردې شا ته، یا ورته استازی (جبرئیل علیه السلام) راولیږي. هغه ورته د الله پاك د حکم مطابق وحی وکړي. یقینا هغه لوی شان والا او د حکمت څښتن دی.

۳. ﴿ قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِنْ نَّحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَاءُ مِنْ عِبَادِهٖ ﴾ [1]

**ترجمه** :وویل هغوی ته رسولانو دهغوی یقینا مونږ نه یو مګر ستاسو په څیر انسانان؛ خو الله پاك چې په چا وغواړي د خپلو بندګانو څخه، په هغه باندې احسان کوي.

۴. ﴿ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴾ [2]

**ترجمه** : تاسو ووایی: یقینا نه یم زه مګر رالیږل شوی انسان رسول یم.

۵. ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ إِذْ قَالُوْا مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ قُلْ مَنْ أَنْزَلَ الْكِتَابَ الَّذِيْ جَاءَ بِهٖ مُوْسٰى ﴾ [3]

**ترجمه** : او دې خلکو د الله پاك لائق قدر ونکړ. کله چې یې وویل: الله پاك په هیڅ بشر څه نه دي نازل کړي، تاسو ووایی! هغه کتاب چا نازل کړی وو کوم چې سیدنا موسی علیه السلام راوړی وو.

## د نبوي احادیثو څخه د بشریت ثبوت

﴿ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمًا خَطِيْبًا....الى ان قَالَ: "أَمَّا بَعْدُ. أَلَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، يُوْشِكُ أَنْ يَّأْتِيَنِيْ رَسُوْلُ رَبِّيْ فَأُجِيْبَ، وَأَنَا تَارِكٌ فِيْكُمُ الثَّقَلَيْنِ: أَوَّلُهُمَا كِتَابُ اللّٰهِ، فِيْهِ الْهُدٰى وَالنُّوْرُ، فَخُذُوْا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاسْتَمْسِكُوْا بِهٖ" فَحَثَّ عَلٰى كِتَابِ اللّٰهِ وَرَغَّبَ فِيْهِ، ثُمَّ قَالَ: وَأَهْلُ بَيْتِيْ، أُذَكِّرُكُمُ اللّٰهَ فِيْ أَهْلِ بَيْتِيْ، أُذَكِّرُكُمُ اللّٰهَ فِيْ أَهْلِ بَيْتِيْ ﴾ [4]

**ترجمه** : د سیدنا زید بن ارقم رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه ورځ د خطبې ویلو لپاره ودرېد، تر دې چې هغوی وفرمایل: اما بعد! اې خلکو زه هم یو بشر یم، نږدې ده چې ما ته د رب استازی (فرشته) د مرګ پیغام راوړي، زه د رب پیغام قبول

---

[1] ) سورة ابراهيم : آيت ۱۱

[2] ) سورة بنى اسرائيل : آيت ۹۳

[3] ) الانعام : ۹۱

[4] ) رواه مسلم وكذا فى المشكاة : ۵۶۰

کړم، زه په تاسو کې دوه لوی شیان پرېږدم، په هغې کې اولنی شی د الله پاك کتاب دی، پدیکې هدایت او رڼا ده. دا کتاب ښه کلك ونیسی! بیا رسول الله ﷺ د الله پاك د کتاب د کلکو نیولو نور هم ښه ترغیب ورکړ، رسول الله ﷺ وفرمایل (دویمه خبره دا چې) زه تاسو د خپل اهل بیت په باره کې د الله پاك نه ویروم. ګوری! زه تاسو د خپل اهل بیت په باره کې د الله پاك نه ویروم.

۲: ﴿ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، وَإِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ، وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَنْ يَكُونَ أَلْحَنَ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ، .... فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْءٍ مِنْ حَقِّ أَخِيهِ؛ فَلَا يَأْخُذَنَّهُ، فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ ﴾[1]

**ترجمه** : سیده ام سلمه رضي الله عنها فرمایي: چې رسول الله ﷺ وفرمایل: بېشکه زه یو بشر یم او تاسو ما ته د خپلو جنګونو سره ماته راځی او کیدی شي چې په تاسو کې ځینې سړي د بل سړي څخه زیات فصیح او هوښیار وي؟ نو په تاسو کې چې د کوم سړي لپاره ما د هغه د ورور په حق کې فیصله وکړه، (ګویا) ما هغه ته د اور یوه ټکړه پرې کړه او ورمي کړه.

۳: ﴿ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا، فَقِيلَ لَهُ: أَزِيدَ فِي الصَّلَاةِ؟ فَقَالَ: "وَمَا ذَاكَ؟" قَالُوا: صَلَّيْتَ خَمْسًا، فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَمَا سَلَّمَ، وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: "إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ، أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ، فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي ﴾[2]

**ترجمه** : سیدنا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي: چې رسول الله ﷺ د ماسپښین پنځه رکعته ورکړه، عرض وکړی شو: یا رسول الله ﷺ! آیا په لمانځه کې څه زیاتوالی راغلی؟ نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: څه چل وشو؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړ: رسول الله ﷺ پنځه رکعته کړي، رسول الله ﷺ د سلام نه وروسته دوه سجدې ادا کړې، په یو روایت کې دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: چې زه ستاسو په شان بشر یم،

[1]) رواه البخاری ص ۳۳۲ وکذا فی المشکوة : ۳۲۷
[2]) متفق علیه وکذا فی المشکاة : ۱/۹۲

ما نه هم هيره راتلی شي، لکه چې ستاسو څخه هېره راتلی شي، کله چې زما څخه په لمانځه کې هيره وشي؛ نو ماته يې رايادو کړی.

۴: ﴿ عن ابي هريرة: قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «اللَّهُمَّ إِنِّي اتَّخَذْتُ عِنْدَكَ عَهْدًا لَنْ تُخْلِفَنِيهِ، فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، فَأَيُّ الْمُؤْمِنِينَ آذَيْتُهُ شَتَمْتُهُ، لَعَنْتُهُ، جَلَدْتُهُ، فَاجْعَلْهَا لَهُ صَلَوةً وَزَكَوةً وَقُرْبَةً الحديث ﴾ [1]

**ترجمه** : سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! ما ستا سره عهد کړی چې ته به ما سره هيڅکله خلاف ورزي نه کوې، زه بشر يم. کوم مؤمن ته چې ما څه تکليف رسولی وي، يا مې سخته خبره ورته کړې وي، يا ما په هغه باندې لعن طعن کړی وي، يا ما هغه وهلی وي، د هغوی لپاره دا شيان رحمت وګرځوې! او پاکيزګی سره يې په هغې سره هغه د قيامت په ورځ ستا قربت حاصل کړي.

۵: ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ: إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ وَإِنِّي اشْتَرَطْتُ عَلَى رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ أَيُّ عَبْدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ سَبَبْتُهُ أَوْ شَتَمْتُهُ أَنْ يَكُونَ ذَلِكَ لَهُ زَكَاةً وَأَجْرًا ﴾ [2]

**ترجمه** : سيدنا جابر بن عبدالله رضي الله عنهما روايت کوي، وايي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي: رسول الله ﷺ وفرمايل: ببشکه زه يو انسان يم، پدې وجه ما خپل ځان سره دا خبره شرط کړې. چې که زه په مسلمانانو کې چا ته سخته خبره وکړم؛ نو هغه دې د هغه لپاره د پاکوالي او اجر ذريعه وګرځوې.

۶: ﴿ فَقَالَ: إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، إِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ أَمْرِ دِينِكُمْ، فَخُذُوا بِهِ؛ وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ رَأْيِي، فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ ﴾ [3]

**ترجمه** : رسول الله ﷺ وفرمايل: پديکې شك نشته، چې زه بشر يم. کله چې تاسو ته ستاسو د دين د خبرې حکم کوم؛ نو هغه محفوظ کړی او کله چې تاسو ته په خپله رايه حکم کوم؛ نو ببشکه زه هم يو انسان يم.

---

[1] مشکوة

[2] رواه مسلم و مشکوة.

[3] مشکوة ص: ۲۸

# د عقايدو د عالمانو اتفاقي فيصله

علامه كمال الدين ابن همام رحمه الله فرمايي:

۱: ﴿ فالنبيُّ على هذا انسان اوحى اليه بشرٌ ﴾ [۱]

ترجمه: نبي يو انسان دی، چې هغه ته وحی کړی شوې ده.

قاضي عياض رحمه الله فرمايي:

۲: ﴿ لا خلاف انه اكرم البشر وسيد ولد ادم ﴾ [۲]

ترجمه: پديکې اختلاف نشته، چې رسول الله ﷺ په انسانانو کې زيات عزتمند او د آدم عليه السلام په اولاد کې سردار دی.

په شرح عقائد کې دي:

۳: ﴿ وقد ارسل الله تعالى رسلا من البشر الى البشر مبشرين لاهل الايمان والطاعة ﴾ [۳]

ترجمه: بېشکه الله پاك د انسانانو طرفته رسول، انسان ليږلی دی. چې مؤمنانو او اطاعت کوونکو ته زيری ورکړي.

قاضي عياض رحمه الله فرمايي:

۴: ﴿ محمد صلى الله عليه وسلم وسائر الانبياء من البشر ارسلوا الى البشر ﴾ [۴]

ترجمه: رسول الله ﷺ او ټول انبياء عليهم السلام انسانان دي، د خلكو طرفته راليږل شوی دی.

د امام شوكاني رحمه الله په فتح القدير کې دي:

۵: ﴿ وفيه اعلام من الله سبحانه وتعالى بان الرسول ينبغي ان يكون من جنس المرسل اليهم ﴾ [۵]

ترجمه: پديکې د الله پاك له طرفه اعلان دی: چې رسول هم د هغه چا د جنس څخه زيات لائق دی، د چا طرفته چې ليږل شوی وي.

---

[۱] مسامرة: ۱۹۷

[۲] كتاب الشفاء فى حقوق المصطفى: ۱/۱۳۰

[۳] شرح عقائد: ۱٦۵

[۴] كتاب الشفاء: ۱/۸٦

[۵] تفسير فتح القدير: ۲۵۱

په تفسیر مظهري کې دي:

۶: ﴿ يعنى لايرسل الى قوم رسولا الا من جنسهم ليمكنهم من الاجتماع به والتلقى منه ﴾ (١)

**ترجمه** : يعنې د الله پاك ارشاد دی: چې مونږ کوم قوم ته رسول رالیږلی دی؛ نو هم د هغوی د جنس څخه مو رالیږلی دی. چې د هغوی سره یې جمع کیدل هم ممکن وي او د هغوی څخه فایده حاصلول هم آسان وي.

۷: علامه فخر الدين رازي رحمه الله فرمايي:

﴿ تقرير هذا الجواب أن يقال: إما أن يكون مرادكم من هذا الاحتجاج أنكم طلبتم الإتيان من عند نفسي لهذه الأشياء أو طلبتم من أن أطلب من الله تعالى إظهارها على يدى لتدل على كونى رسولا حقامن عند الله. والأول باطل لأنى بشر والبشر لا قدرة له على هذه الأشياء ﴾ (٢)

**ترجمه** : د جواب تقرير دا دی چې وویل شي: یا خو ستاسو مراد پدې طلب سره چې ستاسو مطالبه ده، چې ددې شیانو غوښتنه تاسو زما د ذات څخه کوی او یا ستاسو مطالبه دا ده، چې زه یې د الله پاك نه وغواړم، چې هغه معجزې زما په لاس باندې ظاهرې کړي، چې معلومه شي، واقعي زه د الله پاك له طرفه رالیږل شوی استازی یم، لومړی خبره خو غلطه ده، ځکه چې زه بشر یم او د بشر پدې شیانو قدرت نشته.

## دریمه عقیده: رسول الله ﷺ په هر ځای کې حاضر او ناظر دی

رسول الله ﷺ په هر ځای کې حاضر او ناظر منل پکار دي، مطلب یې دا دی: داسې ذات چې هر ځای کې موجود وي؛ نو دا عقیده چې د رسول الله ﷺ وجود نن هم په ټولو ځایونو کې دی او ددې کائنات د ټولو شیانو څخه خبر دی. په دې اړه د احمد رضا خان بریلوي خاص معتقد احمد سعید کاظمي فرمايي:

---

(١) تفسير مظهرى ج٥ ص٩٧

(٢) تفسير كبير : د ﴿ هل كنت الا بشرا رسولا ﴾ د لاندې ليکې.

نوټ : ددېنه علاوه نورو محدثينو او فقهاء کرامو هم په دې مسئله کې اتفاق کړی، د اوږدوالي له امله صرف حوالې ليکل کيږي، عبارتونه مو حذف کړي: ١: تفسير ابن جرير ١٣/١٠٤، ٢: تفسير مناوى : ١/٤١٣، ابن قيره: ٣/٦٤، ٦٥، جلالين : ص ٢٥٣، تفسير روح المعانى : ١٥/١٦٠، الشفاء : ٢/٥٠، مکتوبات امام رباني ص : ١٦٦، دفتر اول وغيره

يو ځاى او يو وخت هم د رسول الله ﷺ څخه خالي نه دى. (۱)

احمد رضا خان خپله ليکي:

د رسول الله ﷺ روح په ټول جهان کې د هر مسلمان په کور کې ځاى لري. (۲)

په بل ځاى کې مفتي يار ليکي:

د رسول الله ﷺ پاك نظر هر وخت د عالم په ذره ذره باندې دى او لمانځه، د قرآنکريم تلاوت، محفل ميلاد شريف او د نعت خوانى په مجلسونو کې. همدغه شان د صالحينو د جنازې نه خاص طور د خپل بدن مبارك سره تشريف فرما وي. (۳)

په جاء الحق کې يې ليکلي دي:

رسول الله ﷺ د آدم عليه السلام د زمانې نه واخله، تر د رسول الله ﷺ د بدني پيدايش پورې په ټولو واقعو کې حاضر دى. (۴)

او ورسره دا چې صرف رسول الله ﷺ حاضر او ناظر نه. بلکې اولياء هم حاضر او ناظر وي.

په جاء الحق کې دي چې: اولياء الله په يو وخت کې څو ځايونو کې موجودېدى شي او د هغوى په يو وخت ډير بدنونه کيدى شي. (۵)

مولانا احمد رضا خان خپله ليکي:

که هغوى (اولياء کرام) وغواړي؛ نو په يو وخت کې د لس زرو ښارونو څخه د زرو ځايونو دعوت قبلولى شي.

ددېنه علاوه دا عقيده په مختلفو ځايونو کې بيان شوې ده. (۶)

---

(۱) تسکين الخواطر فى مسئلة الحاضر والناظر: ۸۵
(۲) خالص الاعتقاد ص: ۴۰
(۳) جاء الحق ص: ۱۵۵
(۴) جاء الحق ص: ۱۶۳
(۵) جاء الحق ص: ۱۵٤
(۶) د اوږد والي له امله صرف حواله ذکر کيږي: ۱: تسکين الخواطر فى مسئلة الحاضر والناظر احمد سعيد کاظمى. ۲: جاء الحق ص: ۱۵۰ تا ۱۵٤، ۳: ملفوظات ۱۱۳، ۱۱٤، ٤: خالص الاعتقاد: ۴۰، ۵: فتاوى رضويه: ۶/۴۲، ۱۰۱ وغيره.

**جواب** : اهل سنت و الجماعت فرمايي: چې حاضر او ناظر كيدل دا د الله پاك صفت دى، ددېنه علاوه دا د چا صفت هم نه شي كيدى!

په همدې خبره د قرآن، احاديث او علماء كرامو اتفاق دى!

## د قرآن كريم آيتونه

پدې اړه قرآن كې ډېر آيتونه راغلي، چې ځينې يې دا دي.

۱ ﴿ مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ اَيْنَ مَا كَانُوْا ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴾ (۱)

**ترجمه** : په درې كسانو كې هيڅ قسم پټې خبرې نه وي، مګر څلورم هغه (الله پاك) وي او په پنځو كې نه وي، مګر شپږم هغه وي او نه كم ددې څخه او نه زيات ددې څخه وي، مګر هغه الله تعالى د هغوى سره وي. چيرته چې هم هغوى وي. بيا به هغوى ته د قيامت په ورځ د هغوى د اعمالو خبر وركوي، بېشكه الله پاك په هر يو شي عالم دى.

۲: ﴿ يَّسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ﴾ (۲)

**ترجمه** : د خلكو څخه پټيږي، د الله پاك څخه نشي پټيدلى او هغه هغوى سره هر ځاى كې وي، كله چې دوى د شپې د هغه خبرو مشورې كوي په كومو كې چې الله پاك ناراضه دى.

۳: ﴿ وَمَا تَكُوْنُ فِيْ شَاْنٍ وَّمَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّلَا تَعْمَلُوْنَ مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوْدًا اِذْ تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ﴾ (۳)

**ترجمه** : تاسو چې په هر حالت كې يى او يا د قرآن څه برخه لولى، نه كوى تاسو يو عمل مګر مونږ په هغې باندې شاهدان يو، كله چې تاسو په هغې كې مشغول يى.

۴: ﴿ وَهُوَ مَعَكُمْ اَيْنَ مَا كُنْتُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴾ (۴)

---

(۱) سورة المجادلة :آيت ۷

(۲) سورة النساء : آيت ۱۰۸

(۳) سورة يونس : آيت ٦١

(۴) سورة حديد : آيت ٤

**ترجمه** : او هغه الله پاك تاسو سره دی، چیرته چې تاسو یی، الله پاك ستاسو د عملونو کتونکی دی.

۵: ﴿ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴾ (۱)

**ترجمه** : الله پاك خپل بندګانو لره کتونکی دی.

## د نبوي احاديثو ﷺ څخه هم د حاضر ناظر صفت صرف د الله پاک لپاره ثابت دی

د ډیرو احادیثو څخه یو څو لاندې لیکل کیږي!

رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته وفرمایل:

۱: ﴿ إِنَّكُمْ تَدْعُونَ سَمِيعًا بَصِيرًا، وَهُوَ مَعَكُمْ، وَالَّذِي تَدْعُونَهُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ عُنُقِ رَاحِلَتِهِ ﴾ (۲)

**ترجمه** : تاسو هغه الله پاك ته آواز کوی چې اوري او ګوري. ستاسو سره وي او تاسو ته ستاسو د حیواناتو د څټونو څخه هم زیات نږدې وي.

رسول الله ﷺ سیدنا عبادة بن صامت رضي الله عنه ته وفرمایل:

۲: ﴿ إن أفضل الإيمان أن تعلم أن الله معك حيثما كنت ﴾ (۳)

**ترجمه** : د ټولو څخه غوره ایمان دا دی: چې ته دا یقین ولرې چې چیرته ته یې، الله پاك تا سره دي.

د عبدالله بن معاویه عامري څخه روایت دی چې ما عرض وکړ:

۳: ﴿ فَمَا تَزْكِيَةُ الْمَرْءِ نَفْسَهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أَنْ يَعْلَمَ أَنَّ اللّٰهَ مَعَهُ حَيْثُمَا كَانَ ﴾ (۴)

**ترجمه** : یا رسول الله ﷺ! د یو سړي خپل نفس لره د پاکولو طریقه څه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: چې ددې خبرې یقین وکړي چې انسان چیرته هم وي الله پاك هغه سره دی.

---

(۱) سورة آل عمران : آیت ۱۵
(۲) بخاری ومسلم
(۳) اخرجه الطبراني فی الاوسط (و اسناده ضعیفٌ)
(۴) رواه البزار فی مسنده ....

د سیدنا نواس بن سمعان ﷛ په روایت کې دي چې رسول الله ﷺ د دجال ذکر کولو سره وفرمایل:

۴: ﴿ إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ فَأَنَا حَجِيجُهُ دُونَكُمْ وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ وَاللهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ ﴾ [۱]

**ترجمه** : که زه په امت کې یم؛ او زه به په دجال باندې به په حجت سره غالب شم، که زه ستاسو ترمنځ نه وم؛ نو هر سړی دي خپله دفاع خپله کوي او الله پاك زما نه وروسته زما د امت حفاظت کونکی دی.

﴿لستُ فیکم﴾ د وفات نه وروسته رسول الله ﷺ د خپل حاضر او ناظر کیدو نفی کوي.

## د علماء کرامو اتفاقي فیصله

په فتاوی بزازیه کې دي:

۱: ﴿ قال علمائنا من قال ارواح المشائخ حاضرة تعلم يكفر ﴾ [۲]

**ترجمه** : زمونږ علماء کرامو ویلي: کوم سړی چې دا وایي د بزرګانو ارواح حاضر دي او هغوی په هر څه پوهیږي؛ نو داسې سړی کافر دی.

د فتاوی عالمګیري فیصله:

۲: ﴿ رَجُلٌ تَزَوَّجَ امْرَأَةً ، وَلَمْ يَحْضُرْ الشُّهُودُ قَالَ خدائي را وَرَسُول راگواه كردم ، أَوْ قَالَ : خدائي را وفرشتكان راگواه كردم ، كَفَرَ ﴾ [۳]

**ترجمه** : یو سړی د یوې ښځې سره بغیر د شاهدانو نه نکاح وکړي او هغه دا ووایي: چې زه الله او د هغه رسول شاهد جوړوم، یا هغه داسې ووایي: چې زه الله پاك او د هغه فرشتې شاهدې کوم؛ نو داسې سړی به کافر شي، (ځکه چې هغه د رسول الله ﷺ د حاضر او ناظر کیدو عقیده لري).

د فتاوی جواهر اخلاطیه فیصله:

---

[۱] ابوداؤد (صحیح)
[۲] بزازية حاشية عالمگيری : ٦/٣٢٦
[۳] فتاوی عالمگيري : ٢/٤١٣

۳: ﴿ لن زعم ان النبي صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب يكفر فما ظنك بغيره ﴾ (۱)

**ترجمه** : که چا دا ګمان وکړ، چې رسول الله ﷺ په ټولو غيبو پوهيږي: نو هغه سړی به کافر شي؛ نو که د بل چا په باره کې داسې عقيده ساتي: نو هغه څنګه مسلمان پاتې کيدی شي.

د علامه ابن نجيم مصري رحمه الله فيصله:

۴: ﴿ لَوْ تَزَوَّجَ بِشَهَادَةِ اللهِ وَرَسُولِهِ لَا يَنْعَقِدُ وَيَكْفُرُ لِاعْتِقَادِهِ أَنَّ النَّبِيَّ يَعْلَمُ الْغَيْبَ ﴾ (۲)

**ترجمه** : که يو سړی واده وکړي او په هغې کې الله او رسول ﷺ شاهدان کړي؛ نو دا نکاح به نه صحيح کيږي، د هغه دا عقيده کفر ده، چې رسول الله ﷺ په غيبو پوهيږي.

ددېنه علاوه ډيرو فقهاء کرامو او محدثينو ددې خبرې تصريح کړې، چې حاضر او ناظر صرف د الله پاك ذات دی. (۳)

## څلورمه عقيده: رسول الله ﷺ مختار کل دی

دې باره کې خپله مولانا احمد رضا خان بريلوي ليکي:

رسول الله ﷺ هر ډول حاجت پوره کولی شي، د دنيا او آخرت ټول مرادونه د رسول الله ﷺ په اختيار کې دي. (۴)

همدغه شان په يو بل ځای کې احمد رضا خان ليکي:

اردو شعر ذی تصرف بھی ہے ماذون بھی مختار بھی ہے

کار عالم کا مدبر بھی ہے عبد القادر (۵)

**ترجمه**: دهر ډول تصرف، اجازه او اختيار څښتن دی، دټولې نړۍ ښه برابرونکی هم دی.

---

(۱) فتاوی جواهر اخلاطيه

(۲) البحر الرائق : ۱/۱۶

(۳) خلاصة الفتاوی : ۴/۳۵۴، فصول عماديه ص : ۶۴، عمدة القاری : ۱۱/۵۲۰، مسامره مع المسايره لابن الهمام : ۲/۸۸، شرح فقه اکبر : ۱۸۵ وغيره.

(۴) برکات الاحداد ص : ۸، وملفوظات حصه چهار ص : ۷۰

(۵) حدائق بخشش حصه : ۱۹

همدغه شان يو بل ځای کې ليکي:

رسول الله ﷺ لوی خليفه، په ځمکه او اسمان کې تصرفات کوي. (١)

په بهار شريعت کې دي:

رسول الله ﷺ د الله پاك نائب مطلق دی، ټوله نړۍ د رسول الله ﷺ د تصرف لاندې ده. چا ته چې غواړي ورکوي او د چا نه چې غواړي اخلي يې ترې. (٢)

په فتاوی رضويه کې دي:

هر شي، هر نعمت، هر دولت باندې. په دين، دنيا او آخرت کې د اول ورځې نه تر ننه پورې او تر ابد الابده پورې چې چاته څه رسيږي. د رسول الله ﷺ په لاس مبارك ورته حاصل شوي او ملاويږي. (٣)

د بريلوي مسلك مستند عالم مفتي احمد يار گجراتي ليکي:

ټوله معامله د رسول الله ﷺ په کريمانه لاس کې ده: څه چې غواړي. چا ته چې غواړي ورکوي يې. (٤)

مثلا د شيخ المشائخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله په اړه خپله احمد رضا خان ليکي:

اردو شعر ذی تصرف بھی ہے ماذون بھی مختار بھی ہے

کار عالم کا مدبر بھی ہے عبد القادر (٥)

**ترجمه:** دهر ډول تصرف، اجازه او اختيار څښتن دی، د ټولې نړۍ ښه برابروونکی هم دی.

د اسمان نه تر ځمکې پورې د ابدال ملك دی او د عارف ملك د عرش نه فرش پورې. (٦)

---

١) فتاوی رضويه : ٦/١٥٥
٢) بهار شريعت امجد علی جزء ص : ١٥
٣) فتاوی رضويه : ١/٥٧٧
٤) جاء الحق ص١٩٥
٥) حدائق بخشش حصه : ١٩
٦) الاستمداد : ٣٥

په بل ځای کې لیکي:
د اولیاء کرامو په برکت سره د خلکو نظام ولاړ دی. [١]

**جواب** : ددې په خلاف د قرآن او حدیث څخه دا خبره ثابته ده، چې مختار کل صرف د الله پاك ذات دی بل څوك مختار کل نشته.

## د قرآن کریم د آیتونو څخه د الله پاك لپاره کلي اختیار

١. ﴿الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا وَاتَّخَذُوا مِن دُونِهِ آلِهَةً لَّا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ وَلَا يَمْلِكُونَ لِأَنفُسِهِمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلَا حَيٰوةً وَلَا نُشُورًا﴾ [٢]

**ترجمه** : الله پاك هغه ذات دی چې د ځمکو او اسمانونو بادشاهي د هغه په اختیار کې ده او هغه څوك هم په اولاد سره نه دی نیولی، نه د هغه په بادشاهی کې ورسره څوك شریك شته. هر یو شی یې پیدا کړی؛ پخپله اندازه. په اندازه کولو سره. او دوی نیولی دی د الله پاك نه سېوا نور معبودان چې هیڅ شی نشي پیدا کولی او نه د ځان لپاره د ګټې او تاوان مالکان دي، نه د مرګ او ژوند او دوباره ژوندي کولو اختیار لري.

٢. ﴿يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ذٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ﴾ [٣]

**ترجمه** : داخلوي شپه په ورځ کې او ورځ په شپه کې، تابع کړي یې دي لمر او سپوږمی. هر یو روان دي. تر یوې ټاکلې نیټې پورې، هم دا ستاسو رب دی، د هغه

---

[١] الامن والعلی، د زیات معلومات لپاره وګوری: الاستمداد علی اصیال الارتداد ص ٣٢، ٣٦، ٣٤، الامن والعلی : ص ١٠٥، ٥٧، ٣٤، فتاوی رضویه : ١/٥٧٧، حدائق بخشش : ٢٨٧، ١٢٥، ١٢٦، ١٧٩، ١٨٤، ١٧٩، حکایات رضویه للبرکاتی منقوله از ملفوظات : ص ١٢٥، ٤٤، ١٠٢، ١٢٩، (باغ فردوس) ایوب علی رضوی : ص ٢٦، ٤ جاء الحق ص ١٩٧، رسول الکلام از دیدار علی للبریلوی : ص ٢٥، شریعت ١/٩، فتاوی نعیمیه ص ٢٤٩، مدائح اعلی حضرت ایوب رضوی : ٥، ٥٤، ٢٣، ٥٤

[٢] الفرقان : ٢، ٣

[٣] الفاطر : ١٣

لپاره بادشاهي ده او هغه معبودان چې تاسو يې رابلی، هغوی ته د خورما د هډوکي د پوستکي په اندازه اختيار هم نشته.

۳: ﴿ مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِنْ بَعْدِهِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَأَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴾ (۱)

**ترجمه** : الله پاك كه د رحمت يوه دروازه د خلكو لپاره خلاصه كړي: نو د هغې لپاره څوك بندونكى نشته، كه بنده يې كړي؛ نو بيا د هغې څوك خلاصونكى نشته، هغه غالبو حكمتونو والا دى، اې انسانانو! راياد كړى د الله پاك نعمتونه په خپلو ځانونو باندې، آيا بل څوك خالق شته چې تاسو ته د اسمان او ځمكې نه روزي دركړي؟ نشته حقدار د بندګۍ سېوا د هغه نه! تاسو كوم طرفته اړول كيږئ.

۴: ﴿ وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴾ (۲)

**ترجمه** : او د الله پاك نه سېوا داسې معبودان مه رابله! چې نه تا ته ګټه رسوي او نه تاوان، كه تا داسې وكړه؛ نو يقينا ته به د ظالمانو څخه شې.

۵: ﴿ قُلْ لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِيْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ ﴾ (۳)

**ترجمه** : تاسو ووايئ: زه د خپل ذات لپاره د هيڅ ګټې او تاوان اختيار نه لرم، مګر هغه چې الله پاك يې وغواړي.

## د نبوي ﷺ احاديثو څخه هم صرف د الله پاك مختار كل كېدل ثابت دي

پدې ضمن كې ځينې احاديث دا دي:

۱: ﴿ اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِيْ فِيْمَا أَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِيْ فِيْمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ ﴾ (۴)

**ترجمه** : اې الله (كوم خرچ خوراك وغيره) نفقه چې زما په وس كې وه؛ نو ما پديكې برابري وكړه، اوس چې د كوم خير مالك ته يې، زه يې مالك نه يم؛ نو په هغې

---

(۱) الفاطر: ۲، ۳

(۲) يونس: ۱۰۶

(۳) يونس: ۴۹

(۴) مشكوة ص ۲۷۹، بحواله ترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة (ضعيف)

کې ما مه نيسه.

۲: ﴿ اللَّهُمَّ بِعِلْمِكَ الْغَيْبَ، وَقُدْرَتِكَ عَلَى الْخَلْقِ، أَحْيِنِي مَا عَلِمْتَ الْحَيَاةَ خَيْرًا لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا عَلِمْتَ الْوَفَاةَ خَيْرًا لِي ﴾[1]

**ترجمه** : اې الله! په خپل مخلوق باندې د خپل قدرت په واسطه ما تر هغه وخته پورې ژوندی وساته! تر څو چې ستا په علم کې زما ژوند زما لپاره د خير وي او ماته وفات راکړه تر څو چې ستا په علم کې زما لپاره وفات غوره وي.

۳: ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ كُلِّ خَيْرٍ خَزَائِنُهُ بِيَدِكَ... الحديث ﴾[2]

**ترجمه** : اې الله! زه ستا نه د هر خير سوال کوم چې د هغې خزانې ستا په ولکه کې دي او د هرې بدۍ څخه ستا پناه غواړم. چې د هغې خزانې هم ستا سره دي.

۴: ﴿ مَا أُعْطِيكُمْ، وَلَا أَمْنَعُكُمْ أَنَا قَاسِمٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ ﴾[3]

**ترجمه** : رسول الله ﷺ وفرمايل: نه خو زه تاسو ته د خپل طرفه څه درکوم او نه مو منع کوم، زه خو صرف يو تقسيم کونکی يم، چيرته چې مونږ ته د الله پاك حکم کيږي هلته يې ږدم.

د استخارې په دعا کې رسول الله ﷺ ددې دعا تعليم ورکړی دی!

۵: ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ، وَلَا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ، وَلَا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴾[4]

**ترجمه** : اې الله! زه ستا د علم په واسطه ستا نه خير غواړم، ستا د قدرت په واسطه ستا نه طلب د قدرت کوم، ستا په لوی فضل ستا نه سوال کوم، بېشکه ته قدرت لرې او زه قدرت نه لرم، تاته علم دی او ماته علم نشته او ته علام الغيوب ذات يې.

---

[1] النسائي (صحيح)

[2] المستدرك للحاكم ۱/۵۲۵ (صحيح)

[3] بخاري كذا فى مشكوة المصابيح رزق الولاة : ۳۲۵

[4] بخارى كذا فى مشكوة المصابيح باب التطوع : ۱۱٦ و ابوداؤد

۶: ﴿ وَاعْلَمْ أَنَّ الأُمَّةَ لَوِ اجْتَمَعَتْ عَلَى أَنْ يَنْفَعُوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَنْفَعُوكَ إِلاَّ بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللَّهُ لَكَ وَلَوِ اجْتَمَعُوا عَلَى أَنْ يَضُرُّوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَضُرُّوكَ إِلاَّ بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَيْكَ ﴾[1]

**ترجمه** : او پوه شه! که دا ټول خلک راجمع شي، چې تا ته څه ګټه ورسوي: نو نه شي درکولی سېوا د هغې نه چې الله پاك ستا په تقدير کې ليکلې دي او که دا ټول خلک تا ته په تاوان رسولو باندې راجمع شي: نو تا ته هيڅ نقصان نه شي در رسولی. سېوا د هغې نه چې کوم الله پاك ستا لپاره مقدر کړی وي

## د علماء کرامو اتفاقي فيصله

علامه انور شاه کشميري د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله قول نقل کوي!

۱: ﴿ أن الأنبياء عليهم السلام لا يملكون شيئاً حال حياتهم كما أنهم لا ملك لهم بعد وفاتهم، واستُدِلَّ عليه بهذا الحديث، وقال: «إنه قاسم لا غير ولا ملك له أصلاً» ﴾[2]

**ترجمه** : بېشکه انبياء عليهم السلام په خپل ژوند کې هم د څه شي اختيار نه لري. لکه څنګه چې د هغوی د وفات نه وروسته هم د هغوی څه اختيار نشته او هغوی (ابن تيميه) هم ددې حديث ﴿ انما انا قاسم ﴾ څخه دليل نيولی، وايي: چې رسول الله ﷺ صرف تقسيم کونکی دی، خپل ملکيت او اختيار د هغوی نشته.

د امام فخر الدين رازي په زمانه کې دا عقيده نه وه.

۲: ﴿ اعلم أنه ليس في العالم أحد يثبت لله شريكاً يساويه في الوجود والقدرة والعلم والحكمة وهذا مما لم يوجد إلى الآن ﴾[3]

**ترجمه** : پوه شه! چې په ټوله نړۍ کې يو سړی هم نشته، چې د الله پاك سره داسې شريك ومني چې د هغه سره په وجود، قدرت، علم او حکمت کې برابر وي او داسې عقيده تر دې وخته پورې وجود نه لري.

د علامه شعراني رحمه الله فيصله :

---

[1] ترمذي (صحيح)
[2] فيض الباري : ۱/۱۷۱
[3] تفسير کبير ۲/۱۱۲، تحت هذه الاية فلا تجعلوا لله اندادا.

۳: ﴿ ونحن نعلم ان الشارع هو الله تعالى .... فانه صلى عليه وسلم مبلغ عن الله احكامه فيما اراد الله تعالى لا ينطق قط عن هوى نفسه ولا ينسى شيئا فما امر بتبليغه ان هو الا وحي يوحى ﴾ (۱)

**ترجمه** : مونږ ددې خبرې اعتقاد ساتو: چې شارع خو الله پاك دى، رسول الله ﷺ خو د الله پاك د هغه حكمونو رسونكى وو د څه په اړه چې هغه ته حكم شوى وو، هغه خبره به يې كوله چې هغه به صرف وحي وه.

۴: ﴿ الحاكم لا خلاف في انه الله رب العلمين ﴾ (۲)

**ترجمه** : پديكې هيڅ اختلاف نشته، چې حكم كونكى صرف د الله پاك ذات دى.

د شاه عبدالعزيز دهلوي فيصله:

۵: مذهب صحيح آنست كه امر تشريع مفوض به پيغمبر نمى باشد زيرا كه منصب پيغمبرى منصب رسالت ويكى گريست زنيابست خدا او نه شركت در كار خانه خدائى انچه خدائى تعالى حلال وحرام فرمايد آن را رسول تبليغ مى كند وپس از طرف خود اختيارى ندارد.

**ترجمه** صحيح مذهب دا دى: چې د شريعت جوړولو امر چا ته هم نه دى سپارل شوى، ځكه چې د پيغمبرى منصب د رسالت او پيغام رسولو منصب دى، نه دا چې د الله پاك نيابت او نه د الله پاك په كارخانه كې شركت، څه چې هم الله پاك حلال او حرام كړي دي، نبى هم د هغې تبليغ كوي او د خپل له طرفه هيڅ اختيار نه لري.

## پنځمه عقيده: د غير الله نه مرسته غوښتل

د الله پاك نه علاوه د بل چا نه د خپل ضرورت پوره كول او دا عقيده ساتل چې زما مشكلات به لري شي، حال دا چې د اسلام تعليم خو دا دى چې د الله پاك نه سېوا څوك هم مشكل حل كونكى نشته، صرف هم د هغه نه دعا او مرسته غوښتل پكار دي، هم دې ته توحيد ويل كيږي.

---

(۱) اليواقيت والجواهر : ۲/۴۳

(۲) تحري : ۲/۲۹

پدې سلسله کې احمد رضا خان لیکي:

د اولیاؤ نه مرسته غوښتل، هغوی رابلل او هغوی سره توسل کول مشروع امر او مرغوب شی دی، ددې څخه څوک انکار نه کوي مګر د انصاف نه لرې سوی او یا هر هغه څوک چې دشمن وي. (١)

په بل ځای کې لیکي:

د انبیاؤ، مرسلینو، اولیاؤ او صالحینو عالمانو نه د هغوی د وفات نه وروسته هم استقامت او مرسته غوښتل جائز دي. اولیاء د وفات نه وروسته هم په دنیا کې تصرف کوي. (٢)

همدغه شان په یو بل ځای کې لیکي چې:

رسول الله ﷺ په هر مصیبت کې په کار راځي. رسول الله ﷺ بهترین ورکړه کونکی دی، په عاجزئ او تذلل سره حضور(ﷺ) ته آواز کوئ حضور(ﷺ) د مصیبتونو څخه پناه ده. (٣)

همدغه شان لیکي:

سیدنا جبرئیل علیه السلام حاجت روا دی او دا چې رسول الله ﷺ مشکل کشا او دافع البلاء دی، پدیکې د چا شك کیدی شي!؟ هغه خو د جبرئیل علیه السلام هم حاجت روا دی. (٤)

صرف رسول الله ﷺ حاجت روا نه، بلکې ورسره سیدنا علي رضی الله عنه او شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله وغیره، د ډیرو اولیاؤ په اړه دا عقیده لرل لازم دي. (٥)

**جواب** : د دې په مقابل کې بل طرفته قرآني تعلیمات، نبوي ارشادات او د امت اجماع پدې باندې دلالت کوي: چې په مصیبت کې صرف الله پاك ته آواز کول

---

(١) الامن والعلی ص: ٢٩ (احمد رضا بریلوی)

(٢) رسالة حیاة الموات وفتاوی رضویه ٤/٣٧٠ (احمد رضا بریلوی)

(٣) الامن والعلی : ص ٩٢

(٤) ملفوظات : ٩٩

(٥) ملفوظات : ٩٩، الامن والعلی : ١٣، جاء الحق : ٢١٠، مفتی احمد یار، حدائق بخشش : ١٨٦، انوار الانبياء فی حل نداء یا رسول الله مندرج در مجموعة رسائل رضویه : ١/١٨٠، وحیات الممات از بریلوی درج در فتاوی رضویه ٤/٣٠٠، وفتاوی افریقیه از بریلوی : ص ١٣٥ وغیره.

پکار دي او هم د هغه نه مرسته غوښتل پکار دي، د هغه نه علاوه څوك هم د مصيبت لرې کونکی نشته.

۱: ﴿ قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُونِ اللهِ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِنْ شِرْكٍ ﴾ (۱)

**ترجمه**: تاسو اوفرمايئ: راوبلئ هغه څوك چه تاسو ئې (معبودان) ګنړئ د الله پاك نه سوا، هغوی د ذرې برابر هم د څه اختيار په زمکه او اسمان کښې نه لرې او نه د هغوی په دې دواړو کښې څه شرکت شته او نه د هغوی نه څوك د الله پاك مددګار شته.

۲: ﴿ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَا أَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُونَ ﴾ (۲)

**ترجمه**: هغه کسان چه د الله پاك نه سوا نور رابلې هغوی د هغوی د مدد طاقت نه لرې او نه د ځان مدد کولې شي.

۳: ﴿ ذٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِنْ قِطْمِيرٍ إِنْ تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ﴾ (۳)

**ترجمه**: هم دغه الله پاك ستاسو رب دې د هغه دپاره اختيار دې، او هغه کسان چه تاسو ئې د هغه نه سوا رابلئ هغوی د کهجورې د هډوکی د پوستکی په مقدار هم د يو څيز اختيار نه لرې. که تاسو هغوی رابلئ نه نو ستاسو بلنه نه اورې، او که (بالفرض) واورې نو قبلولې ئې نه شي، او د قيامت په ورځ باندې به ستاسو د شرك نه انکار کوی. او خبر به درنه کړی تاته د خبير ذات (الله پاك) په شان هيڅ څوك.

۴: ﴿ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُمْ بِشَيْءٍ ﴾ (۴)

**ترجمه**: او هغه کسان چه دوی ئې رابلې د هغه نه سوا هغوی د دوی د هيڅ څيز قبولوالې نه شي کولې.

۵: ﴿ قُلْ أَفَاتَّخَذْتُمْ مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ لَا يَمْلِكُونَ لِأَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا ﴾ (۵)

---

[۱] سبا: ۲۲
[۲] الاعراف: ۱۹۷
[۳] فاطر: ۱۳، ۱٤
[٤] رعد: ۱٤
[٥] سورة رعد: آيت ۱٦

**ترجمه** : تاسو اوفرمایئ : ایا تاسو د الله پاك نه سوا نور معبودان نیولی دی چه د ځان دپاره هم د فائدې او ضرر اختیار نه لری.

۶: ﴿ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ ﴾ (۱)

**ترجمه** : او څوك دې زیات ګمراه د هغه چا نه چه د الله پاك نه سوا هغه څوك رابلی کوم چه ترقیامته پورې د هغه قبولوالې نه شی کولې او هغوی د دوی د بلنې نه ناخبره دی.

۷: ﴿ قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ اِنْ اَرَادَنِيَ اللهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ ضُرِّهٖٓ اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ ﴾ (۲)

**ترجمه** : تاسو ووایی: ما ته خبر راکړئ چه کوم معبودان تاسو د الله پاك نه سوا رابلئ که چرته الله پاك ماته د ضرر اراده کړې وی نو ایا دی هغوی دفع کونکې ضرر د هغه لره او یا اراده اوکړی د رحمت او مهربانئ نو ایا دی هغوی بندونکې رحمت د هغه لره.

## د غیر الله نه د مرستې غوښتلو بدې په احادیثوکې

۱: ﴿ عن ابنِ عباسٍ رضی الله عنهما ، قَالَ : كنتُ خلف النَّبيّ - صلى الله عليه وسلم - يوماً ، فَقَالَ : يَا غُلامُ ، إِنِّي أُعلِّمُكَ كَلِمَاتٍ : احْفَظِ اللهَ يَحْفَظْكَ ، احْفَظِ اللهَ تَجِدْهُ تُجَاهَكَ ، إِذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللهَ ، وإِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ باللهِ الى اخر الحديث ﴾ (۳)

**ترجمه** : سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي: چې زه یوه ورځ په رسول الله ﷺ پسې شاته ناست وم؛ نو وې فرمایل: اې هلکه! زه تاته څه کلمات در ښیم، دا یاد کړه الله پاك به ستا حفاظت کوي، ته د الله پاك (د احکاماتو) حفاظت کوه! ته به هغه خپلې مخې ته (مددګار) بیا مومې، کله چې غوښتنه کوې؛ نو د الله پاك نه یې غواړه، کله چې مرسته غواړې؛ نو د الله پاك نه یې غواړه.

۲: ﴿ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فِي غَزَاةٍ فَلَقِيَ

(۱) سورة الاحقاف :آیت ۵
(۲) سورة الزمر :آیت ۳۸
(۳) ترمذی واحمد (صحیح)

الْعَدُوُّ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ : يَا مَالِكَ يَوْمِ الدِّينِ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ قَالَ فَلَقَدْ رَأَيْتُ الرِّجَالَ تُصْرَعُ تَضْرِبُهَا الْمَلَائِكَةُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهَا وَمِنْ خَلْفِهَا ﴾ (۱)

**ترجمه**: سیدنا ابو طلحه ﷺ فرمایي: چې رسول الله ﷺ سره مونږ په یو جنګ کې شریك وو، د رسول الله ﷺ مخې ته دشمن راغی، ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل، هغوی وفرمایل: اې د جزاء د ورځې مالکه! مونږ خاص ستا عبادت کوو او خاص هم ستا نه مرسته غواړو، ما خلک ولیدل چې خلکو منډې وهلې او فرشتو هغوی د شا نه وهل.

## د علماء کرامو اتفاقي فیصله

۱: د امام ابو حنیفه رحمه الله فیصله :

امام صاحب یو سړی ولید: چې هغه به د بزرګانو قبرونو ته تلی، هغوی ته به یې خبرې کولې او اوریدلې به یې: او خلکو ته به یې ویل: چې آیا تاسو ته علم شته چې زه تاسو ته د څو ورځو نه راځم، دا ددې لپاره چې تاسو زما لپاره دعا وکړئ، پدې باندې امام ابو حنیفه رحمه الله خبر شو هغه وفرمایل:

﴿ هل أجابوا لك؛ قال: لا! فقال: سحقا لك، وتربت يداك!؛ كيف تكلم أجسادا لا يستطيعون جوابا، ولا يملكون شيئا ﴾ (۲)

**ترجمه** : آیا هغوی تاته جواب درکړ؟ هغه جواب ورکړ: نه! نو امام صاحب رحمه الله وفرمایل: هلاك شې، لاسونه دې په خاورو ککړ شه! ته څنګه د هغه بدنونو سره خبرې کوې چې د جواب طاقت نه لري او د هیڅ شي مالکان نه دي.

۲: د شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله فیصله : شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله د وفات په وخت خپل ځوی عبدالوهاب ته د وصیت په ډول وفرمایل:

﴿ عليك بتقوى الله وطاعته ولا تخف احدا ولا ترجه وكل الحوائج الى الله عزوجل واطلبها منه ولا تثق باحد سوا الله عزوجل ولا تعتمد الا عليه سبحانه التوحيد التوحيد التوحيد ﴾ (۳)

---

(۱) تفسیر در منثور : ۱/۱۴ ... اخرجه الطبرانی باسناد ضعیف
(۲) صیانة الانسان بحوالة براهین : ۲۲۳/۱،
(۳) ملفوظات مع فتح الربانی ص : ۶۶۵

**ترجمه** : په تا باندې د الله پاك ویره او د هغه طاعت لازم دی. د الله پاك نه سېوا د چا ویره هم په زړه کې مه ساته. مه د الله پاك نه سېوا د چا نه امید ساته. خپل ټول حاجتونه الله پاك ته وسپاره، هم د هغه نه خپل ضرورتونه غواړه. د الله پاك نه سېوا په چا باندې هم اعتماد مه ساته. چې اعتماد ساتې صرف د الله پاك په ذات یې ساته، د هغه ذات د ټولو عیبونو څخه پاك دی، ګوره! توحید. توحید. توحید یعني صرف هم هغه یو ذات ومنه. صرف هم هغه یو ذات ومنه. صرف هم هغه یو ذات ومنه، او په هغه باندې اعتماد ساته».

## شپږمه عقیده: په ۱۲ ربیع الاول باندې عید میلاد النبي لمانځل

پدې اړه مفتي احمد یار لیکي:

میلاد د ملایکو سنت دی، ددېنه شیطان تښتي. [1]

په بل ځای کې لیکي:

میلاد شریف د قرآن، حدیث، ملایکو او پیغمبرانو څخه ثابت دی. [2]

په یو بل ځای کې لیکي:

د میلاد شریف محفل جوړول او د پیدایش خوشحالي لمانځل. ددې د ذکر پر مهال خوشبویي لګول، د ګلاب اوبه شندل، شیریني تقسیمول، غرض دا چې د خوشحالی اظهار کوم چې په جائزې طریقې سره وي، مستحب دی او د برکت باعث دی، نن هم عیسایان پدې وجه لمانځي چې په هغه ورځ دسترخوان نازل شوی وو، د رسول الله ﷺ تشریف راوړل ددې فایدې څخه زیات نعمت دی، لهذا د هغوی د پیدایش ورځ هم د اختر ورځ ده. [3]

**جواب** : خو د شریعت نه ددې منع معلومیږي.

او د تاریخ نه معلومیږي چې د عید میلاد النبي رواج په قرون ثلاثه کې نه وو،

---

[1]) جاء الحق : ۱/۲۲۳

[2]) جاء الحق : ۱/۲۲۳

[3]) جاء الحق : ۱/۲۳۱

د ټولو نه اول دېته مظفر الدين بادشاه رواج ورکړی، دا د اوومې هجري صدی يو لوی بدعتي بادشاه وو. [1]

او عمر بن دحيه په نوم سړي د هغه ښه ملګرتيا وکړه. [2]

دعمر بن دحيه په باره کې امام ابن کثير رحمه الله فرمايي: چې دا دروغژن سړی وو، خلکو د هغه په روايت باندې اعتماد کول پرې ايښي وو او هغه يې ډير ذليله کړی وو. [3]

هر کله چې د مستندو حوالو نه دا خبره ثابته شوه، چې دا د عيد ميلاد النبی ﷺ لمانځل د اوومې هجري صدی څخه شروع شوی؛ نو اوس دا د قرآن او حديث يا صحابه کرامو، تابعينو او تبع تابعينو او مجتهدينو امامانو د اقوالو څخه نشي ثابتيدلی، ځکه چې د هغوی په زمانه کې دا موجود نه وو.

او دومره ضرور ويل کيدی شي چې!

﴿ مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ ﴾ [4]

**ترجمه** : چا چې د دين په معامله کې يو نوی شی ايجاد کړ. چې په هغې کې داخل نه وو، هغه به رد کولی شي.

همدغه شان په يو بل روايت کې راځي.

﴿ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ ﴾ [5]

**ترجمه** : په دين کې د نوي نوي رسمونو څخه ځان ساتی! ځکه چې هر نوی رسم بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده.

## اوومه عقيده: د درود او سلام پر مهال دريدل

د درود او سلام پر مهال د دريدلو په اړه د بريلوي مسلك مشهور عالم عبدالسميع بريلوي ليکي چې:

[1] القول المعتمد فی عمل المولد (مصنف احمد بن محمد مصری)
[2] البداية والنهاية ۱۳/۱٤٤
[3] البداية والنهاية ۱۳/۱٤٥
[4] بخاري ومسلم وكذا فی المشكوة : ۲۷
[5] مسند احمد وابوداؤد وترمذی وابن ماجة وكذا فی المشكوة : ۳۰

چې د میلاد شریف د ذکر په وخت دریدل فرض دي.[1]

په دریدو کې دا عقیده وي چې رسول اللهﷺ تشریف راوړي. لکه پدې شعر کې چې ویل شوي!

اردو شعر: دم بدم پڑھو درود حضور بھی ہیں یہاں موجود

ترجمه: هر مهال درود وایه، نبی کریم صلی الله علیه وسلم دلته شتون لري.

**جواب** : دې باره کې د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي: چې دا عمل او عقیده د صحابه کرامو، تابعینو او په مجتهدینو امامانو کې د چا هم نه وه. ثابت په پوره تاریخ اسلام کې دا قسم عمل یا عقیده د چا نه هم نقل نه ده.

او کومه طریقه چې داسې وي چې هغه ثابته نه وي او هغه دین ګڼل کیږي؛ نو د همدې نوم بدعت دی، چې د هغې په اړه د رسول اللهﷺ وینا ده:

۱: ﴿ مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ ﴾[2]

**ترجمه** : چا چې د دین په معامله کې یو نوی شی ایجاد کړ، چې په هغې کې داخل نه وي، هغه به رد کولی شي.

۲: همدغه شان په بل روایت کې دي:

﴿ وَشَرُّ الأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا، وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلالَةٌ ﴾[3]

**ترجمه** : بد ترین عمل هغه نوي شیان (عبادت) دي، چې خپله جوړ کړی شي، دا نوي جوړ شوي شیان ګمراهي ده.

۳: سیدنا حذیفهؓ فرمايي:

﴿ كل عبادة لم يتعبدها أصحابُ رسول الله صلى الله عليه وسلم، فلا تتعبدوها، وخذوا بطريق من كان قبلكم ﴾

---

[1] الانوار الساطعه (عبد السمیع بریلوي) ص ۲۵۰

[2] بخاري و مسلم وكذا فى المشكوة : ۲۷

[3] مسلم كذا فى المشكوة : ۳۰

**ترجمه** : هر هغه عبادت چې صحابه کرامو ﷺ نه دی کړی؛ نو هغه مه کوی. د هغه چا لاره ونیسی چې ستاسو نه مخکې وو.

د رسول الله ﷺ داسې مجلس ته تشریف راوړل دا هم د هیڅ حدیث څخه ثابت نه دي، دا په رسول الله ﷺ باندې بهتان دی. په حدیث کې خو دومره ثابت دي چې:

《مَنْ صَلَّى عَلَيَّ عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ، وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ》[1]

**ترجمه** : څوک چې زما د قبر په خوا کې درود او سلام لولي. زه هغه خپله اورم او څوک چې يې د لرې نه رالیږي؛ نو هغه ماته رارسول کیږي.

## اتمه عقیده: قبرونه پخول او په هغې باندې گنبد جوړول

پدې اړه مفتي احمد يار گجراتي صاحب ليکي:

د صاحب قبر د قدرداني لپاره قبه وغيره جوړول شرعا جائز دي.[2]

خپله احمد رضا خان بريلوي صاحب ليکي:

په قبرونو باندې د گنبدې وغيره تعمير پدې وجه ضروري دی. چې مزارات طيبه د عامو قبرونو څخه ممتاز وي اود عوامو په زړونو کې هيبت او عظمت پيدا شي.[3]

په بل ځای کې ليکي چې:

مزاراتو ته د اولياء کرامو روحونه حاضريږي.[4]

**جواب** : ددې خلاف په شريعت کې د قبرونو د پخولو او په هغې باندې د گنبدو جوړولو څخه په سختئ سره منع راغلې. مثلا:

۱: 《نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ》[5]

۲: 《نَهَى رسول الله صلى الله عليه وسلم أَنْ يُبْنَى عَلَى الْقُبُورِ، أَوْ يُقْعَدَ عَلَيْهَا، أَوْ يُصَلَّى عَلَيْهَا》[6]

---

[1] مشکوة : ۸۷

[2] جاء الحق ص ۲۸۲ (مفتی احمد یار)

[3] احکام شریعت : ۱/۷۱

[4] احکام شریعت : ۱/۷۱

[5] مسلم، مسند احمد، ۸/۷۸، وسنن الترمذی: ۱/۱۲۵، وابوداؤد، محلی ابن حزم: ۵/۱۳۳، السنن الکبری: ٤/٤

[6] مجمع الزوائد: ۳/۶۱، مسند ابی یعلی : ۲/۶

**ترجمه** : رسول الله ﷺ په قبرونو باندې د آبادۍ کولو. او په هغې باندې د کيناستلو او د لمونځ کولو څخه منع کړې ده.

۲: ﴿نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبْنَى عَلَى الْقَبْرِ، أَوْ يُجَصَّصَ﴾ (۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ په قبر باندې د آبادۍ کولو او قبرونو لره د پخولو څخه منع کړې ده.

## د څلورو امامانو په نزد بالاتفاق قبرونه پخول منع دي

د امام شافعي رحمه الله فتوى:

امام شافعي رحمه الله په کتاب الام کې فرمايي:

﴿لا يُبْنَى وَلا يُجَصَّصَ فإن ذلك يُشْبِهُ الزِّينَةَ وَالْخُيَلاءَ وَلَيْسَ الْمَوْتُ مَوْضِعَ وَاحِدٍ مِنْهُمَا﴾ (۲)

**ترجمه** : په قبر باندې به نه آبادي جوړولی شي او نه به يې پخولی شي. ځکه چې دا خو ډول دی او د متکبرينو د عادت سره مشابهت دی او مرګ پدې دوارو کې د يو ځای هم نه دی.

## د امام مالک او امام احمد رحمهما الله فتوى:

په المجموع شرح المهذب کې دي: په قبرونو باندې آبادي او ليکل ناجائز دي، پديکې د امام مالك، امام احمد، داؤد ظاهري او جمهورو علماء کرامو اتفاق دی. (۳)

د امام ابو حنيفه رحمه الله فتوى:

امام محمد رحمه الله ليکي چې امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي: ما ته زما استاذ دا حديث بيان کړی:

﴿يرفعه إلى النبي صلى الله عليه وسلم أنه: نهى عن تربيع القبور وتجصيصها﴾ (۴)

---

(۱) مسند احمد بترتيب الفتح الرباني : ۸/۷۸

(۲) کتاب الام : ۲/۲۷۷

(۳) المجموع شرح المهذب : ۵/۲۹۸

(۴) کتاب الاثار: ۵۲

**ترجمه** : هغوی رسول اللهﷺ ته ددې حديث سند ورسوی، چې رسول اللهﷺ د قبرونو د مربع جوړولو او د قبرونو د پخولو څخه منع کړې ده.

او همدا خبره د احنافو په ټولو فتاوی جات کې ليکل شوې ده، مثلاً: علامه ابن نجيم مصري رحمه الله په البحرالرائق کې ليکي چې:

﴿ وَلَا يُجَصَّصُ لِحَدِيثِ جَابِرٍ {نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهِ ﴾[1]

**ترجمه** : قبر به نشي پخولی، د جابر رضي الله عنه د حديث له امله کوم چې رسول اللهﷺ د قبر د پخولو، په هغې د ناستې او په هغې باندې د آبادی کولو او ليکلو څخه منع فرمايلې ده.

علامه ابن عابدين رحمه الله په رد المحتار کې فرمايي:

﴿ وأما البناء عليه فلم أر من اختار جوازه وعن أبي حنيفة يكره أن يبنى عليه بناء من بيت أو قبة أونحو ذلك لما روى جابر نهى رسول الله عن تجصيص القبور وأن يكتب عليها وأن يبنى عليها ﴾[2]

**ترجمه** : ما څوك هم ندي ليدلي، چې هغه په قبر باندې آبادي خوښه کړي، د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی چې: په قبر باندې آبادي کول مکروه دي. که کوټه وي او که گنبده وي. يا ددې په شان بله کومه آبادي وي، ځکه چې د سيدنا جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ د قبرونو د پخولو، په هغې باندې د ليکلو او په هغې باندې د آبادی جوړولو څخه منع کړې ده.

په فتاوی عالمگيري کې دي:

﴿ وَلَا يُرَبَّعُ وَلَا يُجَصَّصُ وَيُكْرَهُ أَنْ يُبْنَى عَلَى الْقَبْرِ أَوْ يُقْعَدَ أَوْ يُنَامَ عَلَيْهِ وَيُكْرَهُ أَنْ يُبْنَى عَلَى الْقَبْرِ مَسْجِدًا أَوْ غَيْرَهُ ﴾[3]

**ترجمه** : قبر به نه مربع جوړولی شي، نه به پوخ جوړولی شي، په قبر آبادي کول، په قبر

---

[1]) البحرالرائق ج۲ ص۲۰۹

[2]) رد المحتار ۱/۶۰۱

[3]) عالمگيري : ۱/۱۶۶

باندې کیناستل او په قبر ویده کیدل مکروه دي، په قبر باندې جومات جوړول، یا د هغې نه بغیر څه آبادي کول مکروه دي.

علامه ابن عابدین شامي رحمه الله په فتاوی شامي کې لیکي:

﴿ وأما البناء علیه فلم أر من اختار جوازه ﴾.[۱]

**ترجمه** : ماته نده معلومه چې چا آبادي جوړول غوره ګڼلې وي.

## په قبرونو باندې شمعې بلول

دې باره کې مولانا احمد رضا خان بریلوي لیکي:

د بزرګانو په قبرونو باندې د تعظیم لپاره شمعې بلول جائز دي. چې خلکو ته علم وشي دا د کوم بزرګ قبر دی او هغوی د هغې نه تبرک حاصل کړي.[۲]

همدغه شان مفتي احمد یار ګجراتي لیکي:

که د یو ولي قبر وي؛ نو د هغه د روح د تعظیم او خلکو ته د ښودلو لپاره چې دا د ولي قبر دی، چې خلک د هغه څخه برکت حاصل کړي. شمعې بلول جائز دي.[۳]

**جواب** : ددې خلاف که په احادیثو کې وکتل شي: نو رسول الله ﷺ په قبرونو باندې د شمعو د بلولو څخه منع فرمایلې ده، بلکې په شمعې بلونکي یې لعنت ویلی دی!

په حدیث شریف کې دي!

﴿ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - زَائِرَاتِ الْقُبُورِ، وَالْمُتَّخِذِينَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ ﴾.[۴]

**ترجمه** : رسول الله ﷺ لعنت ویلی: د قبرونو په زیارت کونکو ښځو. او په هغو باندې جوماتونو جوړونکو او په هغې باندې شمعې بلونکو باندې.

په مرقاة شرح مشکوة کې ملا علي قاري رحمه الله فرمایي:

---

[۱]) شامي : ۱۰۱، د زیات تحقیق لپاره د لاندې کتابونو حوالې وګورۍ، عبارت د اورد والې له امله حذف کړی شو، ۱: فتاوی سراجیه: ۲۴، فتاوی قاضی خان ۱/۹۲، ٤: فتح القدیر شرح هدایة : ٤/٤٧٢، ٤: مرقاة شرح مشکاة : ١/٢٤٦، ٥: بدائع الصنائع ١/٣٢٠، ٦: فتاوی دار العلوم دیوبند : ١/٩٢، المفق : ٢/٣٧٨

[۲]) فتاوی رضویه : ٤/١٤٤

[۳]) جاء الحق : ۳۰۰

[۴]) مشکوة : ۷۱، (ضعیف)

﴿ وَالنَّهْيُ عَنِ اتِّخَاذِ السُّرُجِ لِمَا فِيهِ مِنْ تَضْيِيعِ الْمَالِ، لِأَنَّهُ لَا نَفْعَ لِأَحَدٍ مِنَ السِّرَاجِ، وَلِأَنَّهَا مِنْ آثَارِ جَهَنَّمَ، وَإِمَّا لِلِاحْتِرَازِ عَنْ تَعْظِيمِ الْقُبُورِ، كَالنَّهْيِ عَنِ اتِّخَاذِ الْقُبُورِ مَسَاجِدَ ﴾[1]

**ترجمه** : په قبرونو باندې د شمعې بلولو ممانعت یا خو پدې وجه دی. چې پدیکې د مال ضایع کول دي، ځکه چې ددېنه چا ته هم ګټه نه رسیږي. ځکه چې اور خو د جهنم د آثارو څخه دی، یا دا ممانعت د قبرونو د تعظیم نه د بچ کولو لپاره دی، لکه چې د قبرونو څخه د سجده ګاه جوړولو نه ممانعت د همدې وجې دی.

په فتاوی بزازیه کې دي:

په قبرستان کې شمعې بلول بدعت دي، ددې هیڅ اصل نشته.

په در مختار کې دي:

هغه نذر او نیاز چې د عوامو له طرفه په قبرونو باندې شمعې بلولی شي. که هغه د نقدو په صورت کې وي یا د تیلو په صورت کې، بالاجماع باطل او حرام دي.[2]

په فتاوی عالمګیري کې دي:

﴿ وَإِيقَادُ النَّارِ عَلَى الْقُبُورِ فَمِنْ رُسُومِ الْجَاهِلِيَّةِ ﴾[3]

یعنې په قبرونو باندې رڼا کول د جاهلیت د رسمونو څخه دي.

په روح المعانی کې دي:

د قبرونو نه د شمعو لرې کول ضروري دي، داسې یو نذر هم جائز نه دی.[4]

## لسمه عقیده: دریمه، لسمه، شلمه، څلويښتي او کال کول

پدې سلسله کې د انوار ساطعه وغیره نه معلومیږي چې د مرګ نه وروسته د هغه دریمه، لسمه، شلمه، څلویښتي وغیره کول ضروري دي.

**جواب** : ددې خلاف په پاکیزه شریعت کې ددېنه په سختۍ سره منع راغلې، ظاهره ده

[1]) مرقاة المفاتیح : ج۱ ص۴۷۰
[2]) در مختار : ۲/۱۳۹
[3]) فتاوی عالمګیریه ج۱ ص۱۷۸
[4]) روح المعانی : ۱۵/۲۱۹

چې دا رسم په اولني دور کې نه وو، پدې وجه په قرآن او حدیث کې ددې موضوع یاد نشته، وروسته علماء حق ددې رد وکړ!

محقق عالم علامه نووي رحمه الله په شرح منهاج کې فرمایي:

﴿ الاجتماع على مقبرة في اليوم الثالث وتقسيم الورد والعود والطعام في الايام المخصوصة كالثالث والخامس والتاسع والعاشر والعشرين والاربعين والشهر السادس والسنة بدعة ممنوعة ﴾[1]

**ترجمه** : په قبر باندې په دریمه ورځ اجتماع کول، ګلاب او شمعې بلول. په خاصو ورځو کې ډوډۍ وېشل. مثلا: دریمه، پنځمه. نهمه. لسمه. شلمه، او څلوېښتمه ورځ او شپږمه میاشت او د کال نه وروسته دا ټول کارونه بدعت او منع دي.

ملا علي قاري حنفي رحمه الله فرمایي:

﴿ قَرَّرَهُ أَصْحَابُ مَذْهَبِنَا مِنْ أَنَّهُ يُكْرَهُ اتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ أَوِ الثَّالِثِ، أَوْ بَعْدَ الْأُسْبُوعِ ﴾[2]

**ترجمه** : زمونږ د مذهب فقهاء کرامو دا خبره ثابته کړې، چې په اوله ورځ. دریمه او هفته پس ډوډۍ تیارول مکروه دي.

علامه قاضي ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمایي:

بعد مردن من رسوم دنیوی مثل دهم وبستم، ششماهی وبرسینی هیچ نکنند که رسول الله ﷺ زیاده از سه روز ماتم کردن جائز نداشته اند وحرام ساخته اند.[3]

**ترجمه** : زما د مرګ نه وروسته به دنیوي رسمونه لکه. لسمه. شلمه. شپږ میاشتې او کال ونکړی شي، ځکه چې رسول الله ﷺ د درې ورځو څخه زیات غم کول نه دي جائز کړي، بلکې دا یې حرام ګڼلي دي.

علامه شامي د فتاوی بزازیه نه نقل کوي:

د اولې ورځې، د دریمې ورځې او هفته وروسته ډوډۍ تیارول مکروه ده، د ختم پر مهال د قبر طرفته خوراك وړل، د قرآن د تلاوت دپر مهال د دعوت اهتمام

---

(1) شرح منهاج

(2) مرقاة الفاتيح : ۵/۴۸۲

(3) ما لا بُدَّ منه : ص ۱۶۰

کول، د ختم لپاره يا د سورة انعام يا د سورة اخلاص تلاوت کولو لپاره بزرګان يا قاريان جمع کول.

مولانا سرفراز خان صفدر صاحب د تحفة الهند په حوالې سره ليکي: چې دا د هندوانو رسم دی، ځکه چې د برهمن د مرګ نه وروسته په يولسمه ورځ او د کهتري د مرګ نه پس په دېارلسمه ورځ او د وېش نه پس پنځلسمه يا شپاړسمه ورځ او د شودر يعنې د بالاهي وغيره (دا د هندوانو د خپلو رواجونو نومونه دي) د مرګ په دېرشمه ورځ يا يو دېرشمه ورځ ده. يو ددې ټولو نه شپږ مياشتې وروسته دی، يعنې د مرګ نه پس او هم ددېنه د کليزې ورځ ده او يوه ورځ په غوا هم خوراك کوي، هم ددېنه ددې مياشتې په نصف اول کې هر کال خپلو بزرګانو ته ثواب رسوي: خو په کوم تاريخ کې چې څوك مړه شي، هم په هغه ورځ باندې ثواب ور رسول ضروري ګڼي، د خوراك د ثواب ور رسولو نوم سرادهـ دی، کله چې به د سرادهـ خوراك تيار شو: نو په اول باندې پنډت راغواړي او څه منتر وايي، چې پنډت پدې خوراك څه وايي؛ نو هغه د هغوی په ژبه کې بهشرمن بلل کيږي او هم دغه شان دغه ورځ هم ټاکلې ورځ ده. (١)

## يوولسمه عقيده: په خوراك باندې ختم کول

پدې اړه مفتي احمد يار خان ليکي چې:

د دعا په کولو سره خوراک کې څه خرابي راځي؟ همدغه شان د قبر مخې ته دريدلو سره دعا کوی. (٢)

همدغه شان مولوي احمد رضا خان ليکي:

د فاتحه لوستلو په وخت د قاري مقصد اګر چې خوراك کول نه دي؛ خو په دې سبب سره په ايصال ثواب يا جواز فاتحه کې هيڅ نقصان نه راځي. (٣)

**الجواب** : خو په شريعت مطهره کې ددې هيڅ اصل په نظر نه راځي، پديکې خو

---

(١) بحواله ما بسنت: ص ٩١

(٢) جاء الحق : ٢٥٤

(٣) الحجة الفاتحة : ١٦

د ټولو اتفاق دی چې دا په خیر القرون کې نه وو، پدې وجه ددېنه قران او حدیث خالي دی؛ خو اسلافو ددې رسم بد ویلي، مثلا:

فتاوی سمرقندیه کې دي:

﴿ قراءة الفاتحة والاخلاص والكافرون على الطعام بدعةٌ ﴾[1]

**ترجمه** : د سورة فاتحه، سورة اخلاص او سورة کافرون په خوراك باندې لوستل بدعت دي.

خپله بریلوي عالم مولوي محمد صالح په تحفة الاحباب کې لیکي:

خوراك مخامخ کېښودل او په هغې باندې څه لوستل دا د هندوانو رسم دی. دا په کوم اسلامي ملك کې هم نه دي رواج.[2]

## دولسمه عقیده: د جنازې نه وروسته د دعا اهتمام کول

پدې سلسله کې مولانا عمر لیکي چې:

احناف د جنازې نه وروسته دعا غواړي. وهابیان یې بده ګڼي. دیوبندیان هم منکر دي، اوس ته فیصله وکړه چې ته د دعا انکار کوې؛ نو ته څوك یې؟[3]

**جواب** : ددې په خلاف که شریعت مطهره ته وکتل شي: نو پدیکې ددې ثبوت نه ملاویږي، رسول الله ﷺ. صحابه کرامو ﷺ، تابعینو. تبع تابعینو ﷺ یو دوه نه په زرګونو جنازې کړې دي؛ خو په هغوی کې یو هم د جنازې نه وروسته اجتماعي دعا نه ده غوښتې، هم پدې وجه احنافو فقهاؤ داسې دعا ته خلاف سنت ویلي. لکه د احنافو په فقهي کتابونو کې چې دي، مثلا:

۱: علامه ابن نُجیم مصري ﷺ په البحر الرائق کې لیکي:

﴿ لايدعوا بعد التسليمِ ﴾[4]

---

[1] فتاوی سمرقندیه بحواله الجنة : ۱۵۵
[2] تحفة الاحباب: ۱۲۲
[3] مقیاس الحنفیت : ۵۲۹
[4] البحر الرائق : ۲/۱۸۳

ترجمه : د سلام اړولو نه پس دي دعا نه کوي.

۲. ملا علي قاري په مرقاة شرح مشکوة کې فرمايي:

﴿ وَلَا يَدْعُوا لِلْمَيِّتِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الزِّيَادَةَ فِي صَلَاةِ الْجَنَازَةِ ﴾ (١)

ترجمه : د جنازې د لمانځه نه پس دي د مړي لپاره دعا نه کوي، ځکه چې دا د جنازې په لمانځه کې د زيادت مشابه دي.

۳. علامه حافظ الدين محمد بن شهاب رحمه الله په فتاوى بزازيه کې فرمايي:

﴿ ولا يقوم داعياً له ﴾ (٢)

ترجمه : د مړي په حق کې دي د دعا لپاره نه درېږي.

۴. مولانا عبدالحی لکهنوي رحمه الله په نفع المفتي والسائل کې ليکي:

د جنازې د لمانځه نه پس دعا مکروه ده. (٣)

امام طاهر بن احمد رحمه الله په خلاصة الفتاوى کې ليکي:

۵. ﴿ لا يقوم بالدعاء في قراءة القران لاجل الميت بعد صلاة الجنازة و قبلها ﴾ (٤)

ترجمه : د جنازې د لمانځه نه پس او د هغې نه مخکې دي د مړي لپاره قرآن لوستلو سره دي دعا نه کوي.

۶. علامه سراج الدين رحمه الله په فتاوى سراجيه کې فرمايي:

﴿ اذا فرغ من الصلاة لا يقوم بالدعاء ﴾ (٥)

ترجمه : کله چې د جنازې د لمانځه نه فارغ شي: نو د دعا لپاره دي نه ودرېږي.

**دیارلسمه عقیده: د رسول الله ﷺ په نوم مبارک خپلې غټې ګوتې مچوکول**

مولانا احمد رضا خان ليکي:

---

(١) مرقاة المفاتيح : ٢/٣١٩

(٢) جامع الرموز : ١/٢٥١

(٣) نفع المفتى والسائل : ٦١

(٤) خلاصة الفتاوى : ١/٢٢٥

(٥) فتاوى سراجيه : ٢٣

دې عمل ته به هم هغه څوك ناجائز وايي، څوك چې د رسول اللهﷺ د نوم په اورېدو سوځي. (۱)

په بل ځاى كې ليكي:

د ګوتو ښكلولو انكار د امت د اجماع څخه منافي دى (۲).

**الجواب** : ددې عمل ثبوت په خير القرون كې نشته. كنه نو د رسول اللهﷺ په زمانه كې به اذان كيدلو؛ نو دا څنګه ممكنه ده، چې په صحابه كرامو رضي الله عنهم كې د چا څخه هم د ا عمل نه دى روايت شوى. د همدې له امله دې عمل ته وروستنيو عالمانو ناجائز او بدعت ويلي او د كومو احاديثو څخه چې دې باره كې استدلال شوى. په هغې كې د محدثينو اتفاق دى چې هغه ټول جعلي او موضوعي دي. لكه چې امام جلال الدين سيوطي رحمه الله ليكي:

﴿الاحاديث التى رويت فى تقبيل الانامل وجعلها على العينين عند سماع اسمه صلى الله عليه وسلم من المؤذن فى كلمة الشهادة كلها موضوعات﴾

**ترجمه** : هغه احاديث چې په هغې كې د مؤذن په كلمه شهادت كې د رسول اللهﷺ د نوم اوريدلو په وخت د ګوتو ښكلولو او په سترګو باندې د اېښودلو ذكر راغلى دى، هغه ټول موضوعي او جعلي دي.

همدغه شان ملا علي قاري رحمه الله فرمايي:

﴿بسند فيه مجاهيل مع انقطاعه﴾ (۳).

ددې روايت په سند كې څو مجهول راويان دي او ددې سند هم منقطع دى.

همدغه شان امام محمد طاهر رحمه الله په تذكرة الموضوعات للفتنى كې علامه شوكاني په الفوائد المجموعة كې دېته موضوع ويلي، همدغه شان علامه سخاوي ورته په المقاصد الحسنة كې موضوع ويلي دي.

---

(۱) فتاوى رضويه : ۲/٤۹٦

(۲) فتاوى رضويه : ۲/٤۹٦

(۳) موضوعات: ص۷٥

او د سيدنا ابوبكر رضي الله عنه په باره کې چې دا خبره نقل ده:

﴿ قبل باطن الانملتين السبابتين ومسح عينيه فقال صلى الله عليه وسلم من فعل مثل ما فعل خليلي فقد حلت شفاعتي ﴾

**ترجمه** : هغوی د خپل شهادت د ګوتو داخلي برخه ښکل کړه، په سترګو باندې يې ولګوله؛ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك چې داسې عمل کوي هغه زما دوستي وکړه؛ نو زما شفاعت به د هغه لپاره واجب شي.

ددې په باره کې صاحب د تذکرة الموضوعات علامه محمد طاهر فرمايي:

﴿ ولا يصح ﴾ [1] دا روايت صحيح نه دی.

دغه شان ملا علي قاري رحمه الله هم د علامه سخاوي رحمه الله نه نقل کړي دي:

﴿ لا يصح هو ﴾ [2]

مولانا سرفراز خان صفدر صاحب فرمايي: هر کله چې دا روايت صحيح نه دی؛ نو اوس به پدې باندې عمل څنګه کولی شي. [3]

## څوارلسمه عقيده: يا رسول الله ﷺ ويل

دې باره کې خپله احمد رضا خان بريلوي صاحب ليکي:

په ناسته، ولاړه دې د مرستې لپاره يا رسول الله! وويل؛ نو بيا به په تا څه وشي؟ [4]

**جواب** : په يا رسول الله ويلو کې ډير تفصيل دی، ځينې طريقې يې جائز او ځينې يې ناجائز دي!

ببشکه رحمة للعالمين ﷺ حيات دی، چې قبر شريف سره درود او سلام لوستل کيږي؛ نو هغوی يې خپله اوري او که د لرې ځای نه درود او سلام راوليږل شي؛ نو ملايکې يې د رسول الله ﷺ په خدمت کې بالاسماء (د راليږونکي د نوم اخستلو سره)

[1] تذکرة الموضوعات : ۳٦
[2] موضوعات کبير : ۷۵
[3] راه سنت : ۲۳۹
[4] حدائق بخشش ج۲ ص۵۱

پيش کوي. رسول الله ﷺ د هغې جواب ورکوي. په حديث کې دي: ﴿ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ، وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ ﴾[1]

**ترجمه** : څوك چې زما د قبر په خوا کې درود او سلام لولي. زه هغه خپله اورم او څوك چې يې د لرې نه راليږي: نو هغه ماته رارسول کيږي[2]

په بل حديث کې دي: ﴿ ان لله ملائکة سياحين في الارض يبلغوني من امتي السّلامَ ﴾[3]

الله پاك د ملايکو يو ټولی ټاکلی چې په ځمکه کې ګرځي او زما د امت درود او سلام ماته رارسوي.

مطلب دا چې که نزدې وي او که لرې. په صحيح عقيدې سره د صلوة او سلام لوستلو په وخت که يا رسول الله ﷺ وويل شي: جائز دي: خو دا عقيده ساتل پکار ده چې د لرې نه لوستل شوی درود او سلام رسول الله ﷺ ته د ملايکو په ذريعه رسول کيږي. د الله پاك په شان دي پخپله د اوريدلو عقيده نه ساتي.

دغه شان به په التحيات کې ﴿ السلام عليك ايها النبيُّ ﴾ ويلو سره سلام رسولی شي. پديکې هيڅ شك او شبه نشته. همدغه شان د قرآن کريم لوستلو په وخت ﴿ يا أيها المزمل ﴾ د عبارت په طور لوستل کيږي، پديکې هم هيڅ ګناه نشته. دا د حاضر او ناظر دليل جوړول ناپوهي ده. دغه شان د حاضر او ناظر د عقيدې نه بغير صرف د محبت په جوش که يا رسول الله ﷺ وويل شي: نو دا هم جائز ده. کله د انتهائي محبت او سخت غم په حالت کې د حاضر او ناظر د تصور نه بغير په غائب لفظ سره ندا ويل کېدی شي: نو دا هم جائز ده. کله صرف د تخيل په طريقې سره شاعرانه او د محبت خطاب کولی شي، پديکې هم هيڅ باك نشته. (شاعران خو ديوالونه او کنډرات هم مخاطب کوي) دا يوه محاوره ده، دلته د حاضر او ناظر هيڅ عقيده نه وي: خو بغير د صلوة او سلام نه حاضر ناظر ګڼلو سره د حاجت پوره کولو لپاره په ناسته ولاړه يا

---

[1]) مشکوة : ۸۷ (ضعيف)

[2]) اختلاف امت : ۱/٤٥ کې يې وکوری.

[3]) اخرجه النسائی باسنادٍ صحيح

رسول الله! یا علي یا غوث وغیره ویل بېشکه ناجائز او منع دي.

د الله پاك ارشاد دی: ﴿ادعوني استجب لکم﴾[۱]

تاسو مانه غواړی، زما عبادت کوی، زه ستاسو نه غائب نه یم. زه ستاسو دعا اورم او ستاسو دعا او درخواست قبلوم.[۲]

په حدیث شریف کې دي:

﴿قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الذَّنْبِ أَكْبَرُ عِنْدَ اللهِ قَالَ: أَنْ تَدْعُوَ لِلهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ﴾[۳]

یو سړي د رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې کومه ګناه د الله پاك په نزد لویه ده؟ رسول اللهﷺ وفرمایل: چې د الله پاك په رابللو او د هغه په عبادت کې ته څوك شریك کړې، یعني د الله پاك په شان نور رابلې، حال دا چې الله پاك ته پیدا کړی یې.

ددې څخه دا ثابتیږي لکه څنګه چې د حاجت روایی لپاره یا الله! ویلو سره رابلې. دغه شان بل څوك راوبلې؛ نو دا لویه ګناه ده.[۴]

لهذا د کیناستلو پاڅېدلو په وخت یا د مصیبت په وخت یا الله ویلو سره خپل خالق، مالك او رازق (چې د هغه شان علی کل شئ قدیر، او بکل شئ علیم دی) رابللو سره مرسته غوښتل پکار دي او ټول حاجتونه د هغه په دربار کې پېش کول پکار دي. نه دا چې یا رسول الله، یا علي، یا غوث ویلو سره بالاستقلال، حاجتمند او مشکل کشا ګڼلو سره هغوی راوبلې او د هغوی په خدمت کې حاجتونه وړاندې کړې. دا تعلیم د اسلام خلاف دی، شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله فرمایي:

اې مخاطبه! زه تا د مخلوق په خوا کې وینم، نه د خالق سره، ته د نفس او مخلوق دواړو حق ادا کوې او د الله پاك حق ساقطوې. دا نعمتونه په کومو کې چې ته ډوب یې. تا ته چا درکړي؟ آیا د الله پاك نه سېوا بل چا درکړي دي؟[۵]

---

[۱] سورة مؤمن ایت: ۶۰
[۲] تفسیر حقاني: ۶/۱۹۱
[۳] بخاری
[۴] مشکوة، مظاهر حق: ۱/۴۱
[۵] الفتح الربانی: ص ۲۸۵

هم دغه شان هغوی فرمايي:

﴿ فلاتذهبن بهمتك الى احد من خلقه فى معافاتك فذلك اشراك منك به لا يملك معه فى ملكه احد شيئا، لاضار ولا دافع ولا جالب ولا سقم ولا مبتلى ولا معافى ولا مبرى غيره ﴾[۱]

**ترجمه** : د بلا د دفع کولو لپاره خپل همت او توجه يو مخلوق ته مه اړوه، ځکه چې دا د الله پاك سره شرك کول دي. هيڅوك هم د الله پاك سره د هغه په ملك کې د څه شي مالك نه دى. نه نقصان او فايده رسونکى. نه لرې کونکى. نه بيمار او مبتلا کونکى. نه صحت او نجات ورکونکى او نه بل څه.

او فرمايي: ﴿ فليكن لك مسئول واحد ومعطى واحد وهمة واحد وهو ربك عزوجل الذى نوصى الملوك بيده وقلوب الخلق بيده التى هى امراء الاجساد ﴾[۲].

**ترجمه** : پکار ده چې ستا مسئول (چا نه چې سوال کوې) هغه يو وي. عطاء کونکى يو وي، همت او توجه يوه وي. (ګډه وډه نه وي) او هغه ستا رب (عزوجل) دى. هغه رب چې د ټولو بادشاهانو تندي د هغه په لاس کې دي. د ټول مخلوق زړونه کوم چې د بدنونو حاکمان وي، د هغه په قبضه کې دي.

خلاصه دا چې د الله پاك نه سېوا د بل چا لپاره. که هغه نبي وي يا ولي وي. د حاضر ناظر او د حاجت روا کيدو عقيده بالکل غلطه او باطله ده او د اسلامي تعليم خلاف ده.

عليم او بصير صرف د الله پاك ذات دى. مجدد الف ثاني رحمه الله فرمايي:

حق سبحانه وتعالى بر احوال جزوى و کلى او مطلع است و حاضر و ناظر! د دېنه علاوه د بل چا تصور کولو نه شرم کول پکار دي.[۳]

﴿ على كل شئ قدير ﴾ او ﴿ بكل شئ محيط ﴾ حاضر. ناظر صرف د الله پاك صفتونه دي، په دېکې يې څوك هم شريك نشته. شاه هدايت الله نقشبندي جې پوري رحمه الله فرمايي: الله

---

[۱]) فتوح الغيب مقاله : ۵۹، ص ۱۵۰
[۲]) فتوح الغيب مقاله : ۵۸
[۳]) مکتوب : ۷۸، جلد ۱ صفحه ۱۰۰

پاك په خپل ذات. صفات او افعالو کې یواځې دی. څوك هم د هغه په ذات. صفات او افعالو کې څه شرکت نه لري.(۱)

په همدې وجه د خواجه بختیار کاکي رحمه الله استاذ سلطان العارفین قاضي حمید الدین ناګوري په توشیح کې لیکي: چې ځینې کسان دي. چې د خپلو حاجتونو او د مصیبت په وخت اولیاء او انبیاء رابلي. د هغوی عقیده دا ده: چې د هغوی ارواح موجود دي. زمونږ آواز اوري او زمونږ په ضروریاتو باندې ښه پوهیږي. دا لوی شرك او ښکاره جهالت دی او ملا حسین جناح په مفتاح القلوب کې فرمایي:

واز کلمات کفر ست نداء کردن اموات غائبانه بگمان آنکه حاضر اند مثل یا رسول الله ویا عبدالقادر ومانند ان.

**ترجمه** : کوم بزرګان چې وفات شوي دي هغوی هر ځای کې حاضر او ناظر ګڼلو سره هغوی ته غائبانه آواز کول. لکه یا رسول الله ویل یا عبدالقادر وغیره دا کلمات د کفر دي.

په فتاوی بزازیه کې دي: ﴿ من قال ارواح المشائخ حاضرة یکفر﴾ څوك چې وایي: د بزرګانو روحونه هر ځای کې حاضر او ناظر دي: نو هغه کافر دی.(۲)

شاه عبدالعزیز محدث دهلوي رحمه الله د باطلو عقائدو په باره کې لیکي:

انبیاء مرسلین را لوازم الوهیت از علم غیب وشنیدن فریاد هر کس و هر جا قدرت بر جمیع مقدورات ثابت کنند.(۳)

**ترجمه** : د انبیاؤ او رسولانو لپاره د الوهیت لوازم لکه عالم الغیب کېدل او هر ځای کې د هر یو فریاد اورېدل او په ټولو مقدوراتو باندې قدرت ثابول الخ (دا عقیده باطله ده).

د بریلوي خیالات یو لوی عالم هم د پورته ذکر شوو عقیدو په باره کې په

(۱) معیار السلوك ص ۷

(۲) فتاوی بزازیه مع فتاوی عالمگیری : ۳/ ۳۲۶

(۳) تفسیر فتح العزیز سورة بقره :آیت ۱/۵۲

واضحو الفاظو کې لیکې: مونږ دا خبره منو. چې هر ځای کې حاضر او ناظر د الله پاك نه سیوا څوك هم نشته. (۱)

غرض دا چې یا رسول الله! یا غوث! وغیره الفاظ پدې عقیده ویل چې د الله پاك په شان دا حضرات هم په هر ځای کې حاضر او ناظر دي. یا زمونږ آواز. فریاد او حاجت روا دي. جائز نه دی. که خپله یې دا عقیده نه وي: خو د نورو د عقیدې د خرابیدو ویره وي: نو بیا هم جائز نه ده. چې د هغوی مخکې داسې کلمات وویل شي.



## د بریلوي فرقې په باره کې د مفتیا نو رایې

۱: د هند لوی مفتي مولانا محمود حسن ګنګوهي رحمه الله فتوی:

په فتاوی محمودیه کې دي: چې په پورته آواز سره یارسول الله ویل او دا عقیده ساتل چې خپله دلته رسول الله ﷺ حاضر او ناظر دی او بغیر د واسطې یې اوري. دا عقیده غلطه ده او ددې عقیدې څخه توبه کول لازم دي (۲)

۲: د جامعه خیر المدارس ملتان فتوی:

د بریلوي فرقې کوم عقائد چې پورته بیان شوي. د اهل سنت والجماعت څخه خارج دي. د هغوی په اهل بدعت او اهل هوی کېدو کې هیڅ شک نشته: خو ددې فرقې په ټولو افرادو باندې مجموعي طور د کافر او مشرك کیدو فتوی د اهل سنت والجماعت عالمانو نه ده لګولې: خو خوخصوصي افراد چې د هغوی څخه صراحتا د کفر کلمات صادریږي او د هغې هیڅ صحیح تاویل نشي کیدی او هغوی په کفریه معنی باندې کلك وي. داسې خلک به کافران شي. فقط والله تعالی اعلم

۳: د صاحب مجموعة الفتاوی رایه

د داسې سړي عقیده فاسده ده: بلکې د کفر ویره پرې کیدی شي. د نور تفصیل لپاره لاندې کتابونه وګورئ. (۳)

(۱) انوار الهیه فی الاستعانة من خیر البریة ص ۱۲٤

(۲) فتاوی محمودیه : ۱/۱۰۷

(۳) مجموعة الفتاوی مصنف مولانا عبد الحئ ص : ٤٦

# د بریلوي فرقې د زیات تحقیق لپاره ددې کتابو نو مطالعه وکړئ !

✿ اهل سنت و اهل بدعت کی پهچان، ترجمان اهل سنت علامه سعید احمد قادری صاحب
✿ پانچ مسائل ..... از مولانا مفتی احمد ممتاز صاحب
✿ بریلویت و پانچ عقائد .... شهید احسان الهی ظهیر رحمه الله
✿ تحریك پاکستان کی حامی او مخالف دونوں مذهبی طبقوں کا موقف ایك نظر میں ... سید امیر علی قریشی صاحب
✿ چراغ سنت ... مولانا سید فردوس علی شاه صاحب
✿ الصلاة والسلام ... مولانا سید فردوس علی شاه صاحب
✿ حیات النبی ﷺ .... ایضا
✿ اصدق الخبر فی اذان القبر ... ایضا
✿ شرح فیصله هفت مسئله .... مفتی جمیل احمد تهانوی صاحب رحمه الله
✿ فاضل بریلوی کا حافظه ..... جناب محمد انوار احمد صاحب
✿ بریلی کا نیا دین .... مولانا ریحان الدین خان قاسمی صاحب
✿ کتاب التوحید فی التصرف ... مولانا عبد الغني الجاجروی صاحب
✿ کتاب التوحید فی العلم ... ایضا ك
✿ تنقید الفاضل علی قائل الحاضر والناظر .... مولانا محمد فاضل صاحب
✿ نماز جنازه کی بعد دعا نهیں... مولانا عبدالرشید ارشد صاحب
✿ اتمام البرهان فی رد توضیح البیان (رد شرك و بدعت) شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد سرفراز خان صفدر صاحب
✿ چهل مسئله .... مولانا صوفی عبدالعزیز صاحب
✿ رضا خانیت اور مسئله علم غیب ... سعید احمد قادری صاحب
✿ مکالمه حقانی با طایفه رضا خانی ... مولانا محمد مطیع الحق دیوبندی صاحب
✿ اربعین پیامی ... ایضا
✿ حقائق علم غیب ... ایضا

✿ ضياء العقائد .... ايضا

✿ كفر و ايمان كى كسوني .... مولانا مطيع الحق ديوبندى

✿ فتاوى اعلى حضرت ... ايضا

✿ اسلامى عقيدى ... ايضا

✿ رضا خانى مذهب كامل دس جلد ... مولانا سعيد احمد قادرى صاحب

✿ بريلوى مذهب كامل ۲ جلد .... ايضا

✿ فتاوى بريلوى .... ايضا

✿ حسام قادري كامل ۲ جلد ايضا

✿ فتاوى بريلوى .... ايضا

✿ انگهوټے چهومنا بدعت هے

✿ تلبيسات كنز الايمان .... ايضا

✿ تلبيسات نور ا لعرفان ..... ايضاً

✿ رضاخانيت او تقديس حرمين ... ايضا

✿ تعارف احمد رضا خان بريلوى ... ايضا

✿ مقياس حنفيت كا تحقيقى جائزه ... ايضا

✿ عيد ميلاد النبى ﷺ كى حقيقت ... ايضا

✿ مروجه صلاة وسلام .... ايضا

✿ رضاخانى ختم شريف ... ايضا

✿ وليم گوجرانواله ... ايضا

✿ رضا خانى حقائق ... ايضا

✿ رضا خانيون كى پيٹ پرستى.... ايضا

✿ رضا خانيت او دعا بعد نماز جنازه ... مولانا سعيد احمد قادرى صاحب

✿ سياه خضاب اور جهالت احمد رضا ... ايضا

✿ بشر مجسم حضرت محمد ﷺ .... ايضا

✿ نور صفات حضرت محمد رسول الله ﷺ .... ايضا

✿ رضا خانیت اور مسئله مختار کل .... ایضا
✿ رضا خانیت اور مسئله نور ... ایضا
✿ رضا خانیت اور مسئله بشریت ... ایضا
✿ رضا خانیت اور مسئله سایه رسول ﷺ .... ایضا
✿ بیان الحق بجواب جاء الحق .... ایضا
✿ تعلیمات احمد رضا اور امت احمد رضا ... ایضا
✿ ایك مناظره جو نه هوسکا .... جناب انور محمود صدیقی صاحب
✿ اصول السنة لرد البدعة .... مولانا محمد طاهر پنج پیر صاحب
✿ خیر الکلام فی تقبیل الابهام عند سماع ذکر خیر الانام علیه الصلاة والسلام ... مولانا محمد حسین نیلوی صاحب
✿ عید میلاد کی شرعی حیثیت .... ایضا
✿ سیف رحمانی علی عنق رضا خاني .... مولانا محمد یوسف رحمانی
✿ هدیه رحمانی الی فرقة رضا خانی ... ایضا
✿ مناظره دو کونه .... ایضا
✿ مشرب رضا خانی .... ایضا
✿ مسلك رضا خانی .... ایضا
✿ نور بشر کی لباس میں .... مولانا محمد یوسف رحمانی صاحب
✿ رحمانی کی للکار رضاخانی کا فرار ... ایضا
✿ فیصله خصومات از محکمه دار القضاة
✿ آئینه رضا خانیت ... مرتب نامعلوم
✿ دیوبند سی بریلی تك .... مولانا ابو الاوصاف روی صاحب
✿ انکشاف حق .... مولانا مفتی خلیل احمد برکاتي صاحب
✿ بالعروة الوثقی ۳ جلد ... مولانا محمد دین لاهوری صاحب
✿ الجهاد في سبیل الله ... ایضا
✿ باعلاء کلمة الله .... ایضا

- نور و بشر ... ایضا
- باطل فرقه پرستوں کی تجارت ... ایضا
- دور حاضر کی ایجاد عید میلاد .... مولانا محمود الحسن بالا کوٹی صاحب
- حقیقت میلاد.... مولانا قاضی محمد یونس انور صاحب
- مقاطع الحدید علی کذاب العنید ... مولانا محمد حنیف رهبر مبارکپوری
- بریلوی فتوی .... مولانا نور احمد صاحب
- فصل الخطاب فی تحقیق مسئلة الغراب ... مولانا محمد نصیر الدین میرٹھی صاحب
- قاصمة الظهر فی بلند شهر .... مولانا عبدالغنی خورجوی صاحب
- آئینه بریلویت ... جناب انوار احمد ایم کام صاحب
- البرهان فی رد البهتان ... مصنف نامعلوم
- حق کی کسوٹی (شرك و بدعت پر تحریري مناظره) مصنف نا معلوم
- کشف الافساد بجواب نهایة الارشاد .... مصنف نامعلوم
- نئی مجدد کا نیا ایمان .... مرتب نا معلوم
- بشریت و رسالت .... جناب سید محمد انور جیلانی صاحب
- تحفه میلاد .... مولانا حافظ محمد اقبال رنگونی صاحب
- فاضل بریلوی کی فقهي مقام کی حقیقت ... شیخ الحدیث مولانا محمد حامد میاں
- نقد وتبصره بر کنز الایمان وخزائن العرفان ... ایضا
- رضاخانی امت اپنی آئینی میں .... مولانا عبدالرؤف فاروق
- بریولیت اپنی تحریرون کی آئینه میں .... مولانا عبدالرؤف فاروق
- اعلی حضرت کی باغی .... مولانا ابو وسیم سید محمد سلیم صاحب
- پاگلوں کی کهانی .... جناب مولانا محمد فاضل صاحب
- رضا خانی دین .... مولانا مفتی محمد سعید صاحب
- میزان الحق ... پیر جی سید مشتاق علی شاه صاحب
- بدعت اهل اسلام کی نظر میں ... مولانا محمد اقبال رنگونی صاحب
- ختم مرسومه .... مولانا خیر محمد جالندهری صاحب رحمه الله

- سيف حقاني ..... ابو ناصر محمد عمر قريشي
- بريلوي مذهب اور اسلام .... مولانا ابو انور كليم صاحب
- اقامة البرهان على اهل طغيان .... مولانا قاضى نور محمد صاحب
- صاعقة الرحمن اول و دوم ..... مولانا قاضى نور محمد صاحب
- صدائے حق ... مولانا يعقوب مظاهرى صاحب
- كنز الايمان كا تنقيدى جائزه ... مولانا محمد نعمانى صاحب
- بريلوي ترجمه قران كا علمى تجزيه .... مولانا اخلاق حسين قاسمي صاحب
- فتوى ميلاد شريف ... مولانا احمد على سهارنپورى رحمۃ اللہ علیہ
- فتوى ميلاد شريف ... مولانا رشيد احمد گنگوهى صاحب
- جهد المقل ... مولانا محمود حسن ديوبندي ... (شيخ الهند رحمه الله)
- البراهين القاطعة على ظلام انوار الساطعة الملقب بالدلائل الواضحة على كراهة المروج من المولود و الفاتحة... مولانا خليل احمد سهارنپوري
- المهند على المفند المعروف بالتصديقات لدفع التلبيسات على خادم اهل الحرمين ... مولانا خليل احمد صاحب
- تنشيط الاذان ... ايضا
- بسط البنان ... مولانا اشرف على تهانوى
- تغيير العنوان ... ايضا
- الشهاب الثاقب على المسترق الكاذب ..... مولانا حسين احمد مدنى رحمۃ اللہ علیہ
- دليل الخيرات فى ترك المنكرات .... مفتى كفايت الله صاحب
- خير الصلوة في حكم الدعاء للأموات .... ايضا
- تحه لاثانى بر فرقه رضا خانى ... مولانا عبدالشكور لكهنؤى صاحب
- نصرت آسمانى بر فرقه رضاخانى .... ايضا
- فتح حقانى بر فرقه رضا خانى .... مولانا عبدالشكور لكهنوى صاحب رحمۃ اللہ علیہ
- سوط الابرار بجواب كاشف الاسرار ... مولانا عبدالغنى پتيالوى
- الجنة لاهل السنة بجواب التحقيقات لدفع التحريفات ... ايضا

✿ تزکية الخواطر عما القى فى امنية الاكابر .... مولانا سيد مرتضى حسن چاند پورى
✿ توضيح البيان فى حفظ الايمان .... مولانا مرتضى حسن چاند پورى رحمہ اللہ
✿ انتصاف البرى من الكذاب المفترى .... ايضا
✿ الختم على لسان الخصم ... ايضا
✿ اسكات المعتدى .... ايضا
✿ سبيل السداد فى مسئلة الاستمداد ... ايضا
✿ توضيح المراد لمن تخبط فى الاستمداد (ملقب بہ) القيامة الصغرى على من يقدم رجلا ويؤخر الاخرى ..... مولانا مرتضى حسن چاند پورى رحمہ اللہ تعالى
✿ العلان لدفع البغى والطغيان ..... ايضا
✿ الطين اللاذب على الاسود الكاذب .. (الملقب بہ) الفتح المبين على اعداء الاسلام والمسلمين مع ضميمة تكميل الفتح يعنى واقعہ بلند شہر ...... ايضا
✿ السوء النقم على مكفر نفسہ من حيث لا يعلم المعروف بہ رد التكفير على الفحاش الشنطير ..... ايضا
✿ دھماکہ بجواب زلزلہ ... نامعلوم مرتب
✿ بریلویوں کا چالیسواں .... نامعلوم مرتب
✿ شیطان کا واویلا .... جناب حافظ محمد اقبال صاحب
✿ پڑھتا جا، شرماتا جا .... جناب حافظ عبدالرشید صاحب
✿ تحقیق بریلویوں کی مذہبی خودکشی.... مولانا محمد موسیٰ صاحب
✿ تحقیق مسئلہ بشریت ...... مولانا بشیر احمد جالندھری صاحب
✿ افضل البشر ... مولانا غلام علی صاحب
✿ انکشافات بریلویت .... ایک سابق بریلوی کی قلم سے
✿ توحید اور شرک کی حقیقت .... مولانا نور الحسن شاہ بخاری صاحب
✿ بشریت نبی صلی اللہ علیہ وسلم ........ ایضا
✿ زلزلہ در زلزلہ .... مولانا نجم الدین احیائی صاحب
✿ غلغلہ بجواب زلزلہ .... قاضی شمس الدین نقشبندی صاحب

✿ بريلوي فتني كا نيا روپ بجواب زلزله .... مولانا عارف سنبهلى صاحب
✿ انكشافات بجواب زلزله .....
✿ دعوت مباهله اور شاه احمد نورانى كا فرار .... مولانا امير على قريشى صاحب
✿ بهتان عظيم ...... ايضا
✿ تكفيرى افسانى ..... مولانا نور احمد صاحب
✿ ضياء الحق بجواب اغلاط جاء الحق ... مولانا محمد موسى لودهران
✿ آئينه صداقت ..... جناب پروفيسر روحى صاحب
✿ چهل مسئله حضرات بريلويه .... پروفيسر رحيم بخش صاحب
✿ تلبيسات كنز الايمان .... مولانا عبد المعبود صاحب
✿ بريلوى مذهب ..... قاضى كفايت الله ميانوى صاحب
✿ بريلويت سنت وبدعت كى روشنى ميں .... مولانا مقصود احمد جالندهرى
✿ آئينه مذهب بريلويه ... مولانا محمد عبدالله درخواستى صاحب رحمه الله تعالى
✿ القول الفصل فى حكم احتفال بمولد خير الرسل .... جناب اسماعيل محمد الانصارى صاحب
✿ براهين اهل سنت حصه اول ..... مولانا دوست محمد قريشى صاحب
✿ بشريت خير الانام صلى الله عليه وسلم ...... مولانا عبدالسلام صاحب
✿ سنت وبدعت اكابر صوفياء كرام كى نظر ميں ...... مفتى محمد شفيع صاحب
✿ علماء ديوبند كا مسلكى مزاج اور ان كا دينى رخ ... قارى طيب صاحب رحمه الله تعالى
✿ علم غيب ...... ايضا
✿ الكلام الموزون فى صلاة الجنازة على الوجه المسنون وقويم الصراط على مسئلة الاسقاط ... سيد لعل شاه بخارى
✿ بشريت رسول ...... ايضا
✿ تسكين السائل عن خمس مسائل ...... ايضا
✿ تحقيق الدعاء بعد صلاة الجنازة، اول، دوم، مولانا عبدالعزيز صاحب
✿ مروجه ميلاد شريف ..... قارى عبد الرشيد صاحب

✿ توثيق الكلام فى رد حيلة الاسقاط المروجة فيما بين الانام ... (المعروف به) مروجه حيله اسقاط کی شرعی حیثیت .... مولانا سجاد بخاری

✿ عقائد علماء ديوبند اور حسام الحرمين ..... مولانا حسين احمد نجيب صاحب

✿ شریعت محمد مصطفى اور دين، مولانا احمد رضا خان صاحب اعلی حضرت بریلوی... جناب ملک حسن علی صاحب

✿ نذر ونیاز .... جناب حکیم نور احمد یزدانی صاحب

✿ اهل سنت کی پهچان ....... مولانا محمد سرفراز خان صفدر صاحب رحمه الله

✿ رجب المرجب کی کوندون کی کتاب ..... مولانا محمود الحسن بدایونی

✿ اظهار العيب فى كتاب اثبات علم غيب ...... شيخ الحديث مولانا محمد سرفراز خان صفدر ..... دا کتاب د ازالة الريب په جواب كې ليكل شوى دى، دا كتاب د اثبات علم غيب جواب دى.

✿ تبرید النواظر فى تحقيق مسئلة حاضر و ناظر ... (یعنی انکهون کی ٹهندك) شيخ الحديث مولانا محمد سرفرازخان صفدرصاحب (دا په مسئله د حاضر او ناظر باندي فيصله کونکی کتاب دي).

✿ تفريح الخواطر فى رد تنوير الخواطر ..... شيخ الحديث مولانا سرفراز خان صفدر صاحب ... دا کتاب د تبرید النواظر په جواب کې د لیکل شوي کتاب تنوير الخواطر جواب دی.

✿ دل کا سرور تحقيق مسئله مختار کل ...... شیخ الحدیث مولانا سرفراز خان صفدر صاحب

✿ راه هدایت بجواب نور هدایت ...... ایضا ...... دا کتاب د دل کا سرور په جواب کې د لیکل شوی کتاب جواب دی.

✿ نور و بشر ...... از افادات شيخ الحديث صفدر مد ظله مرتب فیاض خان صاحب

✿ گلدسته توحید (تحقيق مسئله استعانة بغير الله) شيخ الحديث مولانا سرفراز خان صفدر صاحب رحمه الله

✿ ملا علی قاری اور مسئله علم غيب وحاضر وناظر .... ایضا

✿ تنقيد متين بر تفسير نعيم الدين (رد شرك وبدعت) شيخ الحديث مولانا سرفراز خان صفدر صاحب

✿ راه سنت ... (رد بدعات) مولانا سرفراز خان صاحب

✿ درود شریف پڑھنی کا شرعی طریقه ..... ایضا ... پدې رساله کې د اذان نه مخکې د صلاة او سلام لوستلو متعلق تحقیق شوی دی.

✿ حکم الذکر بالجهر بجواب ذکر بالجهر حصه اول ... ایضا

✿ اخفاء الذکر بجواب ذکر بالجهر .... حصه دوم .... ایضا

✿ باب جنت بجواب راه جنت ... ایضا

✿ مطالعه بریلویت .....۸ جلدونه..... علامه دکتور خالد محمود صاحب (لندن)

✿ شاه اسماعیل شهید ..... ایضا

✿ نماز کا مقام توحید ..... ایضا

✿ علم جنات و ملائکه ...... ایضا

✿ عالم الغیب صرف الله تعالی کی ذات هی ..... ایضا

✿ مقدمه تحذیر الناس ...... ایضا

✿ حالات وکمالات اعلی حضرت بریلوی ..... مولانا حبیب الله دیروي صاحب

✿ نذر بغیر الله حرام هی بریلوی حضرات کا فتوی .... ایضا

✿ بریلوی حقائق بجواب دیوبندی حقائق ... ایضا

✿ رضا خانی مولویوں کی دربار رسالت میں گستاخیاں .... جناب مولانا محمد ضیاء القاسمی صاحب

✿ اربعین .... ایضا

✿ التحقیق النادر فی مسئلة الحاضر والناظر ... مولانا محمد ضیاء القاسمی صاحب رحمة الله علیه

✿ تیجه شریف ...... ایضا

✿ مناظره شیفلډ ...... ایضا

✿ بریلوی ملاؤں کا ایمان .... ایضا

✿ گستاخان مصطفی کی خانه تلاشی .... مولانا محمد رمضان صاحب

✿ سیف نعمانی علی عنق نورانی ....... ایضا

✿ بریلوی مذهب ..... ایضا

✿ بشریت کا منکر کافر هي ...... ایضا

✿ تحقیق مذاهب .... مولانا محمد مطیع الحق دیوبندی صاحب
✿ الکفر المتین فی الصریح المعین (المقلب به) علم و جهالت کی کسوٹی.. از مولانا سید مرتضی حسن چاند پوری صاحب رحمه الله
✿ کالا کافر .......... ایضا
✿ آخری اتمام حجت .... ایضا
✿ بریلوی مجدد سی مناظره .... ایضا
✿ القسورة علی الحمیر المستنفرة .... ایضا
✿ مولوی عبدالغنی رامپوری اور نو هزار کی هوس خام ... ایضا
✿ تحذیر الاخوان عن رضاء الشیطان ..... ایضا
✿ جیسی روح ویسی فرشتی ....... ایضا
✿ تهدید المنکرین لقدرة رب العالمین ..... سید مرتضی حسن چاند پوری رحمه الله
✿ کوکب الیمانین علی الحطان والخراطین .... از مولانا حافظ حسین احمد وکبیر احمد وعبدالودود صاحبان
✿ سیف یمانی بر مکائد فرقه رضا خانی ... مولانا منظور احمد نعمانی رحمه الله
✿ معرکة القلم (المروف) فیصله کن مناظره ..... ایضا
✿ رویداد مناظره بریلی المعروف فتح بریلی کا دلکش نظاره ملقب به قلعه رضا خانیت پر فیصله کن حمله ... ایضا
✿ صاعقه اسمانی اول رویداد مناظره ضلع نینی تال ... ایضا
✿ صاعقه اسمانی دویم رویداد مناظره علم غیب .... ایضا
✿ بارقه اسمانی ضمیمه صاعقه اسمانی حصه دوم .... ایضا
✿ سته ضروریة ... پدیکي د شپږو مسئلو شرعي تحقیق بیان شوی، ۱: علم غیب، ۲: توسل، ۳: استعانت بغیر الله، ٤: عرس، ٥: سماع مزامیر، ٦: نذر لغیر الله ایضا.
✿ توحید پاکٹ بك دوسرا نام جواهر توحید ..... مولانا غلام الله خان رحمه الله
✿ مؤمن کی پهچان از روح قران (اسلامی توحید) مولانا محمد منظور نعمانی صاحب رحمة الله علیه
✿ وهابی کی پچهان .... ایضا

✿ هدایات قادریه او هماری گیارهوین شریف ...... ایضا

✿ حاضر و ناظر ...... ایضا

✿ تیجه ....... ایضا

✿ بوارق الغیب علی من یدعی لغیر الله علم الغیب حصه اول، دوم، د دې دویم نوم دی : مسئله علم غیب کا قرآنی فیصله ...... مولانا محمد منظور نعمانی صاحب رحمه الله

✿ شاه اسماعیل شهید رحمه الله اور معاندین اهل بدعت کی الزامات ... ایضا

✿ شیخ محمد بن عبدالوهاب رحمه الله کی خلاف پروپیگنده اور علماء حق پر اس کی اثرات ... از مولانا محمد منظور نعمانی صاحب رحمه الله

✿ عقیده علم غیب ..... ایضا

✿ امعان النظر فی اذان القبر .... ایضا

✿ جهنم کی بشارت بجواب پیغام موت .... ایضا

✿ فتوحات نعمانیه (مختلف مناظرون کی روئدادین) ایضا

✿ احکام النذر للاولیاء وتفسیر وما اهل به لغیر الله .... ایضا

✿ عبارات اکابر .... از شیخ الحدیث محمد سرفراز خان صفدر ... پدې کتاب کې د مولانا احمد رضا خان په علماء اهل سنت باندې د لګول شوو الزاماتو جوابونه ورکول شوي: په دلائلو سره ثابته شوې ده، احمد رضا خان چې کوم د علماء اهل سنت تکفیر کړی دی، هغه صحیح نه دی.

✿ ازالة الریب عن عقیدة علم الغیب ... مولانا سرفراز خان صفدر.



لا اله الا الله محمد رسول الله

# [د منکرین حدیث فرقه ]

## د منکرین حدیث (پرویزیت ) فرقې تاریخ

د انکار حدیث د فتنې په اړه خپله رسول اللهﷺ خبر ورکړی دی. لکه په یو روایت کې دي:

﴿ أَلَا يُوشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانٌ عَلَى أَرِيكَتِهِ يَقُولُ عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْقُرْآنِ فَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَلَالٍ فَأَحِلُّوهُ وَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوهُ الحديث ﴾ [1]

**ترجمه** : نژدې ده چې یو موړ سړی تکیه وهلی به وایي: چې خلکو! ستاسو لپاره قرآن کریم کافي دی. کوم شی چې پدیکې حلال دی، هم هغه حلال گڼئ او څه چې پکې تاسو حرام بیا مومی، هغه حرام گڼئ.

### د انکار حدیث څو وجې

۱: د انکار حدیث اصل وجه دا ده: چې قرآن یو اصولي او کلي کتاب دی: چې په هغې کې اختصار او اجمال دی. پدیکې د خپل مطلب تاویل کیدی شي او په احادیثو کې د تفصیل کیدو د وجې تاویل نشي کیدی.

۲: او د قرآن کریم په تاویل کولو سره منکرین حدیث د خپل نفس په خواهشاتو باندې عمل کولی شي. نبوي احادیثﷺ قدم په قدم د هغوی پدې شهواني اعمالو باندې د عمل کولو لوی خنډ دی.

۳: دغه شان په قرآن کریم کې تاویل کولو سره هغوی خپله آزادي او د زړه په تقاضا باندې عمل کوي. مثلاً: د لمانځه مثال دی چې د یخنی په ورځو کې سهار گرمه بستره پریښودلو سره جومات ته تلل په طبیعت باندې گرانه پریوځي: نو هغوی وویل: چې د لمانځه نه مراد دعا ده یا همدغه شان ددې بل څه تاویل وکړی شي.

---

[1]) مشکوة : ۲۹

۴: دغه شان په انکار حديث سره به د رسول الله ﷺ اتباع ختمه شي. حال دا چې د رسول الله ﷺ اسوه حسنه يو داسې تله ده. چې هلته رسيدلو سره اختلافات ختميږي.

۵: احاديثو سره په امت کې اتحاد پيدا کيږي. چې دا د مسلمانانو اصل طاقت دی او کله چې د حديثو څخه انکار وکړی شي: نو اوس به هر يو په خپله خوښه په قرآن کريم کې تاويل کوي او په امت کې به صرف اختلاف وي هم دا کار د اسلام دشمنان غواړي.

۶: هم دغه شان د انکار حديث په ضمن کې د رسول الله ﷺ د ذات سره تمسخر او توقې هم دي، چې د رسول الله ﷺ اقوال او افعال زمونږ لپاره حجت نه دی. چې مونږ خو به نبي ومنو: خو د هغوی د څه خبرې د منلو لپاره تيار نه يو. دا خبره صرف د شيطان خوشحالول دي.

۷: هم دغه شان د انکار حديث والا چې کله د احاديثو څخه انکار کوي او عقل يې مختار کل وګڼلو: نو الله پاك د هغوی د عقل فهم واخستلو. همدا خبره د نن نه څوارلس سوه کاله مخکې د سيدنا عمر ﷺ د وينا څخه ملاويږي:

﴿ أن عمرَ بنَ الخطابِ كان يقول أصحاب الرأى أعداء السُّنن أعيتهمُ الأحاديثُ أن يحفظوها وتفلّتتْ منهمْ أن يَعُوْهَا واستحيوا حين سُئِلُوْا أن يقولوا لا نعلمُ فعارضوا السُّنَنَ برأيهمْ فإيّاكمْ وإيّاهمْ ﴾[1]

**ترجمه**: سيدنا عمر ﷺ به فرمايل: د خپلې رائې تابعداري کونکي د حديث دشمنان دي، د احاديثو د يادولو هغوی ته توفيق نه ملاويږي. کله چې د هغوی نه سوال وشي: نو هغوی پدې وينا شرميږي. چې مونږ ته علم نشته. لهذا هغوی په خپله رايه جواب ورکوي او د احاديثو مقابله په عقل سره کوي. تاسو د داسې خلکو څخه ځانونه لرې ساتئ.

که د منکرين حديث عقل کار کولی؛ نو هغوی به دا سوچ هم کړی وی. چې کوم قرآن هغوی مني. هم په هغه قرآن کريم کې خو دا هم دي چې:

---

[1]) اعلام الموقعين : ۱/۸۰

﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَى إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى ﴾ [۱].

**ترجمه** : چې رسول الله ﷺ په خپل خواهش خبرې نه کوي. هغه خو ټوله وحې ده. څه چې په هغوی باندې نازلولی شي

بهر حال که منکرین حدیث ته څه علمي مغالطه وي. چې د هغې د ختمیدو نه وروسته هغوی احادیث منلي وی. او د خپلو غلطیانو اقرار یې کړی وی: خو داسې نه ده. ځکه چې علماء حق د هغوی د مغالطو ختمولو لپاره یو نه ډیر کتابونه لیکلي دي: خو هغوی په خپل ضد باندې تر ننه پورې کلک ولاړ دي او د

﴿ خَتَمَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ وَعَلَى سَمْعِهِمْ وَعَلَى أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ [۲].

**ترجمه** : الله پاك د هغوی په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولی او د هغوی په سترګو یې پرده لګولې ده. او د هغوی لپاره لوی عذاب دی

## د منکرین حدیث فرقې باني مولوي عبدالله چکړالوي حالات

د حدیث انکار اګر چې د ده نه وړاندې سر سید احمد خان. مولوي چراغ علي هم کړی: خو هغوی ښکاره انکار نه دی کړی. دا عبدالله چکړالوي وو. چې د ټولو نه یې لومړی ځان د منکرین حدیث په لست کې شامل او امت ته یې ځان ښه په ډاګه رسوا کړ.

**نوم** : د هغه نوم اول قاضي غلام نبي وو. دا د چکړاله ضلع میانوالي اوسیدونکی وو: خو د نبي او د حدیث د نفرت لخ امله یې خپل نوم د غلام نبي نه بدل او عبدالله کېښود

**زده کړه** : هغه تعلیم د ډپټي نذیر احمد نه حاصل کړی. ځکه چې ډپټي نذیر احمد هم د تقلید پرېښودو ته مائل وو، د هغه دا اثر په عبدالله هم وشو او بیا دا اثر دومره زیات شو چې په آخره کې ترې لوی منکر حدیث جوړ شو.

---

[۱]) سورة النجم : آیت ۳، ٤

[۲]) سورة بقره : آیت: ۷

## د عبدالله چکړالوي انکار حدیث

په شروع کې دوی په خپل جومات کې د بخاري درس ورکولو: خو بیا یې په مزه مزه د حدیث نه بالکل انکار شروع کړ. سید قاسم محمود صاحب په اسلامي انسایکلو پیډیا کې لیکي تر یوې مودې پورې هغه د بخاري درس کولو: خو طبعي اضطراب یې د بخارۍ او قرآن کریم توازن شروع کړ. ځینې احادیث یې د آیتونو خلاف وګڼل او بیا یې ډاګه یې اعلان وکړ چې قرآن کریم یو مکمل هدایت دی: نو د حدیثو هیڅ اړتیا نشته؟ دا خبره د چینیان والا جومات خلکو تر یو حده پورې خو برداشت کوله. بیا یې یوه ورځ دی د جومات نه وویست. (۱)

وړاندې سید قاسم محمود لیکي کله چې عبدالله چکړالوي د جومات نه وویستل شو: نو یو متشدد مقتدي محمد غبش عرف چټو پهدالي هغه په سیسانوالي بازار کې خپل کور ته مبلمه کړ. چې په احاطه کې یې یو جومات جوړ کړ تر څو د قرآنکریم شوقیانو ته د قرآن د مسائلو بیان وکړي. (۲)

د هغه د تره ځوی قاضي قمر الدین چې د مولانا احمد علي محدث سهارنپوري او احمد حسن کانپوري ﷫ شاګرد وو. هغوی یې په ښکاره ډول مقابله وکړه. همدغه شان د عبدالله چکړالوي ځوی قاضي ابراهیم هم د خپل پلار د مسلك منلو ته تیار نه وو. بلکې هغه یې د منلو څخه انکار وکړ. دویم ځوی قاضي عیسی اګر چې د څو ورځو پورې د خپل پلار سره وو: خو بیا هغه ته هم الله پاك د توبې کولو توفیق ورکړ.

## د قرآن کریم تفسیر

عبدالله چکړالوي د قرآن کریم یو تفسیر هم لیکلی چې د هغې نوم یې ترجمة القرآن بآیات القرآن ایښی. پدې تفسیر کې هغه ښکاره ځای په ځای انکار حدیث کړی، مثلاً په یو ځای کې لیکي:

(۱) اسلامی انسائیکلو پیډیا: ص ۱۷۳
(۲) اسلامی انسائیکلو پیډیا: ص ۱۷۳

د يو ځای څخه هم دا خبره نه ثابتيږي چې د قرآن کريم سره سره په رسول الله ﷺ باندي نور څه هم نازل شوي وو. که يو سړی په څه مسئله کې د قرآن کريم نه سېوا د بل شي په اسلام کې حکم کوي: نو هغه به د مذکوره آيت کريمه مطابق کافر. ظالم او فاسق شي [۱]

دغه شان هغه يو بل کتاب برهان القرآن علی صلاة القرآن باندې ليکلی چې په ځلورو سوو مخونو مشتمل دی. ديکې هم هغه د احاديثو څخه نه انکار کړی

## د مرګ عبرتناکه واقعه

يو ځل خلکو ته وخت په لاس ورغی. هغه يې په ډېرو دردونو ووېشت چې مرګ ته يې نژدې کړ. کله چې خلکو وليد. چې هغه خو مرګ ته نژدې شو: نو په نيمه مړه حالت کې يې د ملتان نه خپل پلرني ټاټوبي چکراله ته يوړ. بيا څو ورځې ورو سته هلته ومړ [۲]

## د غلام احمد پرويز حالات

د موصوف پوره نوم غلام احمد پرويز او د پلار نوم يې چوهدري فضل دين دی. د متحده هندوستان په مشهور ښار بټاله (ضلع ګورداس پور) په يو سني حنفي کورنۍ کې په ۹ جنوری ۱۹۰۳ء کې پيدا شوی. د هغوی نيکه حکيم مولوي رحيم بخش د خپل وخت منل شوی صوفي بزرګ وو او د چشتيه نظاميه سلسلې سره يې تعلق درلود

**زده کړه** : لومړی او مذهبي زده کړه يې په خپل کور کې د والد او نيکه تر مشری لاندې کړې. د يو انګريزي مکتب (Aladyo of England) څخه يې په ۱۹۲۱ء کې متوسطه تعليم وکړ. د پنجاب يونيورستی لاهور څخه يې په ۱۹۲۱ء کې د B.A سند تر لاسه کړ. په ۱۹۲۷ء کې يې د ګورنمنټ آف انډيا په مرکزي سيکرټريټ کې وظيفه غوره کړه. ډير زر يې ترقي وکړه. د Home Department په Stablishment Divison

---

[۱]) ترجمة القران : ص ۴۲، مطبوعه ۱۳۳۰ھ لاهور

[۲]) اسلامی انسائيکلو پيډيا ص ۱۷۳

کې په یوه وظیفه وګمارل شو. څه موده وروسته د غلام احمد پرویز ملاقات د حافظ اسلم جیراجپوري (کوم چې بذات خود په منکرین حدیث کې شمیرل کیږي) سره وشو. د صحبت له امله چونکې عادتونه یو بل ته نقلیږي. لهذا چې کوم سوچ د اسلم جیراجپوري وو هغه سوچ د پرویز د انکار حدیث سوچ نور هم مضبوط کړ او دغه شان د اسلم جیراجپوري یو ځای ناستی تیاریدلو. چې کوم وروسته د فتنه انکار حدیث د نشر او اشاعت لویه ذریعه جوړه شوه. پرویز په ۱۹۳۸ء کې د طلوع اسلام مجله خپره کړه. د هغې لومړۍ شماره په اپریل ۱۹۳۸ء کې خپره شوه او هم دا په اصل کې هغه مرکز جوړ شو. چیرته چې د خلکو ذهنونو ته د اسلام. دین او علماء کرامو نه د متنفر کیدو آغاز وشو او د اسلام په جامه کې قرآني فکر او قرآني بصیرت په شان ښکلي الفاظ استعمالولو سره یې خلک په شرعي حدودو او قیودو کې د آزاد ژوند ښه باغونه وښودل.

## د ماشومتوب پالنه

د ماشوم والي څخه د پرویز تربیت په دومره نا آشنا ماحول کې وشو. هغه خپله لیکي. زه چې به په کومه جذبه او شوق د میلاد په محفلونو کې شریکیدم. همدغه سوز او شوق سره به مې د تنګ تکور مجلسونو ته حاضري کوله او قوالي خو خیر د عبادت جزء ګڼل کېده. دغه شان زما د ماشوم والي او ځلمي توب زمانه هم وه. (۱)

ددې صفحې په حاشیه باندې غلام احمد پرویز لیکلي دي: چې هسې هم صوفي نیم شیعه وي. د پرویز د نظریاتو دومره د کفریه کیدو وجه دا هم ده. چې هغه بغیر د یو عالم نه تفسیر ولوست. بیا د هغه تربیت هم په غیر دیني ماحول کې وشو. لومړۍ خو یې انګریزي ماحول کې تعلیم کړی وو. بیا د سر سید احمد د خیالاتو مطالعه. دغه شان د هغه په ذهن کې د انکار حدیث فتنې جرړې ونیولې

د بي اې د سند حاصلولو وروسته یې انګریزي. ادب. فلسفه. تاریخ. سائنس. ټیکنالوجي او د معاشیاتو په علومو ښه توجه ورکړه. ورسره ورسره یې د

---

۱) غلام احمد پرویز د قاسم نوري : ۷۲ تر ۷٤

سیاست او د اقوام عالم د سیاسي او مذهبي تحریکونو مطالعه شروع کړه.

بیا پدې باندې زیاتي غم لا دا چې د اسلم جیراجپوري پشان د منکر حدیث صحبت هغه ته ملاو شو. خپله لیکي: چې یو حدیث لوستلو سره زما په ذهن کې سوالات او حیرانتیا او د استعجاب سره سره د بغاوت هواګاني هم شروع شوې: نو د علامه محمّد اقبال او حافظ محمد اسلم ملکرتیا راته ښه مرسته راکړه.[1]

علماء کرامو د تفسیر لپاره په پنځلسو علومو باندې مهارت درلودل ضروري ښودلي دي، څوک چې د عربی څخه خبر نه وي. هغه د قرآن کریم تفسیر څنګه کولی شي، ددې ماحول د خرابولو لپاره خواهش یا د هغه تعلیم او تربیت یو شی هم هغه ته د قرآن او حدیث په تفسیر کې د خولې خوځولو اجازت نه ورکوي. هم دا وجه ده چې پرویز کله ددې همت وکړ: نو د قرآن کریم الفاظو ته یې د خپلو خواهشاتو جامه واغوستله، د همدې څخه قرآن کریم خپله داسې تعبیر کړي

﴿ اَفَرَءَیۡتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰـهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلۡمٍ ﴾[2]

**ترجمه** : آیا تا لیدلي دي هغه څوك چې د خپل خواهش څخه یې معبود جوړ کړی وي او الله پاك سره د علمه ګمراه کړي دي.[3]

اصل کې دین هر سړي خپل میراث ګڼلی. نه د مدرسې تعلیم. نه د علماء کرامو صحبت، نه د صحاح سته رهنمائي. نه د ائمه اربعه وو تقلید. بلکې د ټولو نفی کولو سره او په هغې باندې زور دا چې مونږ هم مسلمانان یو. قرآن زمونږ هم دی. مونږ ته د هر هغه معنی اخذ کولو اختیار دی، چې زمونږ د مقاصدو لپاره معاون ثابت وي. حقیقت دا چې دې خلکو د انکار حدیث په ذریعه د انکار قرآن بنیاد کېښود. کله چې د هغوی نه پوښتنه وشي، چې آیا نور خلك مسلمانان نه دي: نو داسې خبره کوي چې د هغې لازم مفهوم دا راوځي، چې یو سړی په قرآن کریم باندې د

---

[1]) قاسم نوري غلام احمد پرویز : ۱۲۹

[2]) سورة الجاثیة :آیت ۲۳

[3]) ترجمة القرآن محمود الحق

عمل کولو نه بغیر او د هغې د منلو نه بغیر هم مسلمان وي: نو بیا په مسلمان او کافر کې څه فرق دی؟

## د موسیقی سره مینه

غلام احمد پرویز د ماشوموالي څخه د شعر. شاعری او موسیقی سره ښه مینه درلوده . دا ځکه چې د پرویز نیکه د سلسله چشتیه صوفي وو. په کوم کې چې موسیقي د عبادت جزء ګڼل کیږي.

ډیرو کمو خلکو ته علم دی چې پرویز صاحب د لویې مرتبې ښه تکړه لیکوال. مضمون نګار او شاعر هم وو. ښکلی آواز یې درلود. لهجه یې هم ښکلې وه. د موسیقی د فن څخه ښه خبر وو. د کلاسیکي موسیقی سره یې ښه اړیکه درلوده. هغه سره د ګرامو فون ریکارډ ډیره ذخیره وه. شعر ویلو سره به یې د خوند برابرولو لپاره سروز ورسره شریکولو. د سهار راګونه یې ډیر خوښ وو. خاص طور سره اساوري او جونپوري یې خوښ راګونه وو. [1]

**وظیفه**: د پاکستان د جوړوني نه وروسته غلام احمد کراچی ته راغی او د پاکستاني حکومت په مرکزي سیکریټریټ کې یې هم په هغه وظیفه وګماره په کومه چې هغوی په هندوستان کې وو. په ۱۹۵۵ء کې هغه ددغې وظیفې نه لاس په سر شو. د خپل سوچ د نشر کولو لپاره یې ځان فارغ کړ. هغه وخت هغوی سره د اسسټنټ سکریټري (کلاس ون) ګزیټډ افیسر وظیفه وه.

په ۱۹۵۳ء کې غلام احمد پرویز خپل قرآني پوهې ته د درسونو شکل ورکړ. تر څو د خلکو د ذهنونو څخه د اسلام اصلي نقشه لرې کړي. دا درس به په کراچی کې د پرویز په استوګنځي کې کیده. په ۱۹۵۸ء کې لاهور ته نقل شو. هلته هم هغوی خپل درسونو پیل کړه. دا به په هفته کې یوه ورځ وو. د ۵ اکتوبر ۱۹۸۴ء پورې دا لړی روانه وه. د قرآن ددې تفسیر بالرأی لومړی دور په ۱۹۶۷ء کې پوره شو.

---

[1]) قاسم نوري: ۲۸

بیا یې دوباره شروع کړ. غلام احمد پرویز به خپل قرآني درسونه هره جمعه
کول. د هغو ویډیویي کیسیټي به یې ډکولې. اوس هم ځای په ځای ددې ویډیو
کیسټو په ذریعه قرآني درسونه کیږي. په کراچۍ کې په پنځه ځایونو کې د هغوی
درسونه کیږي. دا درسونه د جمعې په ماښام کیږي. مرکزي دفتر یې په بهایاني
سینټر نارتهه ناظم آباد کې دی. د کوم ځای لوی سر پرست چې اسلام صاحب دی. چې
د ''طلوع اسلام'' د شروع نه د پرویز سره یو ځای په فتنه انکار حدیث کې یې خپل
کردار ادا کړی. د طلوع اسلام د دفتر مرکزي صدر په لاهور کې دی. د غلام احمد
پرویز کور په ۲۵ بي ګلبرګ ۲ لاهور ۱۱ کې دی. د هغوی لیکل شوي کتابونه. مقالې
او هغه ټول مواد چې هغوی مرتب کړي دي په کوم سره چې د هغوی د مسلک نظریات
او د عقایدو تشریح کیږي موجود دي. ددې ټولو موادو ذخیرې نه The Pervaiz
Memorial Research Scholars Library نوم ایښودل شوی دی.

**اولاد**: پرویز خپل شاته هیڅ اولاد نه دي پرې ایښي: خو د هغه جوړې شوې ادارې او
د تصنیفاتو مواد نن هم د مسلمانانو د صحیح رخ بدلولو. حدیث. د قرآن کریم
حقیقي معنی. اجماع امت او د علماء کرامو د سرپرستی څخه محرومولو سره قرآن
کریم ته د خپلې خوښې معنوي جامه اغوستلو کې مصروف عمل دی. په هغې کې د
''طلوع اسلام'' محفلونه ،چیرته چې هفته وار درسونه کیږي، مجله طلوع اسلام
(ماهنامه) اداره طلوع اسلام.
The Qurane The Prevaiz Memoril Research Eduvation Society The Quranic Research Centre Scholar Library.
په ویډیو او آډیو کیسټو کې قرآني درسونه. پمفلټس او د هغوی تصنیفات شامل دي

## د طلوع اسلام مقصدونه

په ۱۹۳۸ء کې پرویز د خپلو مقصدونو د خپرولو لپاره د رسالې په نوم د خپلو ښکلي
الفاظو کارول له مخې خپل مقصدونه پټ کړه. د محدثینو د کلونو شپه او ورځې د
محنت وروسته تیار شوې د احادیثو ذخیرې ته پرویز ایراني اثرات او د دروغو
روایات وویل، په دین کې یې د انحراف پیدا کولو کوشش وکړ او دبته یې د نشاءة

ثانیه په شان ښکلی نوم ورکړ. عوام خلک یې د علماء کرامو د سرپرستی څخه د محرومولو زیات کوشش وکړ. هغوی ته یې د آزاد ژوند ښنه باغونه وښودل. چې په هغې کې د نفساني هواء اچونې او د قرآن الفاظو ته له ځانه جوړې شوې معنی لباس اغوستولو سره یې خلکو ته نوی دین وړاندې کړ. د طلوع اسلام اداري د جوړونې ځو لوی لوی مقصدونه دا وو:

خالص دین دي د زړګونو کالو د روایتونو او د ایراني اثراتو د پیړیو پردو څخه راوویستل شي. قرآني روح دي په اصل شکل کې پیش کړی شي. د همدې مقصد له مخې ددې رسالې نوم علامه اقبال طلوع اسلام تجویز کړی وو. د اسلام د نشاءة ثانیه لپاره دې ماحول جوړ کړی شي. د مذهبي مشرانو له طرفه چې کومه بې بنیاده او ګمراه پروپیګنډه د تصور پاکستان او باني پاکستان په اړه وړاندې کولی شي. د هغې موثر او مدلل جوابونه ورکول شوې.

# د قرآن کریم تفسیر بالرأی

پرویز حدیث درواغ وګڼل. په خپل سوچ یې د قرآن کریم تفسیر وکړ. عقل حیران دی چې صاحب کتاب د کتاب په مفهوم باندې ښه پوهیږي. که د څوارلسمې صدی د لغات القرآن څخه ناخبره سړی دا دعوه کوي چې نه! قرآن خو بل څه وایي: هم دغه شان لیکي:

زه د خپل بصیرت مطابق قرآني فکر خلکو ته وړاندې کوم. ستاسو لپاره ضروري ده. چې تاسو پخپله په قرآن کریم کې د غور او فکر نه وروسته فیصله وکړی چې زما فکر صحیح دی یا نه؟

**وفات** : د غلام احمد پرویز وفات په ۲۴ فروری ۱۹۸۵ء کې شوی.

# د پرويزيت فرقې (منكرين حديث) نظريې او عقيدې

۱. حديث عجمي سازش (چل) دی. [۱]

۲. نن چې په دنيا كې كوم اسلام دی، ددې د قرآني دين سره هيڅ تعلق نشته. [۲]

۳. په قرآن كريم كې چې چيرته د الله پاك او رسول ﷺ نوم راغلی. ددې نه مراد مركز ملت دی. [۳]

۴. او چيرته چې د الله پاك او د رسول ﷺ د اطاعت ذكر راغلی. د هغې نه مراد د مركزي حكومت اطاعت دی. [۴]

۵. په قرآن كريم كې ﴿ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ﴾ كې د اولو الامر څخه مراد ښكته مرتبې والا افسران (جنرالان) دي. [۵]

۶. د رسول ﷺ كار صرف دومره وه. چې هغه د الله پاك قانون خلكو ته ورسوي. [۶]

۷. د رسول الله ﷺ نه وروسته به د هغوی اطاعت نه كيږي. اطاعت د ژوندو كيږي. [۷]

۸. د ختم نبوت مطلب دا چې اوس به انسانان خپل معاملات په خپله سر ته رسوي. [۸]

۹. مركز ملت ته اختيار دی چې هغه عبادات. لمونځ. روژه معاملات وغيره كوم شيان چې بدلول غواړي هغه بدل كړي. [۹]

---

[۱]) مقام حديث : ۱/۴۲۱ .... شائع كرده طلوع اسلام كراچى

[۲]) مقام حديث : ۱/۳۹۱ .... شائع كرده طلوع اسلام كراچى

[۳]) اسلامى نظام ص ۸۶، شائع كرده طلوع اسلام كراچى، معارف القران : ۴/ ۶۲۶

[۴]) معارف القران : ۴/ ۶۳۱

[۵]) اسلامى نظام : ص ۱۱۰، ۱۱۱

[۶]) سليم كے نام (پرويز) ۲/۳۴، اداره طلوع اسلام كراچى.

[۷]) سليم كے نام (پنځلسم خط) ص ۲۵۰، خط نمبر ۲۰ او ۲۱ باندې هم دا مضمون دی.

[۸]) سليم كے نام (پنځلسم خط) ص ۲۵۰، خط نمبر ۲۰ او ۲۱ باندې هم دا مضمون دی.

[۹]) قرآنى فيصلې : ص ۳۰۱، ۳۰۲، شائع كرده طلوع اسلام كراچى

۱۰. د الله پاك (معاذ الله) په خارج کې هیڅ وجود نشته. بلکې الله پاك د هغه صفاتو نوم دی. چې انسان په خپل ځان کې تصور کوي. ([1])

۱۱. د آخرت نه مراد مستقبل دی. ([2])

۱۲. د آدم علیه السلام هیڅ وجود نشته دا خو د نوع انساني نوم دی ([3])

۱۳. د رسول الله ﷺ د قرآن کریم نه علاوه بله معجزه نشته. ([4])

۱۴: لمونځ د مجوسیانو څخه اخستل شوی. قرآن کریم د لمونځ کولو په اړه څه نه دي ویل بلکې د لمانځه د نظام قایمولو حکم شوی دی. مطلب دا چې معاشره په هغه بنیادونو باندې قایمول پکار دي. په کوم باندې چې د الله پاك د ربوبیت عمارت قایمیږي. ([5])

۱۵ د رسول الله ﷺ په زمانه کې صرف دوه لمونځونه وو. (سهار او ماسخوتن) ([6])

۱۶: زکوة د هغه ټیکس نوم دی. چې اسلامي حکومت یې اخلي ([7])

۱۷: نن سبا زکوة نشته. ځکه چې موږ ټیکسونه ورکوو نو زکوة نه واجبیږي ([8])

۱۸: حج د نړۍ د مسلمانانو د عالمي کانفرس نوم دی. ([9])

۱۹: قرباني خو صرف په عالمي کانفرنس کې شرکاء باندې د خوراك لپاره وه. باقي د قرباني حکم چیرته هم نشته. ([10])

باقي چې د حرامو کوم فهرست دی هغه ټول د انسانانو جوړ شوي شیان دي.

---

[1]) معارف القرآن : ٤/ ٤٢٠

[2]) سلیم کے نام اکیسواں خط : ٢/ ١٢٤

[3]) لغات القرآن : ١/ ٢١٤

[4]) سلیم کے نام خط : ٣/٣٦، ٣/٩١، ٩٢، معارف القرآن : ٤/٧٣١

[5]) قرآنی فیصلی ص ٢٦، ٢٧، معارف القرآن : ٣٢٨/٤، نظام ربوبیت : ٨٧

[6]) لغات القرآن ١/١٠٤٣، ١٠٤٤

[7]) قرانی فیصلی ص : ٣٧، سلیم کے نام پانچواں خط : ١/٧٧، ٧٨

[8]) نظام ربوبیت ص : ٧٨

[9]) لغات القرآن : ٢/٤٧٤

[10]) رساله قربانی ص ٣، قرانی فیصلی، ص ٥٥، ١٠٤

۲۰: د قرآن كريم په روح سره به ټول مسلمانان كافر وي. د موجوده زمانې مسلمان برهمن او معاشرتي مسلمانان دي. [۱]

۲۱: صرف څلور شيان حرام دي. ۱: بهيدونكې وينه. ۲: د خنزير وينه. ۳: د غير الله په نوم منسوب شوي شيان، ۴: مرداره. [۲]

۲۲: د جنت او جهنم هم څه حقيقت نشته، دا صرف د انساني ذات د كيفياتو نومونه دي. [۳]

## [د پرويزيت فرقې نظريې او عقيدې، د قرآن اوحديث څخه دهغې جوابونه]

## لومړی عقيده: حديث عجمي سازش (چل) دی. [۴]

**جواب** : دا عقيده ساتل چې حديث د عجمي سازش په نتيجه مخې ته راغلی. د علماء كرامو په نزد كفر ده. خپله په قرآن كريم كې الله پاك د رسول الله ﷺ بعثت په درې كارونو كې يو دا ښودلی، چې هغه د كتاب او حكمت يعنې د حديثو تعليم وركړي. لكه په قرآن كريم كې چې راځي:

۱: ﴿ هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْأُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ [۵]

**ترجمه** : هم هغه (الله پاك) دی. چې په اميانو كې يې هم د هغوی څخه يو رسول راولېږلو. چې په هغوی باندې د هغه آيتونه ولولي او هغوی ته د كتاب او سنت تعليم وركړي. يقينا ددېنه مخكې خو هغوی په ښكاره ګمراهی كې وو.

حكمت په قول د ابن عباس رضي الله عنهما او حسن بصری رحمه الله سنت رسول الله ﷺ دی. كه حديث ونه منل شي؛ نو په قرآن باندې پوهېدل ګران دي، مثلاً:

---

[۱] سليم كے نام پينتيسواں خط ... ۳/۱۹۷تا ۱۹۹
[۲] حلال اور حرام كى تحقيق
[۳] لغات القرآن : ۱/٤٤۹، شائع كرده اداره طلوع اسلام لاهور
[۴] مقام حديث : ۱/٤۲۱ .... شائع كرده طلوع اسلام كراچى
[۵] سورة الجمعة آيت : ۲

۲. ﴿ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللَّهِ ﴾ (۱)

**ترجمه** : د غلا کونکي سړي او غلا کونکي ښځې لاسونه پرې کړی دا عبرتناکه سزا ده. د الله پاك له طرفه د هغوی د جرم.

په پورته آیت کریمه کې دي: چې لاس پرې کړی: نو لاس به د کوم ځای څخه پرې کوو. د ترخ (بغل) نه. یا د مړوند یا د څنګل نه. ددې وضاحت خو به د حدیث نه کیږي. (په پوره قرآن کریم کې دا خبره نشته).

۳. ﴿ مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ (۲)

**ترجمه** : تاسو چې د خورماوو کومې ونې پرې کړي او کومې مو ولاړې پرې ایښي. دا د الله پاك په حکم باندې وه.

اوس د الله پاك حکم په قرآن کریم کې څه دی. چې د خورماوو ونه یې پرې کړه. که ویې ریبله دا حکم خو په حدیث کې دی: نو د حدیث نه بغیر به د پورته آیت کریمه مفهوم نه واضحه کیږي. پدې وجه د حدیث منل په حقیقت کې د قرآن کریم منل دي په میزان د شعراني کې دي:

﴿ لولا السنة ما فهم احد منا القران ﴾ (۳)

**ترجمه** : که حدیث نه وی: نو په مونږ کې به څوك هم په قرآن کریم نه وی پوه شوی.

## دویمه عقیده

## نن چې کوم اسلام روان دی، د هغې د قرآني دین سره هیڅ تعلق نشته. (۴)

**جواب** : پدې عقیده کې دده اسلام ختم شوی، پدې اعتبار سره به نن سبا ټول مسلمانان کافران وي. دا خبره پدې وجه شوې ده. چې پرویز د خپل خود ساخته دین په خلکو پلی کول غواړي.

---

(۱) سورة المائده آیت : ۳۸
(۲) سورة الحشر آیت : ۵
(۳) میزان شعراني ص ۲۵
(۴) مقام حدیث : ۱/۳۹۱ .... شائع کرده طلوع اسلام کراچی

## دريمه عقيده

په قرآنكريم كې چې چيرته د الله او رسول ﷺ نوم راغلى دى. ددې څخه مراد مركز ملت دى. (۱)

**جواب** : دا هم يو ښكاره تحريف او زندقيت دى. دا هغه مطلب دى چې چا هم په پنځلس سوه كاله كې نه دى بيان كړى. الله پاك فرمايي:

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِى النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴾ (۲)

**ترجمه** : بېشكه هغه كسان چې زمونږ په آيتونو كې د الحاد (كفر) لارې راوباسي. هغوى زمونږ څخه پټ نه دي. آيا هغه سړى چې په اور كې به اچولى كيږي. هغه غوره دى كه هغه څوك چې په قيامت كې به په امن كې وي. كوى څه چې مو خوښه وي، يقينا الله پاك ستاسو عملونهويني

مطلب دا چې په قرآن كريم كې د خپل طرف نه مطلب راباسل او كوم مطلب چې د قرآن نه ظاهريږي هغه نه اخستل گمراهي ده.

## څلورمه عقيده

چيرته چې د الله پاك او د رسول ﷺ د اطاعت ذكر وي. ددېنه مراد د مركزي حكومت اطاعت دى. (۳)

**جواب** : دا ظاهره ده او هر يو پوهيږي چې په اسلام كې د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ اطاعت بنياد دى. بيا ټول شرعي حكمونه د هغې د لاندې دي. همدا خبره قرآن او حديث كې په ډيرو ځايونو كې شوې ده.

۱: ﴿ قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴾ (۴)

---

(۱) اسلامى نظام ص ۸٦، شائع كرده طلوع اسلام كراچى، معارف القران : ٤/ ٦٢٦
(۲) سورة حم آيت : ٤٠
(۳) معارف القران : ٤/ ٦٣١
(۴) سورة آل عمران آيت : ۳۲

**ترجمه** : تاسو خلکو ته ووايې! د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ اطاعت کوی. که تاسو د هغه نه اعراض کوی؛ نو الله پاك کافران نه خوښوي.

د پورته ياد شوي آيت نه بالکل صفا واضحه ده، چې د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ د اطاعت نه اعراض کوی. هغه به کافر شي. پدې وجه هغوی چې څه کوي. هغه د الله پاك خوښ نه دي.

## پنځمه عقيده

قرآن کريم کې راځي: ﴿ أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ﴾ کې د اولو الامر څخه مراد افسران ماتحت دي. ([1])

**جواب** : دا عقيده هم د قران او احاديث او اجماع بالکل خلاف ده. د ټولو مفسرينو په دې باندې اتفاق دی چې په: ﴿ أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ...الخ ﴾ کې د اطيعواالله څخه مراد د الله پاك اطاعت دی، چې د الله تعالی حکم د قرآن کريم په صورت کې موجود دی.

د ﴿ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ﴾ څخه مراد د رسول الله ﷺ اطاعت دی. چې رسول الله ﷺ په خپل عملي ژوند سره امت ته ورکړی، هغه د احاديثو او د اقوال صحابه رضوان الله عليهم اجمعين په صورت کې اوس هم محفوظ دي.

د ﴿ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ﴾ څخه مراد په قول د ابن عباس رضي الله عنهما

﴿ أهل الفقه والدين وأهل طاعة الله الذين يعلمون الناس معانی دينهم ويأمرونهم بالمعروف وينهونهم عن المنكر فأوجب الله طاعتهم على العباد ﴾ ([2])

**ترجمه** : دا هغه حضرات دي چې د فقه او دين منونکي دي. د الله پاك اطاعت کونکي دي، د نيکی حکم کوي او د بدی څخه خلک منع کوي او الله پاك د داسې خلکو اطاعت په بندګانو فرض کړی. (هم دا تفسير تقريبا ټول مفسرين بيانوي).

---

[1] اسلامی نظام : ص ۱۱۰، ۱۱۱

[2] تفسير الدر المنثور : ۲/۱۷۶

خلاصه دا چې ددې آيت کريمه څخه افسران مراد کول. صراحتاً د نصوصو د خلاف کيدو له امله کفر دی

## شپږمه عقيده

د رسول الله ﷺ کار صرف دومرد وو. چې هغه د الله پاك قانون خلکو ته ورسوي [۱]

**جواب**: دا عقيده سائل هم د اهل سنت والجماعت په نزد کفر دی. دا ځکه قرآن کريم چې د رسول الله ﷺ د بعثت کوم مقصد بيان کړی. دا عقيده د هغې نه بالکل خلاف ده او د رسول الله ﷺ د بعثت دری مقصدد دي

۱. ﴿ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ [۲]

**ترجمه**: اې زمونږ ربه! پدې خلکو کې هم د هغوی نه يو رسول راولېږه چې په هغوی ستا آيتونه لولي. د کتاب او حکمت تعليم ورکوي او د هغوی تزکيه کوي

په پورته آيت کريمه کې د رسول الله ﷺ د بعثت يو مقصد دا بيان شوی. چې ستاسو په ذمه دا هم ده چې د الله پاك د آيتونو تعليم ورکړي. دا خبره په نورو مقاماتو باندې هم بيان شوې ده. مثلاً:

۲. ﴿ إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ ﴾ [۳]

**ترجمه**: بېشکه مونږ ستا طرفته دا کتاب په حق سره نازل کړی. چې د خلکو ترمنځ څه چې الله پاك تاسو ته ښيي. د هغې مطابق فيصله وکړی

په قرآن کې يو ځای د رسول الله ﷺ په اړه د الله پاك وينا ده

۳. ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ [۴]

---

[۱] سليم کے نام (پرويز) ۲/۳٤، اداره طلوع اسلام کراچی.
[۲] سورة البقرة آيت: ۱۲۹
[۳] سورة النساء آيت: ۱۰۵
[۴] سورة النساء: ٦٤

ترجمه مونږ چې رسول الله ﷺ را ولیږلو . ددې لپاره چې د الله پاك په حكم د هغه اطاعت وكړي

په همدې وجه علامه شامي رحمه الله فرمايي

﴿ قال ابو حنيفة واصحابه من برئ من محمد صلى الله عليه وسلم او كذب به فهو مرتد ﴾ [1]

ترجمه امام ابو حنيفه رحمه الله او د هغوی ملګري رحمهم الله فرمايي چې كوم سړی هم د رسول الله ﷺ څخه د بې زاری اظهار وكړي، يا د رسول الله ﷺ تكذيب وكړي: نو هغه مرتد دی

## اوومه عقيده

دا عقيده چې د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته به د رسول الله ﷺ اطاعت نه وي

**جواب** : دا عقيده هم د اهل سنت والجماعت په نزد د رسول الله ﷺ د اطاعت څخه انكار او همدغه شان د رسول الله ﷺ د رسالت او نبوت څخه د انكار په وجه كفر دی. په قرآن كريم كې د رسول الله ﷺ د اطاعت حكم دی. په قرآن او حديث كې د رسول الله ﷺ نبوت تر قيامته پورې بيان شوی. پدې وجه د رسول الله ﷺ د اطاعت حكم په ډيرو آيتونو كې شوی، د هغې نه څو آيتونه دا دي:

۱ ﴿ مَنْ يُطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ ﴾ [2]

ترجمه : چا چې د رسول الله ﷺ اطاعت وكړ. هغه يقينا د الله پاك اطاعت وكړ

۲ ﴿ وَأَطِيْعُوا اللهَ وَالرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴾ [3]

ترجمه : د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ اطاعت كوی! چې په تاسو رحم وكړی شي.

۳ ﴿ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَلَا تُبْطِلُوْا أَعْمَالَكُمْ ﴾ [4]

ترجمه : اې مؤمنانو! د الله پاك اطاعت كوی او د رسول الله ﷺ اطاعت وكړی او خپل اعمال مه بربادوی.

---

[1] در مختار: ۴۰۱

[2] سورة النساء : ۸۰

[3] سورة محمد : ۳۳

[4] آل عمران آيت: ۱۳۲

۴: ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنْتُمْ تَسْمَعُونَ ﴾ (۱)

**ترجمه** : اې مؤمنانو! د الله پاك او رسول ﷺ اطاعت کوی او د هغه نه مخ مه اړوی د اوریدلو نه وروسته.

دا حکم په نبوي ﷺ احادیثو کې هم دی. چې د رسول الله ﷺ اطاعت تر قیامته پورې دی او د هغوی د اطاعت نه بغیر نجات ممکن نه دی:

۱. ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبَى قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، وَمَنْ يَأْبَى قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى ﴾ (۲)

**ترجمه** : د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما ټول امت به جنت ته ځي. سیوا د هغه چا نه چې انکار یې وکړ. عرض وکړی شو. چې دا کوم خلک دي؟ وې فرمایل: چا چې زما اطاعت وکړ. هغه به جنت ته ځي او چا چې نافرماني وکړه: نو هغه (جنت ته د تلو نه) انکار وکړ. (هغه به جهنم ته ځي)

۲: ﴿ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ مُرْسَلاً قَالَ رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم: تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ، لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا: كِتَابَ اللهِ، وَسُنَّةَ رَسُولِهِ ﴾ (۳)

**ترجمه** : امام مالك رحمه الله مرسلا روایت کړی: چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زه په تاسو کې دوه شیان پریږدم. تر څو چې تاسو دا په مضبوطوالي سره نیولی وي. تاسو به هیڅکله ګمراه نه شی. ۱: کتاب الله. ۲. سنت رسول الله ﷺ (یعنې احادیث)

۳: ﴿ وَعَنْ جَابِرٍ رضى الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم: وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوسَى فَاتَّبَعْتُمُوهُ وَتَرَكْتُمُونِي لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ، وَلَوْ كَانَ حَيًّا وَأَدْرَكَ نُبُوَّتِي لَاتَّبَعَنِي ﴾ (۴)

**ترجمه** : د سیدنا جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: قسم دی په هغه

---

(۱) سورة الانفال آیت : ۲۰

(۲) بخاری شریف و کذا مشکوة: ۳۱

(۳) موطاء امام مالك و کذا مشکوة : ۳۱

(۴) سنن الدارمی وکذا مشکاة : ۳۲

ذات چې د محمد ﷺ نفس د هغه په لاس کې دی، که تاسو ته موسی علیه السلام راشي او تاسو د هغه تابعداري وکړي او ما پريږدي؛ نو ضرور به تاسو د نيغې لارې نه گمراه شی. که هغه ژوندی وی او زما نبوت يې موندلی وی؛ نو ضرور به يې زما تابعداري کړې وی.

## اتمه عقيده

دا عقيده چې د رسول الله ﷺ د ختم نبوت مطلب دا دی: چې اوس به خلک خپلې فيصلې په خپله کوي

**جواب** : دا مطلب د ختم نبوت چا هم ندی بيان کړی. نه به چا اوريدلي وي. چې اوس به خپله فيصلې کوي. بلکې د ختم نبوت مطلب دا دی: چې په رسول الله ﷺ باندې نبوت او رسالت ختم شو او اوس به د رسول الله ﷺ نه وروسته هيڅ نبی او رسول نه راځي. د رسول الله ﷺ تعليمات به تر قيامته پورې رهنمايي کوي.

دا ويل چې د رسول الله ﷺ نه وروسته به اوس هر يو خپله فيصله کوي. دا عقيده هم د رسول الله ﷺ د رسالت انکار دی. د رسول الله ﷺ اتباع قرآن کريم په هره زمانه کې د کولو حکم کړی. د رسول الله ﷺ د دنيا نه د تشريف وړولو نه وروسته چې کله هم څه مسئله صحابه کرام رضي الله عنهم ته راپيښه شوې ده؛ نو هغوی د ټولو نه مخکې د رسول الله ﷺ په تعليماتو او ارشاداتو کې لټون کړی او عمل يې پرې کړی. يا د رسول الله ﷺ په تعليماتو باندې قياس کولو سره به يې عمل کولو. خپله يې فيصلې نه دي کړي.

## نهمه عقيده

دا عقيده چې د مرکزي حکومت ټول عبادتونه، معاملې د زمانې په لحاظ سره بدلولی شي.

**جواب** : دا عقيده هم صريح کفر دی. د مسلمانانو عقيده دا ده: چې رسول الله ﷺ خاتم الانبياء دی، قرآن کريم آخري کتاب دی، په دين او شريعت کې به اوس تر قيامته پورې هيڅ قسم بدلون نه کيږي، که حالات هر څنګه وي. لکه چې د الله پاک ارشاد دی:

۱. ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ [۱]

**ترجمه** : بېشکه دین د الله پاك په نزد اسلام دی

۲. ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [۲]

**ترجمه** . څوك چې د دین اسلام نه سېوا بل دین غواړي: نو د هغه نه به هیڅکله قبول نه کړی شي او هغه به په آخرت کې د نقصان پورته کوونکی وي

۳. ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾ [۳]

**ترجمه** : بېشکه ستاسو لپاره د رسول الله ﷺ ذات غوره نمونه ده. څوك چې د الله پاك د قیامت د ورځې امید ساتي او الله پاك ډېر یادوي

همدغه شان د ډېرو احادیثو او اجماع امت څخه هم دا خبره ثابتیږي. چې شریعت محمدي آخري شریعت دی پدیکې به تر قیامته پورې څه بدلون نه راځي

## لسمه عقیده

د الله پاك (معاذ الله) په خارج کې وجود نشته. بلکې الله د هغه صفاتو نوم دی. چې انسان یې له ځانه سره تصور کوي. [۴]

**جواب** : دا عقیده ساتل چې (معاذ الله) د الله پاك هیڅ وجود نشته. دا عقیده ښکاره کفر دی. د قران، حدیث او اجماع امت ټولو څخه ددې عقیدې باطل والی ثابت دی. د قرآن کریم یو نه په سوونو آیتونو کې د الله پاك صفات بیان شوي دي. مثلاً

۱. ﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ [۵]

**ترجمه** : ستاسو ټولو معبود یو دی. نشته حقدار د بندګۍ سېوا د هغه نه. ډېر مهربانه او بخښونکی ذات دی.

---

[۱] سورة آل عمران آیت : ۱۹
[۲] سورة آل عمران آیت: ۸۵
[۳] سورة احزاب آیت: ۲۱
[۴] معارف القران : ٤/ ٤٢٠
[۵] البقرة : ۱٦۳

۲. ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ فَأَنّٰى يُؤْفَكُونَ ﴾ (۱)

**ترجمه** : که ته د هغوی نه پوښتنه وکړې. چې ځمکې او اسمانونه چا پيدا کړي دي او لمر، سپوږمی چا تابع کړي دي؛ نو ضرور به ووايي چې الله پاك؛ نو هغوی کوم طرفته اړول شوي.

۳ ﴿ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ اللّٰهُ الصَّمَدُ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ﴾ (۲)

**ترجمه** : تاسو ووايئ بېشکه الله يو دی. الله پاك بې نيازه دی. نه يې څوك زيږولی او نه هم له چا زيږيدلی دی او د هغه برابر څوك هم نشته

## يوولسمه عقيده: چې د آخرت نه مراد مستقبل دی.

**جواب** : دا عقيده هم په قران. حديث. اجماع او قياس سره باطله دہ. د آخرت څخه انکار کول هم کفر دی. تر ننه پورې د امت ټولو عالمانو د آخرت نه مراد د مرګ نه وروسته ژوند اخستی دی. ددې خلاف مفهوم مراد اخستل دا د قرآن او حديث له ځانه څخه جوړ شوی تاويل دی. دا قابل قبول نه دی. قرآن کې په ګڼو ځايونو کې د آخرت ياد شته. مثلاً:

۱ ﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ﴾ (۳)

**ترجمه** : اې خلکو! که ستاسو په دوباره ژوندي کېدو کې شك وي: نو يقينا مونږ تاسو د خاورې څخه پيدا کړي يئ بيا مو د نطفې څخه پيدا کړئ.

۲. ﴿ قَالَ مَن يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ ﴾ (۴)

**ترجمه** : کافر وايي: څوك دی چې رژيدلي هډوکي به بيا راژوندي کړي. تاسو ووايئ: هم هغه ذات چا چې په لومړي ځل ژوندي کړي وو. هم هغه به يې دوباره ژوندي کوي، هغه په هر پيداوښت خبر دی.

---

(۱) عنکبوت: ٦١

(۲) سورة اخلاص

(۳) سورة حج : ٥

(۴) يس : ٧٨، ٧٩

# دولسمه عقیده

## چې د سید نا ادم علیه السلام هیڅ وجود نشته ددېنه مراد نوع انساني دی.

**جواب** : دا عقیده د هم د اسلام په رڼا کې کفر دی. ځکه چې ددې عقیدې له امله د قرآن کریم د ډیریو آیتونو او حدیثونو د منلو څخه چې په هغې کې د سیدنا آدم علیه السلام یاد راغلی، د ټولو څخه انکار لازمیږي.

قرآن کریم کې یو ځای نه په ډیرو ځایونو کې د سیدنا آدم علیه السلام ذکر راغلی دی. مثلا

۱. ﴿ وَعَلَّمَ ادَمَ الْاَسْمَاءَ ﴾ (۱)

**ترجمه** : مونږ آدم علیه السلام ته د شیانو نومونه وښودل.

همدغه شان په حدیث کې راځي:

۱: ﴿ اناسید ولدادم ﴾ (۲)

**ترجمه** : زه د آدم علیه السلام د اولاد سردار یم.

۲: ﴿ حَامِلُ لِوَاءِ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، تَحْتَهُ آدَمُ ﴾ (۳)

**ترجمه** : د قیامت په ورځ به زه د حمد د بیرغ پورته کوونکی یم. د هغې د لاندې به آدم علیه السلام وي.

همدغه شان د عقایدو په کتابونو کې لیکل شوي. مثلا:

۱: ﴿ بقوله لا اعلم ان ادم علیه السلام نبی او لا؟ ﴾ (۴)

**ترجمه** : هغه چا ته به کافر ویل کیږي. څوک چې داسې ووایي. چې ماته معلومه نه ده چې آیا سیدنا آدم علیه السلام نبي وو یا نه؟

په شرح عقاید کې هم لیکلي دي:

---

[1] البقرة : ۳۱

[2] مشكاة : ۵۱۱

[3] ترمذی کذا فی المشکاة ص ۵۱۳، ۵۱٤

[4] البحر الرائق : ۵/۱۳۰

۲ ﴿ اول الانبياء آدم وآخرهم محمد صلى الله عليه وسلم اما نبوة ادم عليه السلام فبالكتاب الدال على انه قد امر ونهي ... كذا السنة والاجماع فانكار نبوته على ما نقل على البعض يكون كفرا ﴾ [۱]

**ترجمه** : د ټولو نه لومړی نبي سيدنا ادم عليه السلام دی او آخري نبي محمد ﷺ دی. د سيدنا آدم عليه السلام د نبوت ثبوت د قرآن کريم څخه شوی دی. چې ترې معلومېږي هغوی ته د اوامرو او نواهيو حکمونه ورکول شوي وو

همدغه شان د سنت او اجماع څخه هم د سيدنا ادم عليه السلام نبوت ثابت دی. ددېنه انکار کول لکه ځينې خلک چې يې کوي دا کفر دی

## دیارلسمه عقیده

د رسول الله ﷺ پرته د قرآن کريم څخه بله کومه معجزه نه وه . [۲]

**جواب** : علماء کرام فرمايي: چې د معجزاتو انکار هم د قرآن کريم د آيتونو څخه انکار دی. دغه شان دا هم کفر دی. د عقايدو په کتابونو کې د رسول الله ﷺ درې قسمه معجزې بيان شوي دي.

يو قرآن کريم. دويم د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ ژوند

دريم هغه معجزې چې خوارق العادة وي. مثلا د سپوږمۍ دوه ټوټې کېدل. لږ خوراک د ډېرو لپاره کافي کېدل. د کاڼو تسبيحات خلکو ته اورول. لږې اوبه ډېرېدل. [۳] چې ځينې يې د قرآن کريم په آيتونو او متواترو احاديثو سره ثابت دي. پدې وجه د هغو څخه انکار کول هم کفر دی. [۴]

## څوارلسمه عقیده

دا عقيده ساتل چې لمونځ خو معاشره په هغه بنيادونو باندې قائمول چې د نوع انساني د ربوبيت آبادي پرې ولاړه ده ددې نوم دی

---

[۱]) شرح عقائد : ۱۲۵

[۲]) سليم کے نام خط : ۳/۳٦، ۳/۹۱، ۹۲، معارف القران : ۱/۷۳۱

[۳]) بيشماره معجزې ښکاره شوي: دا کتاب وګورئ: اتحاف شرح احياء العلوم : ۲/۲۰۳ تا ۲۱۲

[۴]) المسامره عقائد الاسلام

**جواب** : د لمانځه په اړه دا عقيده ساتل سراسر کفر دی. ځکه چې د لمانځه مفهوم د رسالت په زمانه کې او تر ننه پورې په متواترې طريقې سره هغه دی. چې په هغې کې قيام. رکوع. سجده او قعده وغيره وي. پدې اړه د نسيم الرياض ليکوال ليکي

﴿ ولاترتاب بذلك بعد والمرتاب في ذلك المعلوم من الدين بالضرورة والمنكر لذلك بعد البحث عنه وصحبة المسلمين کافر بالاتفاق ﴾[1]

**ترجمه** : د لمانځه د مشهورې طريقې څخه انکار يا پديکې شك نه دي کول پکار. کوم سړی چې شک کوي. د هغه په اړه د دين د عالمانو دا فتوی ده چې د دين په ضرورياتو کې د يو کار نه انکار کول سراسر بالاتفاق کفر دی.

## پنځلسمه عقيده

د رسول الله ﷺ په زمانه کې لمونځ دوه وخته وو. (سهار او مابنام)[2]

**جواب** : دا بالکل دروغ دي. د پنځه وخته لمانځه وختونه متواتر دي. ددېنه انکار کول هم د علماء عقايد په نزد کفر دی. هم دا عقيده په يوه زمانه کې د خوارجو ود. هغوی ته هم علماء کرامو کافران ويلي

علامه شهاب الدين خفاجي رحمه الله فرمايي:

﴿ وکذلك على کفر من قال من الخوارج ان الصلاة الواجبة طرفي النهار فقط والمراد بطرفي النهار اوله واخره ﴾[3]

**ترجمه** : د امت د عالمانو اجماع ده. د هغه خوارجو په کفر چې دا وايي لمونځ صرف د ورځې په يو سر او بل سر باندې فرض دی. يعنی د ورځې په شروع او اخر کې

## شپاړسمه عقيده

زکوة د ټيکس نوم دی. هغه چې اسلامي حکومت يې د مسلمانانو څخه اخلي.

---

[1]) نسيم الرياض : ٤/٥٥٣
[2]) لغات القران : ٣/١٠٤٣، ١٠٤٤
[3]) نسيم الرياض : ٤/٥٥٠

**جواب** : دا عقيده هم د کفر ده. ځکه چې زکوة د قرآن. احاديثو. اجماع او قياس ټولو دلائلو څخه ثابت دي، مثلا په قرآن کريم کې دي:

﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ﴾ [1]

**ترجمه** : لمونځ قائم کړی او زکوة ورکړی.

﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا ﴾ [2]

**ترجمه** : د هغوی د مال څخه زکوة واخله؛ ته هغوی پدې مال سره پاکوې او تزکيه يې کوې.

دغه شان په ډيرو احاديثو کې ددې ثبوت دی.

پدې وجه علماء کرام فرمايي: چې زکوة ادا کول فرض دي او څوک چې يې نه ادا نه کوي. هغه فاسق دی او انکار يې کفر دی. [3]

## اولسمه عقيده

نن سبا زکوة نشته. ځکه چې موږ ټيکسونه ادا کوو : نو اوس زکوة واجب نه دی. [4]

**جواب** : دا عقيده ساتل چې د ټيکس په موجودګۍ کې زکوة واجب نه دی. دا عقيده هم د کفر ده، ځکه چې د زکوة حکم د هر مسلمان لپاره تر قيامته پورې دی. د کوم چې په قرآن کريم کې بار بار د ادا کولو تاکيد شوی دی او څوک چې زکوة ادا کوي. هغه هم په قرآن کريم کې ټاکل شوی دی.

﴿ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا ﴾ [5]

**ترجمه**:بېشکه زکوة د فقيرانو. مسکينانو او په هغوی باندې د ټاکلي عملې لپاره دی.

---

[1] سورة البقرة آيت : ٤٣
[2] سورة توبة آيت : ١٠٣
[3] فتح الملهم ٢/١، بذل المجهود ٤/١، تعليق الصبيح : ٢/٢٧٥ وغيره
[4] نظام ربوبيت ص : ٨٧
[5] سورة التوبة آيت : ٦٠

دا ویل چې زکوة واجب نه دی. دا د قرآن. حدیث او اجماع ټولو څخه خلاف خبره ده. چې انکار یې کفر دی.

## اتلسمه عقیده

## حج د عالم اسلام د عالمي کانفرنس نوم دی. (١)

**جواب** : دا عقیده ساتل دا هم د قران. حدیث. اجماع او قیاس ټولو خلاف کیدو له امله کفر دی.

په قرآن کریم کې دي!

١: ﴿ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ (٢)

**ترجمه** : او د الله پاك لپاره د خلکو په ذمه ددې کور حج کول دي. یعني د هغه چا لپاره چې دېته د تلو توښه لري او څوك چې ترې انکار کوي: نو بېشکه الله پاك د ټول عالم نه بې پرواه دی.

٢: ﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ﴾ (٣)

**ترجمه** : د الله پاك لپاره حج او عمره پوره کړی.

د حدیثو په هر کتاب کې د حج په اړه ډېر حدیثونه روایت شوي دي

د حج نه ادا کول د فرض کیدو باوجود فسق دی او ددې څخه انکار کول بالاتفاق کفر دی.

علامه شهاب الدین خفاجي رحمه الله فرمایي:

﴿ وكذلك يحكم بكفره ان انكر مكة او البيت او المسجد الحرام او انكر صفة الحج التى ذكرها الفقهاء ومن واجباته واركانه ونحوها او قال الحج واجب فى القران واستقبال القبلة كذلك ولكن كونه اى المذكور من الحج والاستقبال على هذه الهيئة المتعارفة شرعا عند سائر الناس وان تلك

---

(١) لغات القران : ٢/٤٧٤

(٢) سورة آل عمران آیت : ٩٧

(٣) سورة البقرة آیت : ١٩٦

المعروفة هی حکم والبیت والمسجد الحرام لاادری ﴾

**ترجمه** : همدغه شان که چا د مکې یا بیت الله یا مسجد حرام څخه انکار وکړ. یا یې د حج د یو داسې طریقې څخه انکار وکړ، چې فقهاء کرامو د حج د واجباتو یا ارکان حج وغیره څخه شمار کړی وي.یا یې داسې وویل چې حج په قرآن کریم کې فرض دی او همدغه شان د قبلې طرفته مخ کول هم د شریعت هغه مشهورد طریقه چې په خلکو کې منل شوې اوهم هغه مشهورځای ته چې بیت الله اومسجد حرام دی ما ته معلوم نه دی. وړاندې فرمایي.

﴿ فهذا القائل ومثله من یشك فی معانی النصوص المتواترة لا مریة فی تکفیره ای المکة بکفره لانکاره ماعلم من الدین بالضرورة وابطاله الشرع وتکذیبه لله ورسوله ﴾ [۱]

**ترجمه** : داسې ویونکی او هغه سړی چې د نصوصو په هغه معناګانو کې شك کوي چې هغه متواتر دي. د هغې په کفر کیدو کې شك نشته. ځکه چې هغه د دین د ضروریاتو څخه انکار کړی او د شریعت باطلونکی دی. د الله پاك او د هغه د رسولﷺ تکذیب کوي (پدې وجه به داسې سړی کافر وي.

## نولسمه عقیده

قرباني په عالمي کانفرنس کې شریکانو ته د خوراك ورکولو نوم دی. نور د قرباني حکم چیرته هم نشته. [۲]

**جواب** : قرباني هم د اسلام د اصلي عبادتونو څخه یو عبادت دی. خپله په قرآن کریم کې ددې حکم شته. مثلاً:

۱: ﴿ قُلْ اِنَّ صَلَاتِیْ وَنُسُکِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴾ [۳]

**ترجمه** : تاسو ووایی! بیشکه زما لمونځ. زما قرباني. زما مرګ او ژوند ټول د الله پاك لپاره دي. چې د ټول عالم تربیت کونکی دی.

---

[۱]) نسیم الریاض : ۴/۵۵۳

[۲]) رساله قربانی ص : ۳، قرانی فیصلی ص : ۵۵، ۱۰۴

[۳]) سورة الانعام آیت : ۱۶۲

۲. ﴿ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ﴾[1]

**ترجمه** : د خپل رب لپاره لمونځ کوه او قرباني کوه.

په يو دوه حديثونو کې نه بلکې په ډيرو حديثونو کې د قرباني ذکر شته. رسول الله ﷺ همېشه قرباني کړې ده، تر ننه پورې همداسې په دې عبادت عمل کېږي راروان دی، چا هم ددې انکار يا تاويل ندی کړی.

په همدې وجه علامه ابن نجيم رحمه الله فرمايي:

﴿ ويكفر بانكاره اصل الوتر والاضحية ﴾[2]

**ترجمه** : او هغه سړی چې د وتر يا قرباني انکار کوي، هغه به کافر شي.

## شلمه عقيده

د قرآن په روح سره به ټول مسلمانان کافر وي. د موجوده زمانې مسلمانان د برهمن معاشرې مسلمانان دي.[3]

**جواب** : مسلمانانو ته کافر ويل، ددې په احاديثو کې په سختې سره منع راغلې. علماء کرام فرمايي: مسلمان ته کافر ويل، خپله ويونکی پرې کافر کيږي

## يوويشتمه عقيده

صرف څلور شيان حرام دي. ۱: بهيدونکې وينه. ۲: د خنزير وينه. ۳: د غير الله طرف ته منسوب شيان. ۴: مرداره

**جواب** : دا عقيده هم د قرآن، حديث او اجماع وغيره څخه خلاف ده. ځکه چې په قرآن کريم کې ډيرو شيانو ته حرام ويل شوي. مثلا:

﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ ﴾[4]

---

[1] سورة الكوثر آيت : ۲
[2] البحر الرائق : ۵/۱۳۱
[3] سليم كے نام پينتيسواں خط ... ۳/۱۹۷ تا ۱۹۹
[4] سورة المائده آيت : ۳

همدغه شان په حدیث کې د ماتونکو حیواناتو د خوراك څخه منع راغلې. لکه لیوه (شرمخ). زمری وغیره نور حیوانات.

ددېنه علاوه هم فقهاء کرامو ډیرو شیانو ته حرام ویلي.

## دوویشتمه عقیده

د جنت او جهنم هم څه حقیقت نشته دا صرف د انساني ذات د کیفیاتو نومونه دي. [1]

**جواب**: د جنت او جهنم وجود د قرآن کریم د یو دوه نه بلکې د سوونو آیتونو څخه ثابت دي. همدغه شان په حدیث نبوي ﷺ کې هم په کثرت سره ذکر دي: نو ددې انکار هم د قرآن او حدیث د انکار کولو له امله کفر دی. مثلا

## د جهنم په اړه آیتونه

۱: ﴿ قِيلَ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴾ [2]

**ترجمه**: ورته به وویل شي. چې د جهنم دروازو ته داخل شئ! په هغې کې به د همېشه لپاره اوسیږئ او هغه د متکبرینو بد استوګن ځای دی

۲: ﴿ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴾ [3]

**ترجمه**: بېشکه جهنم ډیر بد ځای دی د ایساریدو او د اوسیدو.

## د جنت په اړه آیتونه

۱: ﴿ قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ﴾ [4]

**ترجمه**: وبه ویل شي چې جنت ته داخل شه!

۲: ﴿ وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ﴾ [5]

---

[1] لغات القران: ۱/٤٤۹، شائع کرده اداره طلوع اسلام لاهور
[2] سورة الزمر آیت: ۷۲
[3] سورة الفرقان آیت: ٦٦
[4] سورة یس آیت: ۲٦
[5] سورة الزمر آیت: ۷۳

**ترجمه** : کوم کسان چې د خپل رب نه ویریږي (یعني متقیان وي) هغوی به د جنت طرفته وفد جوړولو سره بوتلی شي
د جهنم او جنت په اړه د عقایدو په ټولو کتابونو کې لیکل شوي دي.
﴿ ان الجنة والنار مخلوقتان ﴾ [۱]
**ترجمه** : بېشکه جنت او جهنم پیدا شوي دي.
ټول بدني او روحاني خواهشات او ارام به جنتیانو ته ملاویږي. ټول بدني او روحاني تکلیفونه به جهنمیانو ته حاصل وي [۲]
د دې عقیدې په اړه علامه شهاب الدین خفاجي رحمه الله فرمایي
﴿ وکذلك نکفر من انکر الجنة والنار نفسیهما او محلهما ﴾ [۳]
**ترجمه** : مونږ به هغه چا ته د کفر نسبت کوو. څوك چې د جنت او جهنم انکار کوي. یا د هغې د مقاماتو څخه انکار کوي

## د پرویزیت (منکرین حدیث) په اړه د مفتیانو رایې

د محدث العصر مولانا محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله په وینا مفتي اعظم پاکستان مفتي ولي حسن ټونکي رحمه الله د پرویزیت خلاف یوه فتوی ولیکله: چې په هغې کې یې د هغوی عقاید واضح کړه. قران. حدیث او د عقایدو د کتابونو څخه یې د یوې یوې عقیدې جواب ورکړ، بیا دا فتوی د عالم اسلام د ټولو مسلکونو تقریبا ۱۰۵۰ مشهورو عالمانو له خوا تصدیق شوه. چا هم د هغوی د کفر څخه انکار نه دی کړی. هغه د متفقه فیصلې په نوم خپره شوه. چې په هغې کې د عالم اسلام ټولو مسلکیانو د پرویزیت فرقې ته کافران ویلي دي

[۱] شرح عقائد نسفی
[۲] عقائد اسلام : ۸۹
[۳] نسیم الریاض : ٤/٥٥٥

# د پرویزیت، چکړالوي او منکرین حدیث په اړه د زیات تحقیق لپاره لاندې کتابونه وګورئ

- د انکار حدیث نتائج .... شیخ الحدیث مولانا محمد سرفراز خان صفدر صاحب
- د حدیث رسول ﷺ تشریعي مقام .... مولانا محمد ادریس میرٹھی رحمه الله
- نصرة الحدیث .... مولانا حبیب الرحمن اعظمی رحمه الله
- حفاظت حدیث وحجیت حدیث ... محترم فهیم عثمانی
- تدوین حدیث ....... علامه مناظر حسن گیلانی رحمه الله
- فتنه انکار حدیث ........ مولانا مفتی رشید احمد لدھیانوی رحمه الله
- فتنه انکار حدیث ..... مفتی اعظم پاکستان مفتی ولی حسن خان ٹونکی رحمه الله پرویز کی متعلق علماء کرام کا متفقه فیصله.
- شوق حدیث ...... شیخ الحدیث مولانا محمد سرفراز خان صفدر رحمه الله
- فہم قران ....... مولانا سعید احمد اکبر ابادی
- اسلام میں سنت اور حدیث کا مقام (ترجمه) کتاب السنة ومکانتها (مترجم) مولانا محمد ادریس میرٹھی
- حجیت حدیث .... مولانا ادریس کاندھلوی صاحب رحمه الله
- پرویز اور قرآن ..... مولانا مکرر الله صاحب رحمه الله
- مقدمه درس ترمذي (اول) ....... افادات مولانا محمد تقی عثمانی صاحب
- فتنه انکار حدیث اور اس کا پس منظر ... مولانا محمد عاشق الٰهی بلند شهری رحمه الله
- ضرورت حدیث ..... مولانا پروفیسر کریم بخش لاهوری
- مقام حدیث مع ازاله شبهات ... مولانا فیض احمد ککروی
- مقدمه ترجمان السنة ...... مولانا بدر عالم میرٹھی صاحب رحمه الله
- تاریخ حدیث .... پروفیسر عبدالصمد صارم الزهری
- حدیث قران کی تشریح کرتی هی ...... چوهدری اصغر صاحب
- آثار الحدیث ...... علامه خالد محمود صاحب
- انکار حدیث کیوں؟ مولانا محمد یوسف لدھیانوی صاحب رحمه الله

# [د جماعت اسلامي فرقه]

## د جماعت اسلامي فرقې تاریخ

پدې اړه خپله د جماعت اسلامي ډلې بنسټګر لیکي:

کوم کار چې مونږ په خپل لاس کوو چې هغه په اخلاقي اصولو تګ. اصلاح کول او د دنیا نظم برابرول. ددې تقاضا دا ده: چې اخلاقي حیثیت سره مونږ خپل ځان د دنیا صالح ترین ډله ثابته کړو.[1]

ددېنه وروسته لیکي:

زمونږ پروګرام دا دی: چې مونږ دا نظام درهم برهم کول غواړو. چې په هغې باندې د ژوند موجوده غلط نظام ولاړ دی. د هغه په ځای هغه فکري نظام په زړونو کې راولو. چې په هغې باندې د ژوند د صحیح نظام بنسټ ولاړ دی.[2]

د ټولې دنیا نظام د فکر ختمولو لپاره دا جماعت په عمل کې راغلی. په شروع کې یې د دین د اقامت او الهي حکومت نعره پورته کړه: خو بیا ددېنه وروسته د فتنه عقاید او فتنه صحابه رضي الله عنهم په شان ګمراه کونکې لیکنې د هغوی د قلمو څخه مخې ته راغلې. ځکه چې پدې لیکلو کې یو طاقت وو. پدې طاقت سره زړه راښکونکی لیک به وجود ته راغلو، چې په هغې سره سادګان خلک په هغوی پسې مین شو.

دغه شان ورسره په شروع کې د مولانا منظور نعماني. مولانا ابو الحسن علي ندوي. مولانا مناظر احسن ګیلاني. مولانا عبدالماجد دریا آبادي او مولانا سید سلیمان ندوي وغیره تائید هم وو.

دې ټولو ته په کتو سره د خلکو سترګې پورته شوې او ددوی له طرفه یې امیدونه شروع شول: خو په شپږو میاشتو کې دننه دننه مولانا منظور نعماني او مولانا ابو الحسن ندوي مستعفی شو او بیا ترې په مزه مزه ټول جدا شو او بیا د ټولو

---

[1] ترجمان ۲٦ عدد ۳/۱۰۹

[2] ترجمان جلد : ۳۰/عدد ۵/۲۹۷ ۰

اهل حق (دیوبندیانو) پدې اتفاق شو چې د مودودي صاحب تحریرات د نوې فتنې پیدا کولو لوی باعث دی. کله چې د مودودي صاحب په قلم تفهیم القران، ترجمان القران او خلافت و ملوکیت وغیره وجود ته راغلل: نو ټولو علماء کرامو د هغه ملګرتیا پرېښوده.

د مودودي صاحب د ګمراه کیدو لویه وجه دا شوه. چې هغوی د دین په څېر اهمې فریضې زده کړه یې له چا نه ده کړې. صرف او صرف یې په خپله مطالعه اعتماد کړی. ددې سره سره یې دا بد قسمتي وه. چې د نیاز فتح پوري په شان د ملحد او زندیق ملګرتیا هم کړې وه. ددې سره سره الله پاك هغوی ته د قلم زور او د لیك د شوخی مستې طوفاني څپې هم ورکړې وې. یو خوا د ذهن آزادي او بل لوري ته په قلم کې هغه طاقت چې څنګه غواړي، خپل لیك هغه طرف ته واړوي. پدې وجه د هغوی د قلم نه داسې لیك مخې ته راغی. چې د هغې د یو مسلمان نه امید نشي کید؛

د هغوی په اړه مولانا محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله لیکي:

کاش: چې د مولانا مودودي صاحب په شان د ذهین او هوښیار سړي صحیح تربیت شوی وی؛ دی به د امت لپاره باعث برکت او د اسلام لپاره د فخر لایق وی.

## دا فرقه کله وجود ته راغله؟

د جماعت اسلامي فرقه وجود د شعبان په میاشت ۱۳۶۰هـ کې د اګست ۱۹۴۱ء مطابق وجود ته راغله

## د جماعت اسلامي د بنسټګر حالات

پیدایش یې په ۲ رجب ۱۳۲۱هـ کې د ۲۵ ستمبر ۱۹۰۳ء مطابق د حیدر آباد دکن په ښار اورنګ آباد کې شوی دی. اګر چې د هغوی خاندان په دهلي کې آباد وو؛ خو د هغوی ماشومتوب په اورنګ آباد کې تیر شوی دی.

لومړی زده کړه یې په خپل کور کې کړې وه. کله چې د یوولسو کالو شو: نو په اتم صنف کې یې داخله واخسته. د اولس کالو په عمر کې یې د خپل صحافي (ژورنالستی) ژوند پیل وکړ. د روزنامه (ورځپاڼې) تاج جبل پور. مسلم او الجمیة

دهلي مشر وټاکل شو.

په ۱۹۲۳ء کې يې خپله ترجمان القران د حيدر آباد څخه جاري کړ او په ۱۳۵۷هـ کې د ۱۹۲۸ء مطابق د ډاکټر علامه اقبال په دعوت پنجاب ته لاړ.

د هغوی د ليك اسلوب ښشکه په محکم استدلال، اصولي او بنيادي طريق بحث او د هغې نه زيات د هغوی سلامت فکر زمونږ د طبيعت او د ذهني جوړښت مطابق وي.

د مودودي صاحب د خپل عمر ډيره برخه په تاليف. تصنيف او ليکوالی کې تيره کړې، ترجمه او د قرآن تفسير چې د تفهيم القران په نوم مشهور دی. تقريباً د دوه ديرشو کالو په موده کې پوره شوی.

ددېنه علاوه هم ډير کتابونه د هغوی د قلم د څوکې څخه کاږل شوي، چې د هغې فهرست اوږد دی، د ځينو کتابونو نومونه يې په لاندې ډول دي:

۱: اسلام کی تعلیمات، ۲: عطیات، ۳: مسئله جبر وقدر، ٤: رسائل ومسائل، ٥: اسلام میں مرتد کی سزا، ٦: سلامتی کا راسته، ۷: تفهیمات، ۸: اسلام اور جاهلیت، ۹: اسلامی قانون، ۱۰: الجهاد فی الاسلام، ۱۱: اسلامی دستور کی تدوین، ۱۲: اسلامی ریاست، ۱۳: اسلامی سیاست، ۱٤: تجدید واحیاء دین وغیره.

۱۹۴۱ء کې د جماعت اسلامي په نوم يوه ډله جوړه کړه، چې لومړی امير يې خپله مودودي وو.

**وفات** : د مودودي صاحب وفات په ۲۸ شوال ۱۳۹۹هـ د ۲۲ ستمبر ۱۹۷۹ء مطابق شوی دی

## د جماعت اسلامي فرقې عقيدې او نظريې

۱: د ځينو انبياؤ ﷺ څخه غلطيانې شوي. [1]

۲: د سيدنا آدم ﷺ کوتاهيانې. [2]

---

[1] عقائد الاسلام : ۱/٤٥، ۲/٦٤

[2] ترجمان القرآن ص : ۱۲۹، مئی : ۱۹۵۵، تفهیم القران : ۳/۱۳۳

۳. د سيدنا نوح عليه السلام کوتاهيانې. [1]

۴. د سيدنا ابراهيم عليه السلام کوتاهيانې [2]

۵. د سيدنا يوسف عليه السلام کوتاهيانې [3]

۶. د سيدنا داؤد عليه السلام کوتاهيانې. [4]

۷. د سيدنا يونس عليه السلام کوتاهيانې. [5]

۸. د سيدنا موسى عليه السلام کوتاهيانې. [6]

## د مودودي صاحب په صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې تنقيد

۱. په عامو صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې تنقيد. [7]

۲. په سيدنا ابوبکر صديق رضي الله عنه باندې تنقيد. [8]

۳. په سيدنا عمر رضي الله عنه باندې تنقيد. [9]

۴. په سيدنا عثمان رضي الله عنه باندې تنقيد. [10]

۵. په سيدنا علی رضي الله عنه باندې تنقيد. [11]

۶. په سيدنا طلحه رضي الله عنه باندې تنقيد. [12]

۷. په سيدنا زبير رضي الله عنه باندې تنقيد. [13]

---

[1]) تفسير تفهيم القران، سورة هود : ۲/۳٤٤

[2]) تفهيم القران، سوزة الانعام : ۱/۵۵۷

[3]) تفهيمات : ۲/۱۲۲

[4]) تفهيمات : ۲/٤۲، تفهيم القران : ٤/۳۲۷،

[5]) تفهيمات : ۲/٤۲، تفهيم القران : ٤/۳۲۷، سورة ص

[6]) ترجمان القران عدد: ٤/۲۹

[7]) خلافت وملکويت طبع دوم اسلامی پبليکيشرز لميتد لاهور

[8]) ترجمان القران : ص ۳۰

[9]) ترجمان القران : ۵۷، جلد ۱۲، عدد ٤

[10]) خلافت وملوکيت : ص ۹۹، ۱۰۰، ۱۰۵، ۱۰٦، ۱۰۹، ۱۱۰، ۱۱۱، ۱۱۲، تجديد واحياء دين: ۲۳

[11]) خلافت وملوکيت : ۱٤٦

[12]) خلافت وملوکيت : ۱٤۲

[13]) خلافت وملوکيت : ۱٤۲

۸: په سیده عایشه رضي الله عنها باندې تنقید. [۱]

۹: په سیدنا امیر معاویه رضي الله عنه باندې تنقید. [۲]

۱۰: په سیدنا عمرو بن العاص رضي الله عنه باندې تنقید. [۳]

## په سلف صالحینو رحمهم الله باندې سوالونه

۱: په امام غزالي رحمه الله باندې سوال. [۴]

۲: په مجدد الف ثاني رحمه الله او شاه ولی الله رحمه الله باندې سوال. [۵]

۳: په سید احمد شهید او شاه اسماعیل شهید رحمهما الله باندې سوال. [۶]

۴: د معجزه شق القمر څخه انکار. [۷]

۵: دلیل نبوت صرف د قرآن کریم معجزه ده. [۸]

۶: قادیاني کافر نه دی. [۹]

۷: ایصال ثواب د ګناهګارو لپاره نه دی. [۱۰]

۸: د قران او احادیثو په مفهوم د پوهې لپاره د صحابه کرامو رضي الله عنهم ضرورت نشته. [۱۱]

۹: سجده تلاوت بغیر د اودس نه جائز ده. [۱۲]

۱۰: پیشمنې د سبا راختلو نه وروسته هم کیږي. [۱۳]

---

[۱] هفت روزه ایشیاء لاهور، ۱۹ نومبر ۱۹۶۷ء

[۲] خلافت وملوکیت : ص ۱۲۵، ۱٤۷، ۱۵۱، ۱۵۳، ۱۷٤

[۳] خلافت وملوکیت ص: ۱۲۹، ۱٤۱، ۱٤۲

[۴] تجدید واحیاء دین چوتها ایدیشن ......ص : ۳۵

[۵] تجدید و احیاء دین......ص : ۷۲

[۶] تجدید احیاء دین: ۱۳۲، مطبوعه ۳ نومبر ۵۱ ء طبع پنجم.

[۷] ترجمان القران : مئی ۱۹٦۷ء، ص ۳۲

[۸] رسائل ومسائل : ۱٤۵، حصه سوم اشاعت اول بحواله ترجمان القران مارچ ۱۹۵٦ء

[۹] خط حواله ۲۲۷، تاریخ ۲۹ جنوری ۱۹٦۸ء

[۱۰] ترجمان القران فروری ۱۹٦۷ء، ص ۲۷

[۱۱] رسائل ومسائل حصه اول. حصه دوم، ص ۳۰۷، ۳۰۸

[۱۲] تفهیم القران، سورة الاعراف ۲/۱٤٦

[۱۳] تفهیم القران، سورة البقره ۱/۱٤٦

۱۱: تقليد د گناه شی دی. [1]

۱۲: ږيره د يو موټي څخه کمه ساتل هم صحيح دي. [2]

۱۳: د فقه څخه نفرت کوي. [3]

۱۴: تصوف او سلوك يو جاهلانه طريقه ده. [4]

۱۵: تفسير بالرأی جائز دی. [5]

۱۶: صحابه کرام رضي الله عنهم معيار حق نه دي. [6]

۱۷: د خلفاء راشدينو رضي الله عنهم فيصلې هم حجت او معيار حق نه دي. [7]

## [د جماعت اسلامي فرقې عقيدې، نظريې. د قرآن او حديث څخه يې جوابونه]

## لومړۍ عقيده: دا انبياؤ عليهم السلام څخه د غلطی يا غلطيا نو کېدل

**جواب**: دا د امت د اجماع او نبوي احاديثو څخه خلاف ده. د قرآن کريم او احاديثو څخه دا معلوميږي، چې انبياء عليهم السلام معصوم دي. د ټولو اطاعت د هغوی په زمانه کې ضروري وو، ټول انبياء عليهم السلام معيار حق دي، د کبائرو او صغائرو ټولو څخه پاك دي. لکه په قرآن کريم کې چې دي:

۱: ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ ﴾ [8]

**ترجمه**: دا هغه خلک وو چا ته چې الله پاك هدايت کړی وو، لهذا ته هم د دوی په لاره لاړ شه!

۲: ﴿ ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ﴾ [9]

---

[1]) رسائل ومسائل: ۱/۲٤٤، طبع دوم
[2]) رسائل ومسائل، حصه اول، حصه دوم، ص ۳۰۷، ۳۰۸
[3]) حقوق الزوجين: ۹۸
[4]) تجديد واحياء دين: ص ۱۲۳، ۱۲٤
[5]) تفهيمات: ۱۹۳، طبع چهارم
[6]) دستور جماعت اسلامی پاکستان: ۱٤
[7]) ترجمان القران: جنوری ص ۵۸
[8]) الانعام: ۹۰
[9]) النحل: ۱۲۳

بیا (اې نبي کریم ﷺ) مونږ تاته وحی وکړه چې د ابراهیم علیه السلام د ملت تابعداري وکړه! کوم چې مخلص بنده وو.

۳: ﴿ وَمَنْ يَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ إِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهُ وَلَقَدِ اصْطَفَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴾ [1]

**ترجمه**: څوك دی چې د ابراهیم علیه السلام د ملت څخه به مخ واړوي، مګر هغه څوك چې ځان کم عقل کړي، یقینا مونږ هغه په دنیا کې هم غوره کړی وو. په اخرت کې به هم د نیکانو بندګانو څخه وي.

۴: ﴿ وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ عَلَى قَوْمِهِ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ نَشَاءُ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ كُلًّا هَدَيْنَا وَنُوحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَى وَهَارُونَ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى وَعِيسَى وَإِلْيَاسَ كُلٌّ مِنَ الصَّالِحِينَ وَإِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ وَمِنْ آبَائِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ذَلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ أُولَئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ فَإِنْ يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُلْ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴾ [2]

**ترجمه**: دا زمونږ دلیل وو چې مونږ ابراهیم علیه السلام ته د هغوی په قوم دلیل ورکړی وو. مونږ لوړې درجې ورکوو، هغه چا ته چې مونږ یې وغواړو. یقینا چې ستا رب د حکمت او علم څښتن دی، مونږ ابراهیم اسحاق او یعقوب علیهم السلام. ټولو ته هدایت کړی وو، نوح علیه السلام ته هم مونږ مخکې هدایت کړی وو، د ابراهیم علیه السلام د اولاد څخه داؤد. سلیمان. ایوب. یوسف، موسی او هارون علیهم السلام ته او دغه شان مونږ نیکه بدله ورکوو نیکانو ته او زکریا، یحیی، عیسی او الیاس علیهم السلام ته (هم مونږ هدایت کړی وو) او دا ټول نیکان خلك وو او اسماعیل، یسع، یونس او لوط علیهم السلام ته او مونږ ټولو ته فضیلت ورکړی وو، په ټولو نړیوالو او (مونږ هدایت کړی وو) ځینې د هغوی د پلارانو. بچو او ورونو نه، غوره کړی مو وو، هدایت مو ورته کړی وو. برابرې لارې ته. دا د الله

[1] البقرة: ۱۳۰

[2] الانعام: ۸۳ تا ۹۰

پاك هدايت دى، هدايت كوي، چاته چې يې وغواړي د خپلو بندګانو څخه. كه دوى شرك كړى وي؛ نو د هغوى څخه به د هغوى ټول اعمال ضايع شوي وى، دا هغه كسان دي چې دوى ته مونږ كتاب، فيصله او نبوت وركړى وو. كه دا كفار پدې نبوت كفر كوي؛ نو مونږ پدې باندې داسې بندګان مقرر كړي دي، چې هغوى پرې كفر نه كوي. دا هغه كسان دي چې الله پاك ورته هدايت كړى دى. ته د دوى په هدايت پسې اقتداء وكړه. او ووايه: زه پدې باندې ستاسو نه څه مزدوري نه غواړم. نه دى دا قرآن مګر نصيحت د ټولو نړيوالو لپاره.

۶: ﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ (۱)

**ترجمه** : تاسو ووايى! كه چيرته تاسو د الله پاك سره محبت كوى: نو زما تابعداري كوى! الله پاك به هم ستاسو سره مينه كوي او د ګناهونو بخښنه به درته كوي، بېشكه الله پاك بخښنه كونكى مهربانه دى.

۷: ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ﴾ (۲)

**ترجمه** : چا چې د رسول الله ﷺ اطاعت وكړ. هغه يقينا د الله پاك اطاعت وكړ. انبياء ﷺ معصوم دي. پدې وجه د هغوى اطاعت د الله پاك د اطاعت سره بيان شوى.

۸: ﴿وَمَنْ يَعْصِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ (۳)

**ترجمه** : چا چې د الله پاك او د رسول ﷺ نافرماني وكړه: نو يقينا د هغه لپاره د جهنم اور دى، په هغې كې به همېشه او سيږي.

## د مودوي په اسلافو اعتراضونه

مودودي صاحب په اسلافو د اعتماد او باور پر ځاى په هغوى اعتراضونه او سوالونه كوي. يو ځاى كې د امام غزالي رحمه الله په اړه ليكي:

(۱) سورة آل عمران آيت : ۳۱
(۲) سورة النساء آيت : ۸۰
(۳) سورة الجن آيت : ۲۳

د امام غزالي رحمه الله په تجديدي کار کې علمي او فکري حيثيت سره څو نقصانونه هم وو. هغه په دوه ډرې عنوانونو باندې تقسيمېدلی شي. يو قسم د هغه نقصانونو څخه هغه دي. چې د حديثو په علم کې د کمزوري کېدو له امله د هغوی په کار کې پيدا شو. دويم قسم د هغه نقصانونو هغه دي. چې د هغوی په ذهن باندې د عقلياتو د غلبې له امله دي او دريم قسم د هغو نقصانونو د څلورم صورت طرفته د ضرورت نه د زياتو مسئلو له امله وو. (١)

د اردو شاعر په وينا: اردو شعر:

الټي سمجهه کسي کو بهي ايسی خدا نه دې دې آدمي کو موت مگر ايسي ادا نه دې

هم دغه شان د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله په اړه ليکي:

خو دا حقيقت دی چې هغوی يو داسې سياسي قدم پورته نه کړ، چې په هغې سره د حکومت په نظام کې څه انقلاب راغلی وی. د وخت د اقتدار واګې د جاهليت د قبضې نه وتلو سره د اسلام په ولکه کې راغلي وی. (٢)

د مجدد الف ثاني، شاه ولی الله محدث دهلوي، سيد احمد شهيد او مولانا محمد اسماعيل شهيد رحمهم الله په باره کې ليکي:

لومړی شی چې ماته د مجدد الف ثاني د وخت نه تر د شاه صاحب او د هغوی د خلفاؤ تر دوره پورې په نويو کارونو کې بد ښکاري. هغه دا چې هغوی د تصوف په اړه د مسلمانانو د بيماری اندازه ونګوله او په ناخبری کې يې بيا هغوی ته هم هغه خوراک ورکړ، چې د هغې څخه مکمل د پرهيز کولو ضرورت وو. زما فی نفسه پدې تصوف باندې اعتراض نشته کوم چې دې حضراتو خلکو ته وړاندې کړی. د هغه په ځای دي خپله د خپل روح په اعتبار سره د اسلام اصل تصوف وکړئ او ددې نوعيت د احسان څخه څه مختلف نه دی؛ خو کوم شي ته چې زه د پرهيز لائق وايم. هغه متصوفانه رموز او اشارات او د متصوفانه ژبې استعمال او متصوفانه طريقې سره د مشابهت لرونکو طريقو جاري ساتل دي.

(١) تجديد واحياء دين : ٧٨
(٢) تجديد واحياء دين : ٨٦

**جواب** : علماء کرام فرمايي: چې په اسلافو باندې اعتبار کول هم د شريعت اصل دی، شاه ولی الله دهلوی رحمه الله فرمايي:

﴿ لن الامة اجتمعت على ان يعتمدوا على سلف فى معرفة الشريعة فالتابعون اعتمدوا فى ذلك على الصحابة وتبع التابعين اعتمدوا على التابعين وهكذا فى كل طبقة اعتمد العلماء على من قبلهم والعقل يدل على حسن ذلك لان الشريعة لا يعرف الا بالنقل والاستنباط والنقل لا يستقيم الا بان ياخذ كل طبقة عمن قبلها بالاتصال ﴾ [1]

**ترجمه** : د شريعت په پېژندګلوو کې ټول امت بالاتفاق په مخکې سلفو اتفاق کړی، تابعينو په صحابه کرامو اعتماد کړی، تبع تابعينو په تابعينو اعتماد کړی. همدغه شان په هر هر دور کې مخکنيو علماء کرامو باندې اعتماد شوی. عقل سليم همدا طريقه خوښوي. ځکه شريعت بغير د نقل او استنباط څخه نه معلومېږي او نقل صرف هم دغه شان صحيح وي، چې په هره هره طبقه کې وروستني خلک د مخکې نه بالاتصال اخلي.

**دريمه عقيده: د مودودي صاحب په صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې تنقيد او اعتراضونه**

**جواب** : د اهل سنت والجماعت عقيده ده: چې صحابه کرام رضي الله عنهم معيار حق دي، همدا خبره د قران، حديث او د امت د اجماع څخه ثابته ده. مثلاً:

۱: ﴿ وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ﴾ [2]

**ترجمه** : او هغه خلک چې مخکې کېدونکي دي: (ايمان ته) لومړني مسلمانان دي. د مهاجرينو او انصارو څخه او هغه کسان چې د دوی تابعداري يې په ښه طريقه کړې ده. الله پاك د هغوی څخه راضي دی او هغوی د الله پاك نه راضي دي.

۲: ﴿ لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقٰتَلَ اُولٰٓئِكَ اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ اَنْفَقُوْا مِنْ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ﴾ [3]

---

[1] عقد الجيد : ٣٦
[2] سورة التوبة آيت: ١٠٠
[3] سورة الحديد آيت: ١٠

**ترجمه** : په تاسو کې هغه خلک چې د فتح مکې څخه وړاندې يې خرچې او جنګونه کړي، برابر نه دي، دا خلک د الله پاك په نزد د درجاتو په اعتبار لوی دي، د هغه خلکو نه چې وروسته (د فتح نه) يې انفاق او قتال کړی دی او ټولو سره د الله پاك د جنت وعده ده.

۳: ﴿ وَعَدَ اللهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهَارُ خَالِدِيْنَ فِيْهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللهِ اَكْبَرُ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴾ [1]

**ترجمه** : الله پاك د مؤمنو سړو او مؤمنو ښځو سره د جنتونو وعده کړې. چې د هغې د لاندې به نهرونه بهيږي، همېشه به په هغې کې وي. ښکلې کورونو د همېشوالي په باغونو او د الله پاك رضا ډير لوی شی دی، هم دا لويه کاميابي ده.

۴: ﴿ يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ [2]

**ترجمه** : اې نبي ﷺ ستا لپاره الله پاك کافي دی او هغه مؤمنان (صحابه) چا چې ستا تابعداري کړې ده.

۵: ﴿ لَقَدْ رَضِيَ اللهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴾ [3]

**ترجمه** : يقينا الله پاك راضي شو، د مؤمنانو څخه کله چې هغوی ستا سره د ونې لاندې بيعت کولو. معلوم دی هغه ته هغه څه چې د هغوی په زړونو کې دي، په هغوی يې اطمينان نازل کړ او زر يې د فتح انعام ورکړ.

۶: ﴿ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللهِ وَرِضْوَانًا سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ﴾ [4]

**ترجمه** : محمد ﷺ د الله پاك رسول دی، کوم خلک چې هغه سره دي هغوی سخت دي په کافرو باندې، خپل منځ کې نرم دي، ته به وينې هغوی په رکوع او سجده

---

[1] سورة التوبة آيت: ۷۲
[2] سورة الانفال آيت : ٦٤
[3] سورة الفتح آيت: ۱۸
[4] سورة الفتح آيت: ۲۹

کې. هغوی به د الله پاك فضل او رضا لټوي، د هغوی په مخونو باندې به د سجدې د اثر له امله نخښې وي

۷: ﴿ وَلٰكِنَّ اللهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ﴾ (١)

**ترجمه** : خو الله پاك تاسو ته ایمان محبوب کړ او ستاسو په زړونو کې یې ډولي کړ. کفر. نافرماني او ګناه یې تاسو ته ناخوښه کړه او هم دا هدایت یافته دي.

۸: ﴿ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴾ (٢)

**ترجمه** : چا چه نیك عمل کړې دي د هغوی دپاره جنت دې او د هغې نه زیات یو څیز (چه د الله پاك لیدل دی) د هغوی مخونه به توروالې او ذلت نه ګیروی. دا جنتیان دی. په هغې کښې به همیشه وی.

۹: ﴿ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴾ (٣)

**ترجمه** : او کوم خلق چه د هغوی نه روستو راغلی دی هغوی وائی چه اې ربه زمونږ مونږ او زمونږ هغه رونړه چه په ایمان کښ زمونږ نه مخکښ شوی دی هغوی اوبخښه او زمونږ په زړه کښ د مومنانو دپاره کینه مه اچوه بیشکه ته شفقت کونکې او رحم کونکې ئې.

۱۰: ﴿ هُوَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ﴾ (٤)

**ترجمه** : الله هغه ذات دی چه په تاسو باندې رحمت رالیږی او د هغه ملائك ستاسو دپاره استغفار کوی. چه الله پاك تاسو د تیرې نه د رڼرا طرف ته راوباسی. او الله پاك په مومنانو باندې رحم کونکې دې.

---

(١) سورة الحجرات آیت: ۷
(٢) سورة الحجرات آیت: ۷
(٣) سورة الحشر آیت: ۱۰
(٤) سورة الاحزاب آیت: ٤٣

# د صحابه کرامو رضي الله عنهم د معيار حق کيدو ثبوت د احاديثو نه

١: ﴿لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ، وَلَا نَصِيفَهُ﴾ (١)

**ترجمه** : تاسو زما صحابه كرامو پسې بدې ردې مه وايئ! كه په تاسو كې څوك د احد د غره برابر سره زر هم خرچ كړي؛ نو د صحابه كرامو د يو مد (نيمه كلو صدقې) او د هغې نيمې (يعنې پاو صدقې) ته هم نشي رسيدلی.

٢: ﴿خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ﴾ (٢)

**ترجمه** : زما د امت غوره زمانه زما زمانه ده. بيا هغه خلک چې دوی سره نزدې دي، بيا هغه چې د هغوی سره نزدې دي.

٣: ﴿قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "لا تمس النَّارُ مسلماً رآني او رأى من رآني.."﴾ (٣)

**ترجمه** : نه به مسه كوي اور هغه مسلمان لره چې زه يې ليدلی يم او يا يې هغه څوک ليدلی چې زه يې ليدلی يم.

٤: ﴿قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَسُبُّونَ أَصْحَابِي فَقُولُوا: لَعْنَةُ اللهِ عَلَى شَرِّكُمْ﴾ (٤)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چې تاسو هغه كسان وينئ چې زما صحابه كرامو رضي الله عنهم ته بدې ردې وايي؛ نو ووايئ: لعنت د الله پاك دې وي ستاسو په شر خلكو.

٥: ﴿قال رسول الله ﷺ : لا تسبوا أصحابي فإنه يجيء قومٌ في آخر الزمان يسبون أصحابي فلا تصلوا عليهم ولا تناكحوهم ولا تجالسوهم وان مرضوا فلا تعودوهم﴾ (٥)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ وفرمايل: زما صحابه كرامو رضي الله عنهم ته بدې ردې مه وايئ! په آخره زمانه كې به يوه ډله پيدا كيږي. چې هغوی به زما صحابه كرامو ته بدې ردې

---

(١) بخاري ومسلم وكذا مشكوة : ١/٥٥٣

(٢) بخاري جلد ١ صفحه ٥١٥، مسلم : جلد صفحه ٣٠٥ وكذا مشكوة ص٥٥٣

(٣) ترمذي و كذا مشكوة : ٥٥٣.

(٤) ترمذي، وكذا مشكاة : ٥٥٤،

(٥) كتاب شرح شفاء

وایي. تاسو په هغوی جنازه مه کوی او مه هغوی سره رشته کوی او مه هغوی سره کینئ ولاړیږئ او که هغوی ناروغه شي؛ نو پوښتنه یې هم مه کوی.

## د امت اجماع په عظمت د صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې

د اهل سنت والجماعت دا عقیده ده: چې صحابه کرام رضی الله عنهم د تنقید په ډول په نخښنه کول د ایمان خطره ده.

﴿ وعلماء السلف من السابقین، و من بعدهم من التابعین -أهل الخیر والأثر، وأهل الفقه والنظر- لایذکرون إلا بالجمیل، ومن ذکرهم بسوء فهو علی غیر السبیل ﴾[1].

**ترجمه** : د امت سابقین علماء (صحابه کرام رضی الله عنهم) او د هغوی نه وروسته تابعین او کوم چې د کتاب او سنت راویان دي. دغه شان د فقهاؤ ذکر دي همېشه په نیکی سره وشي. د هغوی په تذکره کې چا چې بدي وکړه هغه د مسلمانانو په لار نه دی.

او په عقیدة الطحاویه کې دي:

﴿ ومن اضل ممن یکون فی قلبه علی خیار المؤمنین وسادات اولیاء الله تعالی بعد النبیین ﴾[2].

**ترجمه** : او د هغه شخه به لوی ګمراه څوك وي، چې د هغه په زړه کې د هغه خلکو په اړه چې کوم د انبیاؤ علیهم السلام نه وروسته خیار المؤمنین او سادات اولیاء الله دي. په باره کې څه خبره وي.

حافظ ابن حجر رحمه الله په الاصابة کې د امام ابو زرعه رازي رحمه الله چې جلیل القدر محدث دی دا قول نقل کړی:

﴿ اذا رایت الرجل ینقص احدا من اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم فاعلم انه زندیق وذلك ان الرسول حق والقران حق وما جاء به حق وانما روی الینا کلمه الصحابة وهولاء یریدون ان یجرحوا شهودنا لیبطلوا الکتاب والسنة والجروح بهم اولی وهم زنادقة ﴾[3].

---

[1]) شرح عقیدة الطحاویة : ٤١٨

[2]) شرح العقیدة الطحاویة ص ٣٩٩

[3]) الاصابة : ١/١١

**ترجمه** : کله چې څوك ووينې چې هغه د يو صحابي رسول ﷺ تنقيص کوي نو پوه شه چې هغه زنديق دی. دا پدې وجه چې رسول الله ﷺ حق دی. قرآن حق دی. او چا چې د قرآن کريم تعليم او شريعت راوړی دی. هغه حق دی او دغه دی موږ ته رارسونکي صحابه کرام ﷺ دي او دوی غواړي چې په موږ باندې زموږ شاهدان مجروح کړي، چې پدې طريقه هغوی کتاب او سنت لره باطل کړي. هم دا خلک د مجروح کولو قابل دي او هم دا خلک خپله زنديقان دي

امام مالك رحمه الله فرمايي:

﴿ من شتم احدا من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم ابا بكر او عمر او عثمان او عليا او معاوية او عمرو بن العاص فان قال شانهم كانوا على ضلال او كفر قتل او شتم بغير هذا نكل نكالا شديدا ﴾ [1]

**ترجمه** : چا چې په اصحاب النبی ﷺ کې ابوبکر. عمر. عثمان. علي. معاويه يا عمرو بن العاص ﷺ ته بدې ردې وويل: چې دا خلک په ګمراهی او کفر وو: نو هغه دې قتل کړی شي او که ددېنه علاوه بل څه خبره وکړي: نو هغه ته دې سخته سزا ورکول شي.

د مسلم په شرح کې علامه نووي رحمه الله د قاضي عياض رحمه الله دا قول نقل کړی دی:

﴿ قَالَ الْقَاضِي : وَسَبُّ أَحَدِهِمْ مِنَ الْمَعَاصِي الْكَبَائِرِ، وَمَذْهَبُنَا وَمَذْهَبُ الْجُمْهُورِ أَنَّهُ يُعَزَّرُ، وَلَا يُقْتَلُ. وَقَالَ بَعْضُ الْمَالِكِيَّةِ : يُقْتَلُ ﴾ [2]

**ترجمه** : قاضي عياض رحمه الله فرمايي چې په صحابه کرامو ﷺ کې چاته بدې ردې ويل لويه ګناه ده. همدا زموږ مذهب دی او د جمهورو مذهب دا دی چې هغه ته به سزا ورکولی شي او وژلی به نشي او ځينو مالکيانو ويلي دي چې وژلی به شي

## څلورمه عقيده: د شق القمر د معجزې څخه انکار کول

**جواب** : د معجزې ذکر خو په قرآن او ډيرو حديثونو کې شته. د قرآن کريم آيت دی:

﴿ اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ﴾ [3]

---

[1] شرح الشفاء : ۲/۷۵۵
[2] شرح مسلم للنووی : ۲/۳۱۰
[3] سورة القمر آيت : ۱

امام بخاري رحمه الله چې چیرته دا روایت نقل کړی هلته یې دا عنوان لګولی

﴿ بابُ سُؤَالِ الْمُشْرِكِينَ أَنْ يُرِيَهُمُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم آيَةً فَأَرَاهُمُ انْشِقَاقَ الْقَمَرِ ﴾ (۱)

**ترجمه** : یعنې د مشرکانو په سوال باندې رسول الله ﷺ دا د شق القمر معجزه ښودلې وه

همدغه شان په یو روایت کې دي چې راوي یې سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دی. هغوی فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ﴿ اشهدوا ﴾ یعنې شاهدان شی. شاهدان شی. دا خبره هم پدې باندې دلالت کوي چې دا معجزه د مشرکانو په غوښتنه رسول الله ﷺ ښودلې وه. هم پدې وجه رسول الله ﷺ فرمایلي وو ﴿ اشهدوا، اشهدوا ﴾ (۲)

علامه ابن کثیر رحمه الله په دې اړه د جمهور امت عقیده لیکي.

﴿ وقد كان هذا في زمان رسول الله ﷺ كما ورد في الاحاديث المتواترة الصحيحة وهذا امر متفق عليه بين العلماء ان انشقاق القمر قد وقع في زمان النبي صلى الله عليه وسلم وانه كان احدى المعجزات الباهرات ﴾ (۳)

**ترجمه** : د رسول الله ﷺ په زمانه کې د سپوږمۍ د دوه ټوټې کیدو واقعه د متواترو احادیثو صحیحه څخه ثابته ده. په همدې باندې د ټول امت د علماء کرامو اتفاق دی. چې دا واقعه د رسول الله ﷺ په زمانه کې شوې ده. دا د رسول الله ﷺ په مشهورو معجزو کې یوه معجزه ده.

مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله په عقائد الاسلام کې لیکي: چې په شق القمر باندې ایمان راوړل فرض دي. ددېنه انکار کول کفر دی. پدیکې تاویل کول ګمراهي ده. چې په هغې باندې د کفر ویره ده. (۴)

---

۱) بخاری : ۱/۵۱۳

۲) بخاری ۱/۷۲۱

۳) تفسیر ابن کثیر : ٤/٢٦٤

٤) عقائد الاسلام : ۲/۷۲

دا ویل چې د نبوت دلیل صرف د قرآن کریم معجزه ده، «د دېنه علاوه معجزې د نبوت علامت او دلیل په حیثیت سره پیش کړې وي؟ څنګه چې د کتلو نه وروسته په انکار کولو باندې عذاب لازمیږي [1].

د اهل سنت والجماعت په نزد د عقایدو په رڼا کې د رسول الله ﷺ د معجزو ټول درې قسمونه دي.

۱. قرآن کریم.

۲. د رسول الله ﷺ د پیغمبرۍ ژوند

۳. د عادت خلاف کوم کارونه چې د رسول الله ﷺ څخه ظاهر شو. مثلاً د سپوږمۍ دوه ټوټې کېدل. د کاڼو رسول الله ﷺ ته سلام کول. د لږو اوبو زیاتېدل وغیره. دا ټولې معجزې د نبوت دلیل دی او ددې ټولو ثبوت په تواتر سره ثابت دی.

علامه ابن ابي الشريف رحمه الله فرمايي:

﴿ والذى اظهر الله تعالى نبيا صلى الله عليه وسلم من المعجزات ثلاثة امور اعظمها القران ثم الامر الثانى حاله فى نفسه التى استمر عليها من عظيم الاخلاق وشريف فى نفسه التى استمر عليها من عظيم الاخلاق وشريف الاوصاف .... ثم الامر الثالث ما ظهر على يديه من الخوارق ﴾ [2].

**ترجمه** : الله پاك زمونږ رسول ﷺ ته درې معجزې ورکړې وې. چې په هغې کې د ټولو څخه لويه معجزه قرآن کريم دی. دويمه معجزه د رسول الله ﷺ ذاتي ژوند دی. د رسول الله ﷺ هغه اوچت او عالي اخلاق او اوصاف دي. په کومو چې د رسول الله ﷺ پوره ژوند وو. دريمه معجزه د عادت خلاف کارونه دي. چې د رسول الله ﷺ څخه ظاهرېدل.

د نبي معجزه د نبوت دليل وي. پدې باندې بحث کولو سره امام غزالي رحمه الله فرمايي:

﴿ ووجه دلالة المعجزة على صدق الرسل ان كل ما عجز عنه والبشر لم يكن الا فعلا لله تعالى فلما كان مقرونا بتحدى النبى صلى الله عليه وسلم ينزل منزله قوله صدقت ﴾

---

[1]) عقائد الاسلام : ۲/۷۲

[2]) المسامرة

**ترجمه** : معجزه پدې وجه د انبیاؤ ﷺ د صداقت دلیل وي، چې د کوم فعل څخه عام انسان عاجز وي، هغه صرف د الله پاك فعل وي او کله چې د هغې سره د نبي ځدي او چیلنج شامل شي: نو ګویا الله پاك وفرمایل: چې ته ربښتینی یې. (۱)

همدغه شان دا خبره چې کله د قرآن کریم څخه پرته نورې معجزې نه دي ثابتې؛ نو بیا دا معجزې رسول الله ﷺ ته ولې ورکول شوي؟

## پنځمه عقیده: لاهوري مرزائي کافر نه دی !

**جواب** : دا خبره د جمهورو علماء اهل سنت والجماعت په نزد متفق علیه ده، چې قادياني مرزائي کوم چې مرزا غلام احمد قادياني لره نبي مني، د خپلو غلط عقایدو په وجه د اسلام څخه خارج دی.

مولانا محمّد یوسف لدهیانوي رحمه الله فرمایي چې:

څوك چې د قادیانیانو د عقیدو څخه خبر وي او د هغې باوجود هغوی مسلمانان ګڼي؛ نو داسې سړی خپله مرتد دی، ددې له امله چې کفر اسلام ګڼي. (۲)

مودودي صاحب قادياني مسلمان ګڼي، لکه چې ددې خط څخه ظاهرېږي!

## جماعت اسلامي پاکستان

۵-ای ذیلدار پارك اچهره لاهور، حواله ۲۲۷، تاریخ ۲۹ جنوري ۱۹۶۸ء

محترمي ومکري: السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

ستاسو خط مونږ ته راورسېد، د مرزایانو او لاهوریانو ډله د اسلام او کفر ترمنځ ده، نه هغوی د یو مدعي نبوت څخه بالکل براءت ظاهروي، چې دې افرادو ته مسلمان وویل شي او نه د هغه د نبوت صفا اقرار کوي، چې د هغه تکفیر وکړی شي.

خاکسار : غلام علي

خصوصي معاون مولانا سید ابو الاعلی مودودي

---

(۱) مسامره

(۲) آپ کے مسائل اور انکا حل:

دا جواب زما د هدایاتو مطابق دی. (ابو الاعلی)

**تبصره** : د مودودي صاحب دا وینا چې لاهوري مرزائي نه کافر او نه مسلمانان دي، دا خبره هم د اهل سنت والجماعت د عقیدې خلاف ده. ځکه چې د اهل سنت والجماعت په نزد صرف دوه درجې دي، چې یا به یو سړی مسلمان وي یا به کافر. په منځ کې هیڅ دریمه درجه نشته.

## شپږمه عقیده: د ګناه ګارو لپاره ایصال ثواب نشته

لکه په ترجمان القرآن کې چې یې لیکلي دي!

کوم خلک چې د الله پاک په نزد د صالحینو په حیث مېلمانه دي. هغوی ته به د ثواب هدیه یقینا رسیږي؛ خو څوک چې هلته د مجرم په حیث په زندان کې بندي وي. هغوی ته هیڅ ثواب نه رسیږي، امید شته چې د الله پاك مېلمنو ته به هدیه رسیدلې وي؛ خو دا امید نشته چې د الله پاك مجرم ته دي ډالی ورسیږي؟. د هغه لپاره که څوك په غلط فهمی کې ایصال ثواب کوي؛ نو د هغه ثواب به هم نه ضایع کیږي، بلکې مجرم ته د رسیدلو په ځای به خپله عامل ته راواپس کیږي. لکه مني ارډر چې مرسل الیه ته ونه رسیږي؛ نو مرسل ته بېرته په لاس ورشي. [1]

**جواب** : دا خبره د اهل سنت والجماعت د عقیدې خلاف ده. بلکې د اهل سنت والجماعت اتفاقي عقیده دا ده: چې مشرکین او کفارو ته خو ایصال ثواب کول جائز نه دي، باقي هر قسم ګناهګار مسلمان ته ایصال ثواب کیدلی شي.

کفارو او مشرکینو لپاره د ایصال ثواب ممانعت راغلی!

﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴾ [2]

**ترجمه** : د رسول الله ﷺ او نورو مسلمانانو لپاره جائز نه دي. چې هغه د مشرکانو لپاره د مغفرت دعاګانې وغواړي، اګر چې هغه رشته دار ولې نه وي، ددې

---

[1] ترجمان القران ص ۲۷، فروری : ۱۹٦۷ء

[2] سورة التوبة آیت : ۱۱۳

کار په ډاګه کېدو وروسته چې هغوی دوزخیان دي

د قرآن کریم د ډیرو آیتونو او احادیثو څخه دا خبره ثابته ده: چې مړي ته ایصال ثواب صحیح دی. اګر چې هغه ګناهګار ولې نه وي. همدغه شان د بخاري په مشهورې شرحې عیني کې دي:

﴿ فذهب ابوحنیفة واحمدُ الی وصول ثواب قراءة القرآن الی المیتِ ﴾ (١)

**ترجمه** : د امام ابوحنیفه او امام احمد رحمهما الله په نزد مړي ته د قرآن کریم د تلاوت ثواب رسیږي.

همدغه شان علامه شامي رحمه الله فرمایي:

﴿ ویقرأ یس لما ورد من دخل المقابر فقرء سورة یس خفف الله عنهم یومئذ ﴾ (٢)

**ترجمه** : څکه چې په حدیث کې راغلي: څوك چې قبرستان ته داخل شي او سورة یس ولولي: نو الله پاك د مړو په عذاب کې سپکوالی راولي

## اوومه عقیده: ږیره د یو موټي څخه کمه پرېښودل هم جائز دي

پدې اړه رسائل او مسائل کې لیکي: چې شریعت صرف د ږیرې د پرېښودلو حکم کړی. هر څومره چې پرېښودل شي. په حدیث باندې عمل راځي. (٣)

**جواب** : حال دا چې د ټول امت اجماع ده. ږیره د یو موټي څخه کم ساتل حرام دي او هم دا عمل د ځینو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه هم ثابت دی. چې هغوی به د یو موټي څخه زیات وښته پرې کول. امام محمد رحمه الله فرمایي:

﴿ والسنة فیها القبضة وهو ان یقبض الرجل لحیته فما زاد منها علی قبضة قطعه ﴾ (٤)

**ترجمه** : په ږیره کې سنت یو موټی پرېښودل دي، داسې چې ږیره دي په موټي کې ونیسي او چې کوم زیاتي وي هغه دي پرې کړي.

---

(١) عیني شرح بخاری : ١/٨٧٥

(٢) فتاوی شامي، باب صلاة الجنائز : ٢/٤٤٣

(٣) مفهوم رسائل ومسائل حصه اول ص ٣٠٨، تیسرا ایډیشن

(٤) کتاب الاثار

همدا خبره د څلورو واړو امامانو د کتابونو څخه معلومیږي. چې یو موټی ږیره پرېښودل واجب دي او ددې څخه کم ساتل حرام دي.

د امام مالك رحمه الله د فقه مستند کتاب د امام ابو زید رساله د هغې په شرح کې شیخ احمد نفرادي رحمه الله فرمایي:

﴿ مما علیه الجند فی زماننا من امر الخدم یحلق لحاهم دون شواربهم لا شك فی حرمته عند جمیع الائمة لمخالفته لسنة المصطفی صلی الله علیه وسلم ولموافقته بفعل الاعاجم والمجوس ﴾ (۱)

**ترجمه** : زمونږ په زمانه کې چې د فوجیانو کومه طریقه د ږیرې د خرولو او د بریتو د غټولو ده. هغه بېشکه حرامه ده. د ټولو ائمه وو په نزد. ځکه چې دا د سنت مصطفوي ﷺ خلاف. د عجمیانو او مجوسیانو موافقت دی.

د امام احمد رحمه الله د مذهب په فتاوی کتاب الاقناع کې دي:

﴿ واعفاء اللحیة ویحرم حلقها ﴾ (۲)

**ترجمه** : د ږیرې پرېښودل ضروري او خریل یې حرام دي.

همدغه شان د فقه حنبلي په کتاب مختصر المقنع کې دي:

﴿ ویعفی لحیته ویحرم حلقها ﴾ (۳)

**ترجمه** : د ږیرې لویول ضروري دي او ددې خریل حرام دي.

د شافعي مذهب په مستند کتاب ''عبادی شرح منهاج،، کې دي. صحیح خبره دا ده: چې پوره ږیره بغیر د څه عذر نه خریل حرام دي.

په حنفي فقه کې هم د یو موټي څخه ږیره کمول حرام دي، علامه انور شاه کشمیري رحمه الله فرمایي:

﴿ واما قطع مادون ذلك فحرام اجماعا بین الائمة رحمهم الله تعالی ﴾ (۴)

---

(۱) شرح رساله باب الفطرة والختان
(۲) اقناع فصل فی الامتشاط
(۳) مختصر المقنع
(۴) فیض الباری : ۴/۳۸۰

**ترجمه:** دېو موتې ښځه کمول حرام دي او په همدې باندې د ټولو ائمه کرامو اجماع ده.

## اتمه عقيده: د سجده تلاوت لپاره اودس شرط نه دی

پدې اړه مودودي صاحب ليکي:

د سجدې لپاره جمهور هم د هغه شرطونو قايل دي: چې د لمانځه شرطونه دي، يعني اودس کول. قبلې ته مخ کول او د لمانځه په شان په ځمکه سر کېښودل؛ خو ځومره احاديث چې د سجده تلاوت په باب کې مونږ ته ملاو شوي. په هغې کې چېرته هم ددې شرطونو لپاره هيڅ دليل نشته، د هغې نه خو هم دا معلومېږي چې د سجدې آيت اوريدلو سره چې څوك په کوم حال کې وي، هغه دې ښکته شي. که اودس يې وي او که نه وي، که استقبال ممکن وي يا نه وي، که په ځمکه باندې د سر کېښودو موقع وي يا نه وي، په سلفو کې داسې شخصيات هم شته. چې د هغوی عمل پدې طريقه باندې وو. [1]

**جواب** : د جمهورو علماء کرامو په نزد چې په هغوی کې ائمه اربعه هم شامل دي، د ټولو په نزد د سجده تلاوت لپاره د لمانځه شرطونه دي.

د ابن عمر رضي الله عنهما فتوی په فتح الباری وغيره کې موجود ده:

﴿ لا يسجد الرجل الا وهو طاهرٌ ﴾ [2]

**ترجمه** : يو سړی دې هم بې اودسه سجده نه کوي.

ظاهره ده چې د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما دا وينا به د خپل طرفه نه وي، بلکې د رسول الله ﷺ ځخه به يې اوريدلې يا ليدلې وي. بلکې د خير القرون نه تر ننه پورې هم څوك بې اودسه د سجدې کولو قائل نه دي. [3]

---

[1]) تفهيم القرآن : حصه دوم سورة اعراف : ۱۱٦

[2]) فتح البارى ۲/٤٥٧، اوجز المسالك : ۲/۲۸۰، وغيره

[3]) تقصيرات تفهيم القرآن : ۱۰۸، ۱۰۹

## نهمه عقيده: د پيشمني وخت د سبا راختلو نه وروسته هم وي

پدې اړه مودودي صاحب ليکي: نن سبا خلک د پيشمني او روژه ماتي په اړه د ډېر احتياط په بنياد بې ځايه تشدد کوي؛ خو شريعت د دې وختونو داسې حد بندی نه ده فرمائيلې چه په هغې سره د څو سيکنډو يا څو منټونو په يو خوا بل خوا کيدو باندې د انسان روژه خرابيږي په پيشمنی کښ د شپې د تور والی نه د سحر د سپين والی ښکاره کيدل په خپل ځان کښ ښه ګنجائش لرى. او د يو سړي دپاره دا بالکل صحيح ده چه که عين د صبا راختلو په وخت د هغه سترګې اوغړيدې نو هغه دې زر پاسيدو سره څه خوراك څکاك اوکړی. په حديث کښ راځي چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل که په تاسو کښ يو سړې د پيشمنی په وخت کښ خوراك کوی او د اذان آواز راشی نو هغه دې فورا نه پريږدی بلکه د خپل حاجت مطابق دې خوراك څکاك اوکړی. [1]

**جواب** : په دې خبره باندې هم د ټول امت اجماع ده چه د پيشمنی د وخت ختميدو نه پس خوراك کول. څکل جائز نه دی، دلته چه د کوم اذان نه پس د خوراك څکاك ارشاد دې هغه د تهجد اذان دې چه د هغې نه روستو بالاتفاق د پيشمنی وخت باقی وی، د تهجد د اذان رواج نن هم په حرمين شريفين کښ دې خو زمونږ په علاقو کښ خو صرف د سحر اذان کيږی، هغه د دې نه هرګز مراد نه شی کيدې. د تهجد اذان به سيدنا بلالؓ ورکولو، لکه چه د سحر اذان به سيدنا عبدالله بن ام مکتومؓ ورکولو. لکه چه په روايت کښ راځی:

**﴿وعن عائشة رضي الله عنها ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لا يمنعنكم اذان بلال عن سحوركم فانه ينادى بليل فكلوا واشربوا حتى تسمعوا اذان ابن ام مكتوم فانه لا يؤذن حتى يطلع الفجر﴾** [2]

**ترجمه** : د سيده عائشېؓ نه روايت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل : تاسو دې د بلال اذان د پيشمنی د خوراك نه منع نه کړی هغوی د شپې اذان ورکوی، پس

---

[1] تفهيم القرآن : ١/١٤٦

[2] البخاری : ٦٢٢، ١٩١٨، ومسلم : ١٠٩٢، واحمد : ٢٤٢٢٣

خوراك څکاك کوئ تردې چه د ابن ام مکتوم اذان وانورئ هغه چه ترڅو صبا نه شي اذان نه ورکوي.

د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت کې دا الفاظ په واضحه توګه بيان شوي دي:

﴿ فان بلالا يؤذن اوينادئ بليل ليرجع قائمكم ولينبه نائمكم ﴾ [1]

**ترجمه**: سيدنا بلال رضي الله عنه د شپې اذان کوي يا يې وفرمايل: په شپه کې آواز کوي چې لمونځ کوونکي واپس شي او ستاسو ويده بيدار شي.

علامه جصاص رحمه الله فرمايي: چې په مشکوك حالت کې د صبح صادق د يقين کيدو نه مخکې يې څه خوراك څښاك وکړ: نو ګنهګار به نه وي. که وروسته ورته معلومه شوه چې سبا شوی وو: نو په هغه باندې به قضاء وي. [2]

که يقين يې راشي چې سبا شوی: نو اوس به بالکل ګنجائش نه وي. د خوراك. څښاك او ددېنه وروسته به خوراك حرام وي. اګر چې دوه دقيقې ولې نه وي.

خلاصه دا شوه چې د پيشمنې په خوراك کې به وسعت او ګنجائش صرف د هغه وخته پورې وي. ترڅو پورې چې د سبا راختلو يقين نه وي شوی. که يقين يې راغی: نو اوس بالکل ګنجائش نشته. [3]

## لسمه عقيده: تقليد د ګناه نه هم بدتر شی دی

په رسائل و مسائل کې مودودي صاحب ليکي

زما په نزد د عالم سړي لپاره تقليد ناجائز او ګناه. بلکې ددېنه هم سخت شی دی: خو دا ياد ساتی چې د خپل تحقيق په بناء د يو سکول دطريقې او اصولو اتباع کول بيل شی دی او د تقليد قسم خوړل بالکل جدا شی دی او هم دا هغه آخري شی دی. چې زه يې صحيح نه ګنم. [4]

---

[1]) البخاری: ٦٢١، ومسلم: ١٠٩٣، واحمد: ٣٦٥٤

[2]) احکام القران

[3]) درس ترمذی: ٢/٥٤٥

[4]) رسائل ومسائل ١/٢٤٤، طبع دوم

**جواب** : ددې په خلاف د څلورمې صدی نه وروسته د پوره امت په تقلید باندې اتفاق راروان دی. چې په هغې کې د خپلې زمانې لوی لوی عالمان تیر شوي دي اوس د ائمه اربعه وو څخه علاوه د بل مجتهد په مذهب باندې عمل کول صحیح نه دي. پدې باندې د پوره امت اتفاق دی. پدې اړه مولانا عبدالحی لکهنوي رحمه الله فرمایي:

﴿ وفيه اشارة الى ان انحصار المسالك فى المذاهب الاربعة المشهورة فى الازمنة المتاخرة امر الهى، وفضل ربانى لايحتاج الى اقامة الدليل ﴾[1]

**ترجمه** : پدیکې دې طرفته اشاره ده. چې په مخکې زمانه کې د تقلید شخصي په څلورو مذهبونو کې منحصر کیدل صرف الهي حکم او رباني فضل دی. چې د هیڅ دلیل محتاج نه دی.

همدغه شان شاه ولی الله دهلوي رحمه الله فرمایي:

﴿ وبالجملة فالمذهب للمجتهدين سرّ الهمه الله تعالى العلماء وجمعهم عليه من حيث يشعرون اولا يشعرون ﴾[2]

**ترجمه** : د مجتهدینو مذهبونو کې په یو باندې عمل کول دا یو راز دی. چې الله پاك په عالمانو باندې الهام کړی او هغوی یې پدې باندې راجمع کړي دي. که هغوی پوهیږي او که نه پوهیږي.

علامه امیر الحاج رحمه الله فرمایي:

﴿ وَالْحَاصِلُ أَنَّ هَؤُلَاءِ الْأَرْبَعَةَ انْخَرَقَتْ بِهِمُ الْعَادَةُ عَلَى مَعْنَى الْكَرَامَةِ عِنَايَةً مِنَ اللهِ تَعَالَى بِهِمْ إِذَا قِيسَتْ أَحْوَالُهُمْ بِأَحْوَالِ أَقْرَانِهِمْ ثُمَّ اشْتِهَارُ مَذَاهِبِهِمْ فِي سَائِرِ الْأَقْطَارِ وَاجْتِمَاعُ الْقُلُوبِ عَلَى الْأَخْذِ بِهَا دُونَ مَاسِوَاهَا إِلَّا قَلِيلًا عَلَى مَمَرِّ الْأَعْصَارِ ﴾[3]

**ترجمه** : حاصل دا چې ائمه اربعه د الهي رحمت په طور خلاف عادت د هغوی د

---

[1]) غیث الغمام ص : ٥
[2]) الانصاف: ص ٦٣
[3]) کتاب التقریر فی شرح التحریر : ٣/٢٥٤

کراماتو دلیل دی، د هغوی احوال که زمونږ د زماني د بزرګانو په احوالو باندې وتلل شي او بیا د عالم په اطرافو کې د هغوی د مذهبونو شهرت او د زماني د اوږد والي باوجود د لږو خلکو د استثناء نه علاوه هم ددې څلورو مذهبونو طرفته د ټولو زړونو راجمع کیدل (ضرور د قبولیت عند الله دلیل دی)

ابن همام رحمه الله فرمایي:

﴿ انعقد الاجماع على عدم العمل بالمذاهب المخالفة للائمة الاربعة ﴾ (١)

**ترجمه** : پدې باندې اجماع تړل شوې ده، چې د ائمه اربعه وو خلاف په یو مذهب باندې هم عمل جائز نه دی.

علامه شامي رحمه الله فرمایي:

﴿ فانه لایجوز احداث قول خارج عن المذاهب الاربعة ﴾ (٢).

**ترجمه** : د څلورو مذهبونو نه علاوه په پنځم مذهب باندې عمل کول جائز نه دي.

## یوولسمه عقیده: د مودودي صاحب د فقه څخه نفرت

په اسلامي علومو کې د علم فقه اهمیت ډیر زیات دی، ددې فقه نه بغیر انسان په دین باندې عمل نشي کولی. پدې اړه مودودي صاحب لیکي:

د قیامت په ورځ به د الله پاك په وړاندې د ګناهګارو او د هغوی د مشرانو نیول به روان وي. الله پاك به د هغوی نه پوښتنه کوي. چې آیا مونږ تاسو ته علم او عقل ددې لپاره درکړی وو. چې زمونږ کتاب او زمونږ د نبي سنت ستاسو ترمنځ ددې لپاره وو. چې هغه تاسو سره وو او مسلمانان په ګمراهی کې اخته کیږي. مونږ خپل دین آسانه کړی وو، ستاسو څه حق وو چې هغه مو سخت کړ. مونږ د قرآن کریم او د محمد ﷺ د تابعداری حکم کړی وو، په تاسو دا چا فرض کړي. چې د دوی څخه زیات د خپلو مشرانو تابعداري وکړی، مونږ د هر مشکل علاج په قرآن کې اینبی، تاسو ته چا ویلي؟ چې قرآن ته لاس مه ور وړی، د خپل ځان لپاره د انسانانو لیکل

---

(١) فتح القدير، شرح هداية

(٢) شامی : ١/٤٦

شوي کتابونه کافي وګڼي، ددې پوښتنې په جواب کې امید نشته چې یو عالم ته د کنز الدقائق، هدایه او عالمګیري د مصنفینو په لمنو کې پناه واخلي: خو جاهلانو ته به د جواب ورکولو موقع ضرور ملاو شي چې: [۱]

﴿ رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ﴾ [۲]

**جواب** : د دې بالمقابل د قرآن کریم اهمیت خو قران، حدیث، اجماع او قیاس بیان کړی، پدې اړه علامه ابن القیم رحمه الله فرمایي: چې فقهاء کرام داسې دي، لکه په اسمان کې روښانه ستوري، د همدې ستورو په ذریعه په توره شپه کې بې لارې شوو خلکو ته لاره ملاویږي او هم د دوی په ذریعه نه حل کیدونکې مسئلې حل کیږي. پدې وجه د فقهاء کرامو تابعداري د مور او پلار د تابعدارۍ څخه هم زیاته ضروري ده، لکه په قرآن کریم کې چې د الله پاك ارشاد دی:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ﴾ [۳]

**ترجمه** : اې مؤمنانو! د الله پاك او د رسول ﷺ تابعداري وکړئ او د اولو الامر (یعني فقهاؤ) همدغه شان په قرآن کریم کې بل ځای راځي:

﴿ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ [۴]

**ترجمه** : د دین علم یعني (فقه او تفقه فی الدین) چې چا ته الله پاك وغواړي ورکوي یې، چا ته چې د دین پوهه ورکول شي. هغه ته ډیر لوی خیر ملاویږي. [۵]

همدغه شان په حدیث کې راځي: ﴿ من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین ﴾ چا سره چې الله پاك د خیر معامله کوي: نو هغه ته د دین فهم ورنصیب کړي. [۶]

---

[۱] حقوق الزوجین : ۹۸
[۲] الاحزاب : ۶۷، ۶۸
[۳] النساء : ۵۹،
[۴] البقرة : ۲۶۹
[۵] اعلام الموقعین ۲۶۹
[۶] البخاری : ۷۱، مسلم : ۱۰۳۷، احمد : ۱۶۸۴۹ مشکوة ج۱ص۳۲

په يو بل روايت کې راځي: ﴿لكل شئ عماد وعماد هذا الدين الفقه﴾ [1] د هر شي يوه ستن وي او ددې دين ستن فقه ده. په يو بل روايت کې راغلي دي چې ﴿الناس معادن كمعادن الذهب والفضة خيارهم في الجاهلية خيارهم في الاسلام اذا فقهوا﴾ خلک د سرو زرو او سپينو زرو د کانونو په شان دي. کوم خلک چې د جاهليت په زمانه کې د نيکو اخلاقو د وجې مشران او مقتدا وو. هغوی به په اسلام کې هم ښه وي. کله چې هغوی د دين پوهه حاصله کړي. سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما ته رسول الله ﷺ دعا کړې وه. ﴿اللهم فقهه في الدين وعلمه التاويل﴾ [2] اې الله ابن عباس رضي الله عنهما ته د دين فهم او علم تفسير ورکړه.

امام عامر شعبي رحمه الله چا چې د پنځه سوه صحابه کرامو رضي الله عنهم زيارت کړی. فرمايي:

﴿انالسنا بالفقهاء ولكننا سمعنا الحديث فروينا للفقهاء﴾ [3]

**ترجمه**: موږ فقهاء او مجتهدين نه يو: خو موږ احاديث اورو بيا يې فقهاء کرامو ته بيانوو.

ظاهره خبره ده چې په قرآن او حديث کې ټول جزئيات نه دي بيان شوي. دا ټول جزئيات او فروعات خو فقهاء بيانوي. د هغې نه بغير څوك هم په پوره دين باندې نشي تللی

## دولسمه عقيده: تصوف او سلوک د جاهلانو طريقه ده

مودودي صاحب د تصوف څخه ډير خفه دی او پدې پورې يې ښه ټوقې کړي دي. يو ځای کې ليکي:

د مسلمانانو ددې مرض (تصوف) څخه نه مجدد الف ثاني خبر وو. نه شاه صاحب. د دواړو په کلام کې پدې باندې تنقيد شته: خو غالبا پدې مرض کې مهلك ثابت شوی وو. ددې نتيجه دا شود چې په مزه مزه د دواړو حلقه بيا د داسې زوړ مرض نه متاثره شوه.

[1] الدارقطني: ۳/۷۹ بحواله فتاوی سراجيه ص۱۵۸
[2] احمد: ۱/۳۶۶، ۳۱٤، وابن حبان: ۷۰۵۵
[3] تذكرة الحفاظ

بل ځای کې لیکي: څنګه چې د اوبو په شان حلال شی هم هغه وخت منع شي. کله چې هغه د مریض لپاره نقصان ورکونکی وي، همدغه شان دا قالب هم. ددې د کیدو باوجود قطعي د پرهېزدلو قابل شوی دی، چې پدې جامه کې مسلمانانو ته د افیونو نشه ورکړې ده. هغې ته نزدې ورتلو سره دي مؤمن مریضانو ته بیا هم هغه چنیا بیګم رایاده شي. کومه چې د سوونو کالو پورې هغوی ښه برابر ویده کوي [1].

همدغه شان په بل ځای کې لیکي: د پیری مریدی سلسله هم د سید صاحب په تحریك کې شروع شوه. پدې وجه د صوفیت د مرض د جراثیمو څخه دا تحریك پاك پاتې نه شو [2].

**جواب** : حال دا چې د بیعت ثبوت د قرآن او حدیث څخه شوی. پدې وجه ددې نه انکار کول ګران دي:

١: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ ﴾ [3].

**ترجمه** : یقینا هغه کسان چې تا سره بیې بیعت کړی. هغوی د الله پاك سره بیعت وکړ. د الله پاك لاس د هغوی د لاس دپاسه دی

٢ ﴿ لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ ﴾ [4].

**ترجمه** : یقینا الله پاك د مؤمنانو څخه راضي شوی. کله چې هغوی تاسره د ونې د لاندې بیعت کولو

٣ ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰ أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِينَهُ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴾ [5]

---

[1]) تجدید احیاء دین ص ١٣٢.

[2]) تجدید احیاء دین ص ١٣٤.

[3]) سورة الفتح آیت : ١٠

[4]) سورة الفتح آیت : ١٨

[5]) سورة الممتحنة آیت : ١٢

**ترجمه** : اې نبي ﷺ! کله چې مسلمانې ښځې تاته راشي، ستا سره پدې باندې بیعت کوي، چې شرك به نه کوي، غلا به نه کوي، زنا به نه کوي، خپل اولاد به نه وژني او داسې بهتان باندې به راتګ نه کوي، چې له ځانه یې جوړ کړی وي او ستا نافرماني به په نیکی کې نه کوي. ته د هغوی سره بیعت وکړه. د هغوی لپاره د الله پاك نه بخښنه وغواړه، بېشکه الله پاك بخښونکی او مهربانه ذات دی.

همدغه شان په احادیثو کې هم د بیعت ذکر راغي!

١: ﴿ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَهُوَ أَحَدُ النُّقَبَاءِ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ: "بَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللهِ شَيْئًا، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَزْنُوا، وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ، وَلَا تَأْتُوا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ، وَلَا تَعْصُوا فِي مَعْرُوفٍ، فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللهِ، وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ، وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ثُمَّ سَتَرَهُ اللهُ فَهُوَ إِلَى اللهِ، إِنْ شَاءَ عَفَى عَنْهُ وَإِنْ شَاءَ عَاقَبَهُ" فَبَايَعْنَاهُ عَلَى ذَلِكَ ﴾(١)

**ترجمه** : سیدنا عبادة بن صامت رضي الله عنه چې د بدر په جنګ کې شریک وو، د لیلة العقبة په نقیبانو کې یو وو. فرمایي چې رسول الله ﷺ هغه وخت چې د هغوی نه چاپېره د صحابه کرامو رضي الله عنهم یوه ډله موجوده وه دا وفرمایل ما سره بیعت وکړی! پدې خبرې چې د الله پاک سره به څوک هم نه شریکوی، غلا به نه کوی، زنا به نه کوی، خپل نسل به نه ختموی او نه به قصداً څه بهتان تړی او په نیکه خبره کې به (د الله پاک نه) سرکشي نه کوی. څوک چې په تاسو کې دا عهد پوره کړي؛ نو د هغه اجر د الله پاک په ذمه دی او څوک چې ددې (بدو خبرو) نه په څه کې اخته شي. هغه ته به په دنیا کې سزا ورکول کیږي؛ نو دا سزا به د هغه (د ګناهونو) لپاره کفاره شي، څوک چې پدې خبرو کې اخته شو او الله پاک هغه (ګناه) پټه کړه؛ نو هغه (معامله) الله پاک ته سپارل شوې ده. که غواړي؛ نو معاف به یې کړي او که غواړي؛ نو سزا به ورکړي. (عبادة فرمایي: چې) بیا مونږ ټول (پدې ټولو خبرو باندې) د رسول الله ﷺ سره بیعت وکړ.

---

(١) بخاری کتاب الایمان ج١ ص٧

۲: سيدنا جرير بن عبدالله رضي الله عنه فرمايي چې: ما د رسول الله ﷺ سره په لمونځ کولو، زکوة ورکولو باندې بيعت وکړ او پدې خبره چې د هر مسلمان خير خواهي به کوم.[1]

۳: په يو بل حديث کې دي چې: رسول الله ﷺ سيدنا ابوذر رضي الله عنه ته وفرمايل: شپږ ورځې انتظار وکړه! په اوومه ورځ به تا ته يوه خبره کوم. په هغې باندې ځان ښه پوه کړه! په اوومه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل چې: لومړی دا چې تا ته د الله پاك د تقوی وصيت کوم که يواځې يې او که په ټولي کې يې. په خلوت کې هم او محفل کې هم، کله چې څه بد کار وشي؛ نو د هغې نه وروسته فورا څه نيك کار کوه او د چا نه سوال مه کوه .... او د چا امانت مه ساته.[2]

**خلاصه** : ددې آيتونو او احاديثو خلاصه علماء کرام دا بيانوي چې: بيعت دا معاهده ده، د احکامو د ظاهري او باطني اعمالو نوم دی.[3]

ددېنه په بدعت او جرائيم سره تعبير کول په پوره امت پورې تورې توقې کول دي. ځکه چې دا سلسله د شروع نه په امت کې موجوده وه.

## ديارلسمه عقيده: د تفسير بالرأی په اړه

د قرآن په فهم کې د مخکنيو پوهګړو (اسلافو) ضرورت نشته. بلکې په خپله رايې سره هم تفسير کيدلی شي، پدې اړه مودودي صاحب ليکي:

د قرآن کريم لپاره د تفسير حاجت نشته، د يو اعلی درجې پروفيسر کولای شي، چا چې د قرآن کريم په ژور نظر مطالعه کړې وي او په جديد طرز يې د قرآن لوستلو او فهم کولو اهليت لري، هغوی دي په خپل درس (لکچر) سره په ښوونځي کې په طالبانو کې د قرآن د پوهې ضروري استعداد پيدا کړي، بيا دې په بې، اې کې هغوی ته پوره قرآن کريم داسې وښيي. چې هغوی په عربيت کې هم پوره مهارت وکړي او د اسلام د روح څخه هم ښه خبر شي.[4]

---

[1] البخاري: ۱۳۱۱، و مسلم : ۵٦، و احمد : ۳۲۸۱

[2] مشکوة

[3] شريعت و طريقت کا تلازم. ص۱۲۳

[4] تفهيمات ص : ۱۹۳، طبع چهارم

په بل ځای کې داسې لیکي. ما چې په تفهیم القرآن کې د کوم شي کوشش کړی. هغه دا چې: د قرآن په لوست سره چې کوم مفهوم ذهن ته راشي او کوم اثر چې زما په زړه باندې مرتب کیږي حتی الامکان یې په خپله ژبه نقلوم [۱]

**جواب** : ددې په مقابل کې د اهل سنت والجماعت علماء فرمایي چې: د قرآن کریم تفسیر یو انتهایي نازك او ګران کار دی. ددې لپاره په پنځلسو علومو کې مهارت ضروري دی. چې د هغې لنډه خلاصه دا ده:

## د قرآن د تفسیر لپاره د پنځلسو علومو ضرورت

**لومړی لغت** : ددې لپاره چې د کلام الله د مفردو الفاظو معنی معلومه شي. مشهور امام مجاهد رحمه الله وایي چې کوم سړی په الله پاك او د قیامت په ورځ ایمان لري. د هغه لپاره جائز نه دي. چې د عربي لغت د پوهې نه بغیر په کلام پاك کې خوله خلاصه کړي. د یو څو لغتونو معلومول پوره نه دي. ځکه چې ډیر ځله لفظ په څو معناګانو کې شریك وي او هغه د هغې څخه یو معنی پیژني: خو په حقیقت کې هغه ځای بله کومه معنی مراده وي.

**دویم نحو** : د نحو په علم ځان پوه کول ضروري دي. ځکه چې د اعراب په تغیر او تبدیل سره معنی بالکل بدلیږي، د اعراب پیژندګلوو په نحو باندې موقوفه ده. لکه یو سړی د جهادي ژوند د جوش خپرولو لپاره د ﴿ وكفى الله المؤمنين القتال ﴾ ترجمه یې داسې ده: چې کافي دی الله پاك د مؤمنانو لپاره (صرف یو عمل) په قتال کې

**دریم صرف** : په صرف باندې ځان پوه کول ضروري دي، ځکه چې د بناء او صیغو په اختلاف سره معناګانې بدلیږي. ابن فارس رحمه الله فرمایي: کوم سړي چې علم الصرف نه وي ویلی. د هغه څخه به ډیر څه فوت شي. علامه زمخشري په تفسیر اعجوبات کې نقل کړي. چې یو سړي د قرآن کریم آیت ﴿ یوم ندعوا كل اناس بامامهم ﴾ (کله چې به مونږ راوغواړو هر سړی د هغه د پیشوا سره) ددې تفسیر د صرف څخه د ناخبرۍ په وجه

[۱]) ترجمان القرآن ص: ۱۳٦۱، سورة ص: ۲

داسې کړی، په کومه ورځ چې به مونږ راوبلو هر سړی د هغوی د مېندو سره. د امام لفظ چې مفرد وو، هغه د ام جمع وګڼله. او د خپلې رايې مطابق معنا يې وکړه. که هغه د صرف څخه خبر وی: نو معلومه شوې به وی چې د ام جمع امام نه بلکې امهات راځي.

**څلورم اشتقاق** : په اشتقاق ځان پوهول ضروري دي. ځکه چې لفظ کله د دوه مادو څخه مشتق وي: نو د هغې معناګانې بدليږي. لکه د مسيح لفظ چې ددې اشتقاق د مسح څخه دی. په معنی د مس کولو او لوند لاس په يو شي د رانښکلو دی او د مساحت څخه هم مشتق دی. چې د هغې معنی د پيمانې او اندازې ده.

**پنځم علم معاني** : په علم معاني ځان پوهول پکار دي. ځکه چې پديکې د کلام ترکيب د معنی په اعتبار سره معلوميږي.

**شپږم علم بيان** : علم بيان پيژندل ضروري دي. چې په هغې سره د کلام ظهور او خفاء. تشبيه او کنايه معلوميږي.

**اووم علم بديع** : د علم بديع پيژندل ضروري دي: چې په هغې سره د کلام د تعبير ښايست معلوميږي، دې درې واړو فنونو ته علم بلاغت وايي، دا د مفسر په اهمو علومو کې دي، ځکه چې کلام پاك چې سراسر اعجاز دی، پدې سره ددې اعجاز کيدل معلوميږي.

**اتم علم قراءت** : د علم قراءت پيژندل هم ضروري دي، ځکه چې د مختلفو قراءتونو له امله مختلفې معناګانې معلوميږي او د ځينو معناګانې په بله معنی باندې ترجيح ورکول معلوميږي.

**نهم علم عقائد** : د عقايدو د علم پيژندل هم ضروري دي، ځکه چې په کلام پاك کې ځينې آيتونه داسې هم دي، چې د هغې د ظاهري معنی اطلاق په الله پاك باندې صحيح نه دی، پدې وجه به په هغې کې د څه تاويل ضرورت راځي لکه:

﴿ يدالله فوق ايديهم ﴾

**لسم اصول فقه** : د اصول فقه پېژندل ضروري دي، چې په هغې سره د استدلال او استنباط طريقې معلومېږي.

**يوولسم اسباب نزول** : ددې معلومول هم ضروري دي چې په شان نزول سره د آيت كريمه معنی زياته واضحه كيږي او ډېر كرت د اصل معنی معلوميدل هم په شان نزول باندې موقوفه وي.

**دولسم ناسخ او منسوخ** : ددې معلومول هم ضروري دي، چې منسوخ شوي حكمونه د معمول بها څخه ممتاز شي.

**ديارلسم علم فقه** : ددې علم پېژندل ضروري دي. ځكه چې د جزئياتو په احاطې سره كليات پېژندل كيږي.

**څوارلسم احاديث** : د احاديثو د علم پېژندل ضرورپ دي، چې د قرآن كريم د مجملو آيتونو تفسير واقع كيږي.

**پنځلسم** : ددې ټولو څخه وروسته پنځلسم هغه علم وهبي دی، چې د حق سبحانه و تعالى خاص وركړه ده، خپلو مخصوصو بندګانو ته يې وركوي، چې هغې ته پدې حديث شريف كې اشاره شوې ده، ﴿من عمل بما علم ورثه الله علم مالم يعلم﴾ كله چې بنده ته هغه څه معلوم شي چې عمل پرې كوي؛ نو الله پاك ورته د داسې شيانو علم وركوي، چې هغه ته نه وي معلوم. (١)

او څوك چې دَ قرآن كريم په تفسير كې خپل رايه وركړي. د هغه لپاره د رسول الله ﷺ فرمان دی:

١: ﴿مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ﴾ (٢)

**ترجمه** : چا چې د قرآن كريم په معامله كې د علم نه بغير څه خبره وكړه؛ نو هغه دې خپله استوګنه په جهنم كې جوړه كړي.

٢: ﴿مَنْ قَالَ فِي كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ﴾ (٣)

---

(١) شريعت و طريقت كا تلازم ص: ٣٢
(٢) الاتقان ج٢ ص١٧٩
(٣) ابوداؤد، النسائی، از اتقان ج٢ ص١٧٩

**ترجمه** : ځوك چې د قرآن كريم په معامله كې خپله رايه ښكاره كړي، هغه صحيح خبره هم وكړي: نو بيا هم هغه غلطي وكړه.

په اعتصام كې دي چې: يو ځل سيدنا عمر رضي الله عنه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه پوښتنه وكړه، هر كله چې ددې امت نبي يو دی، قرآن يې يو دی: نو پدې امت كې به اختلاف څنګه پيدا كيږي؟ ددې په جواب كې سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وويل: اې امير المؤمنين! قرآن كريم زمونږ په وړاندې نازل شوی، مونږ خو ددې د نزول مقامات پيژنو؛ خو وروسته به داسې خلک راشي چې قرآن كريم به لولي خو هغوی ته به صحيح طريقې سره د هغې د مواردو او مصادرو علم نه وي. بيا به هغوی د خپل طرفه رايه وركوي، د ړندو په څېر واري به كوي. ددې له امله به د هغوی په منځ كې اختلاف پيدا شي او جنګ به يې شروع شي. (١)

## څوارلسمه عقيده: صحابه كرام رضي الله عنهم معيار حق نه دي

په اسلام كې د ټولو څخه پاك جماعت د صحابه كرامو رضي الله عنهم دی؛ خو د مودودي صاحب په نزد صحابه كرام رضي الله عنهم د حق معيار نه دي، پدې اړه خپله ليكي:

د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه علاوه يو سړی هم معيار حق نه جوړيږي، ځوك دي هم د تنقيد نه خلاص نه ګڼي، د چا په ذهني غلامۍ كې دې نه اخته كيږي، هر يو دې د الله پاك په بيان شوي كامل معيار باندې وتلي، ځوك چې ددې معيار په لحاظ سره په كومه درجه كې وي، هغه دې هم په هغې درجه كې وساتي. (٢)

**جواب** : همدا خبره د ټولو څخه بنيادي ده، چې ټول امت صحابه كرام رضي الله عنهم معيار حق ګڼي، مودودي صاحب ددې څخه انكار وكړ، كله چې ددې انكار وشو: نو بيا د صحابه كرامو رضي الله عنهم په ټولو خبرو باندې شك راغی، ددې خلاف علماء كرام فرمايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ لپاره معيار حق دی، ددې مطلب دا دی: چې د صحابه كرامو رضي الله عنهم اقوال او افعال دا تله دد. كوم كار چې هغوی كړی دی، هغه زمونږ

---

١) الاعتصام : ١٥٧

٢) دستور جماعت اسلامی پاكستان : ١٤

لپاره د لارې بل مثال، حجت او د کامیابۍ ذریعه ده. صحابه کرام رضي الله عنهم معیار حق دي. پدې خبره باندې د قرآن کریم آیتونه او نبوي ﷺ احادیث او د امت اجماع ده. مثلا په قرآن کریم کې دي:

۱: ﴿ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴾ [۱]

**ترجمه** : څوك چې د رسول الله ﷺ مخالفت د هدایت واضحه کېدو وروسته وکړي، د مؤمنانو د لارې څخه علاوه په بله لاره روان شي: نو مونږ به هغه هم هغه طرفته واړوو، کوم طرفته چې اوړيدلي دي او جهنم ته به يې داخل کړو او هغه ډېر بد ځای د واپس ورتلو دی.

شاه عبدالعزیز دهلوي رحمه الله فرمايي: چې د ﴿ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ څخه مراد صحابه کرام رضي الله عنهم دي. [۲]

۲: ﴿ هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ﴾ [۳]

**ترجمه** : هغه (الله پاك) او د هغه ملایکې په تاسو باندې رحمت رالیږي، چې تاسو يې د تیارې څخه رڼا ته وباسلی.

د آیت څخه مراد صحابه کرام رضي الله عنهم دي، چې الله پاك هغوی د تیارو څخه وويستل او څوك چې د هغوی اتباع کوي، هغوی به هم د تیارو څخه وباسي. [۴]

۱: صحابه کرامو رضي الله عنهم ته يو ځای کې ﴿ اولئك هم المفلحون ﴾ [۵] او په بل ځای کې ﴿ اولئك هم الراشدون ﴾ [۶] وغیره فرمايل شوي.

شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمايي ﴿ ولاشك ان تابع المفلح مفلح ﴾ پدیکې هیڅ شك نشته

---

[۱] سورة النساء آیت: ۱۱۵
[۲] تحفه اثناء عشریه
[۳] سورة الاحزاب آیت: ۴۳
[۴] تحفه اثنا عشریه
[۵] سورة التوبة آیت : ۸۸
[۶] سورة الحجرات آیت : ۷

چې د كامياب تابع هم كامياب وي. [۱]

دغه شان په احاديثو كې هم د رسول الله ﷺ د حق بيانونكي ژبې څخه صحابه كرامو ﷺ ته معيار حق ويل شوى، مثلا: رسول الله ﷺ فرمايي: زما په امت باندې به هر هغه څه راځي كوم چې په بنى اسرائيلو راغلي دي. د بني اسرائيلو دوه اويا ډلې وې، زما امت به درې اويا ډلې شي، هغوى ټول به جهنميان وي. صرف يوه ډله به ناجي ډله وي، صحابه كرامو ﷺ عرض وكړ: چې هغه به كومه ډله وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿ ماانا عليه واصحابي ﴾ په كومه لار چې زه او زما صحابه كرام ﷺ دي. [۲]

۲: يو ځل د الله پاك دا قول د رسول الله ﷺ څخه نقل شو!

﴿ إن أصحابك (عندي) بمنزلة النجوم في السماء بعضها اقوى (أضوء) من بعض ولكل نور فمن (لمن) أخذ بشيء مما هم عليه من اختلافهم فهو عندي على هدى ﴾

**ترجمه** : زما په نزد ستا د صحابه كرامو ﷺ مرتبه د آسمان د ستورو په څېر ده، چې ځينې ستورې د ځينو ستور څخه قوي دي؛ خو د هر ستوري لپاره رڼا شته. څوك چې هم د صحابه كرامو ﷺ د رايې اختلاف څخه يوه رايه اختيار كړي. هغه به زما په نزد په هدايت وي.

ددېنه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل:

﴿ أصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم ﴾ [۳]

**ترجمه** : زما صحابه د ستورو په څېر دي، په هغوى كې چې تاسو د چا اقتدا وكړه؛ هدايت به بيا مومئ.

۳: ﴿ ان الله نظر الى قلوب العباد ... ﴾ [۴]

**ترجمه** : الله پاك د خپلو بندګانو په زړونو باندې نظر واچولو؛ نو د رسول الله ﷺ زړه يې په ټولو زړونو كې غوره بيا موندلو، د هغه زړه يې د رسالت لپاره غوره

---

[۱]) تحفه اثنا عشريه
[۲]) مشكوة : ۳
[۳]) مشكوة : ۵۵٤،
[۴]) موطاء امام محمد ...

کړ، بیا یې په نورو زړونو نظر واچولو؛ نو د محمد ﷺ د اصحابو زړونه یې د ټولو بندګانو د زړونو څخه غوره بیا موندل؛ نو هغوی یې د خپل نبي ﷺ د ملګرتیا لپاره غوره کړل، هغوی یې د خپل دین مرستندویه او د خپل نبي ﷺ وزیران وګرځول. کوم کار چې مسلمانان (صحابه رضی الله عنهم) غوره ګڼي. هغه د الله پاك په نزد هم غوره دی او کوم کار چې هغوی بد ګڼي؛ نو هغه د الله پاك په نزد هم بد دی.

شیخ الاسلام حضرت مولانا سید حسین احمد مدني رحمه الله فرمایي:

صحابه کرام رضی الله عنهم د ټول اهل سنت والجماعت په نزد غیر معصوم دي: خو دا خبره د منلو وړ نه ده. چې معیار حق صرف معصوم کیدی شي، د چا نه چې الله پاك د خپلې رضا اظهار وکړ، د هغوی د یقني مخلّد فی الجنة کیدو اعلان یې وکړ. هغه ډله به ولې معیار حق نه وي. (١)

امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله فرمایي:

رسول الله ﷺ د نجات موندونکي ډلې په اړه فرمایي: څوک چې په هغه طریقه باندې وي، په کوم چې زه او زما صحابه کرام رضی الله عنهم دي. په ظاهري ډول صرف دومره ویل پوره وو، چې په کومه طریقه باندې زه یم؛ خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم ذکر یې له ځانه سره ځکه وکړ چې ټول پوه شي، زما کومه طریقه ده. هم هغه زما د صحابه کرامو رضی الله عنهم طریقه ده. د خلاصي لاره د صحابه کرامو رضی الله عنهم په طریقه کې ده. د خلاصي لاره د صحابه کرامو رضی الله عنهم په تابعداری کې ده. (٢)

## پنځلسمه عقیده: د خلفاء راشدینو فیصلې هم زمونږ لپاره حجت او معیار نه دي

د خلفاء راشدینو فیصلې په اسلام کې قانون کیدی نشي. هغه چې هغوی د قضاء په حیث خلکو ته ورکړي وي. (٣)

**جواب**: حال دا چې علماء کرام فرمایي: چې د خلفاء راشدینو نسبت هم د سنت نبوي ﷺ یو اړخ دی. د هغوی تابعداري هم په امت باندې واجبه شوې. لکه چې د

---

(١) فرمودات حضرت مدنی: ١٤٥، مرتبه مولانا ابو الحسن باره بنکوی صاحب

(٢) مکتوبات امام ربانی ص: ١٠٢، ١٠٣

(٣) ترجمان القران جنوری: ٥٨

رسول الله ﷺ مشهوره وینا ده:

۱: ﴿عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّيْنَ الرَّاشِدِيْنَ تَمَسَّكُوْا بِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ﴾[۱]

**ترجمه**: زما او د خلفاء راشدینو سنت لازم ونیسئ چې هدایت یافته دي او هغه د (ځامې) په غاښونو کلک ونیسئ.

په پورته حدیث کې رسول الله ﷺ خپل سنت سره ﴿وسنة الخلفاء الراشدين﴾ شامل کړي، دا ددې خبرې دلیل دی. څنګه چې د رسول الله ﷺ سنت حجت او معیار حق دی؛ نو همدغه شان د خلفاء راشدینو سنت هم حجت او معیار حق دی.[۲]

۲: ﴿اِقْتَدُوْا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِيْ أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ﴾[۳]

**ترجمه**: زما نه وروسته د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما اقتداء وکړئ.

د پورته حدیث په اړه علامه بدر الدین عیني رحمه الله فرمايي:

﴿سيرة عمر لا شك ان في فعلها ثوابا وفي تركها عقابا، لانا امرنا بالاقتداء بها لقوله عليه السلام: اقتدوا باللذين من بعدي ابي بكر و عمر رضي الله عنهما فاذا كان الاقتداء بهما مامورا به يكون واجباً وتارك الواجب يستحق العقاب والعتاب﴾

**ترجمه**: د سیدنا عمر رضي الله عنه په سیرت عمل کولو کې بېشکه ثواب دی. د هغې په پرېښودلو کې عقاب او زورنه ده. ځکه چې د رسول الله ﷺ پدې قول ﴿اقتدوا باللذين من بعدي ابي بكر و عمر﴾ کې مونږ ته د هغوی دواړو د اقتدا حکم شوی دی: نو هر کله چې د دوی دواړو اقتدا مامور به ده: نو د واجبو پرېښودنکي به یقینا د عقاب او عتاب مستحق وي.

شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمايي: د خلافت (راشده) زمانه یو قسم د نبوت زمانه وه. ګویا د نبوت په زمانه کې به رسول الله ﷺ صراحتا حکم کولو[۴]

---

[۱] مشکوة: ۳۰

[۲] الفتوحات الوهبیة ص: ۱۹۸

[۳] مشکوة: ۵۶۰

[۴] ازالة الخفاء: ۱/۲۵

# د جماعت اسلامي په اړه د مفتیا نو رایې

د جمیعت علماء هند دفتر دهلي کې په لومړي اګست ۱۹۵۱ء تاریخ کې د علماء کرامو په اجتماع کې د مودودیت په اړه دا لاندې فیصله صادره شوې.

د مودودي صاحب د جماعت او د جماعت اسلامي د ادبیاتو څخه په عامو خلکو چې کوم اثر کیږي. د ائمه وو هدایت د اتباع نه ازادي او بې تعلقي پیدا کیږي. چې د عوامو لپاره هلاکونکي او د ګمراهی باعث دی او په دین کې د صحیح تړون لپاره چې د اسلام سره کوم تعلق ساتل پکار دي. په هغې کې کمی راځي. همدغه شان د مودودي صاحب ډیر تحقیقات غلط دي. بیا د هغه امورو څخه یوه نوې فتنه بلکې د دین د یو محدث او نوي رنګ بنیاد پریوځي. یقینا د مسلمانانو د دین لپاره ضرر لري. پدې وجه مونږ پدې امورو باندې مشتمل تحریك ته غلط او د مسلمانانو لپاره مضر ګڼو او ددې څخه د بې تعلقی اظهار کوو. (۱)

# د اجتماع د شریکانو دستخط کونکي

۱: مولانا مفتي کفایت الله دهلوي صاحب رحمه الله
۲: مولانا سید حسین احمد مدني صاحب رحمه الله
۳: مولانا قاري محمد طیب صاحب رحمه الله (مهتمم دار العلوم دیوبند)
۴: مولانا عبداللطیف صاحب رحمه الله (مهتمم مظاهر العلوم سهارنپور)
۵: مولانا محمد زکریا صاحب رحمه الله (شیخ الحدیث مظاهر العلوم سهارنپور)
۶: مولانا سعید احمد صاحب دهلوي صاحب رحمه الله
۷: مولانا سعید احمد صاحب رحمه الله (مفتي مظاهر العلوم سهارنپوري)
۸: مولانا اعزاز علي صاحب رحمه الله شیخ الادب دار العلوم دیوبند
۹: مولانا حبیب الرحمن لدهیانوي رحمه الله
۱۰: مولانا سید محمد میاں صاحب (د هند د عالمانو د لیکوالانو خوندوره څېره)

---

(۱) ماهنامه دار العلوم دیوبند ذی قعده: ۱۳۷۰ھ

# مودودیت د اکابر علماء کرامو له نظره

۱: حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي
زما زړه دا تحريك نه قبلوي.[۱]

**نوټ**: تهانوي رحمه الله دا خبره هغه وخت کړې وه. کله چې جماعتي حیثیت سره د مودودي صاحب څه نفوذ نه وو.

۲: شیخ العرب والعجم مولانا سيد حسین احمد مدني رحمه الله فرمايي
تر اوسه پورې مونږ د مودودي صاحب اود هغوی د جماعت. تش په نوم جماعت اسلامي د اصولي غلطیانو ذکر کړی. چې لویه ګمراهي ده
اوس به مونږ د هغوی د قرآن کریم او صحيح احاديثو د نښکاره مخالفتونو ذکر کوو. چې د هغې څخه به صفا معلومه شي. د مودودي صاحب د کتاب او سنت بار بار ذکر کول صرف خلک غلطول دي. هغه نه کتاب مني. نه سنت مني. بلکې د اسلافو خلاف یو نوی مذهب جوړوي او غواړي چې پدې طريقې سره خلک جهنم ته بوځي

۳: شیخ الاسلام مولانا شبیر احمد صاحب عثماني رحمه الله:
مودودي صاحب چې په ۱۹۴۸ء کې د کشمیر د جهاد په اړه کله دا فتوی ورکړه: چې پاکستاني مسلمانانو لپاره پدې جهاد کې برخه اخستل جائز نه دي: نو علامه عثماني هغوی ته وليکل
څینو ملګرو راته هغه د ترجمان القران هغه پرچه وښوده. چې په هغې کې تاسو د یو سړي د خط په جواب کې د کشمیر د جنګ په اړه د خپلو شرعي خيالاتو اظهار کړی وو. هغه پداسې حال کې چې د کشمیر د جنګ پدې نازکو وختونو کې ستاسو د قلم څخه د داسې ليکنې وتلو له امله راته ډېره حيرانتیا وشوه او خفه شوم، ځکه چې زما په نزد پدې معامله کې ددې څخه داسې غلطي شوې. چې په هغې سره مسلمانانو ته د لوی نقصان رسيدلو احتمال شتون لري.[۲]

---

[۱] روزنامه احسان لاهور ۱۱ ستمبر ۱۹۴۸ء
[۲] اشرف السوانح: ۴/۲۴

۴: شیخ التفسیر مولانا احمد علي لاهوري صاحب رحمه الله فرمايي:

مولانا احمد علی لاهوري يو مستقل کتاب. حق پرست علماء کی مودودیت سے ناراضگی کے اسباب، لیکلي دي. په هغې کې لیکي:

مسلمانانو ورونو! کله چې د مودودي صاحب تحریک ته په غور سره وکتل شي؛ نو د هغوی د کتابونو څخه چې کوم شی ثابتیږي. هغه دا چې مودودي صاحب يو نوی اسلام د مسلمانانو په وړاندې پیش کول غواړي او نعوذ بالله من ذلك نوی اسلام به خلک هغه وخت قبلوي، کله چې د زوړ اسلام دیوالونه راوغورځول شي او مسلمانانو ته ددې یقین وشي. چې د دیارلس نیم سوه کالو کوم اسلام چې تاسو ګرځوی. هغه ناقابل روایت او ناقابل عمل دی. پدې وجه دا نوی اسلام ومنی او هم په هغې باندې عمل کوی، اې الله! زما د زړه دعاګانې قبولې کړه: مودودي صاحب ته هدایت وکړه او د هغوی تابعداري خلکو ته هم ددې نوې اسلام څخه د توبې کولو توفیق ورکړه. او هغوی ته خپل محمدي اسلام بیا ورنصیب کړه: آمین یا اله العالمین. [1]

همدغه شان لاهوري رحمه الله فرمايي:

الله پاك پوهیږي چې په مودودي صاحب باندې څه چل شوی. هغه د الله پاك د هر بنده سپکاوی خپل عادت ګرځولی. په همدې وجه زما په زړه کې دا یقین دی. چې الله پاك د مودودي صاحب څخه ناراض دی. په همدې وجه د الله پاك د هر بنده سپکاوی ډیر په زړورتیا کوي. [2]

۵: حکیم الاسلام مولانا قاري محمد طیب صاحب (مهتمم دار العلوم دیوبند) د صحابه کرامو په معیار حق کیدو کې فرمايي:

پدې صورت کې د مودودي صاحب لیکل شوی د جماعت دستور په بنیادي ماده کې په عمومي توګه دا دعوه کوي چې د رسول الله ﷺ څخه پرته نور څوك د حق

---

[1] حق پرست علماء کی مودودیت سې ناراضگی ص: ٤

[2] حق پرست علماء کی مودودیت سې ناراضګی ص: ٤٣

او تنقید څخه پورته نه دي. چې په هغې کې صحابه کرام ﷢ د ټولو څخه لوړې شامل دي. بیا په هغوی باندې د جرح او تنقید عملي کار کول نه صرف دا چې په حدیثو رد کول دي بلکې تر یوه حده پورې خپله د خپل معیار کیدو دعوه کوي. چې په هغې باندې د صحابه کرامو ﷢ پورې تللو جرأت یې وکړ. ګویا کوم اصول چې هغه ټاکلي.پدې سره یې د تحریك بنسټ کېښود. د مخکنیو او وروستیو عالمانو لپاره د رسول الله ﷺ څخه سېوا خپله د معیار حق کېدو کوشش کوي. (۱)

۶: مخدوم العلماء مولانا خیر محمد جالندهري صاحب ﷫. (د تهانوي ﷫ خلیفه او د خیر المدارس ملتان مهتمم)

د مودودي صاحب او د هغوی د متبعینو ځینې مسئلې د اهل سنت والجماعت خلاف دي، د سلف صالحینو د اتباع منکرین دي، لهذا زه هغه ملحد ګڼم.

۷: مولانا شمس الحق افغاني صاحب (سابق وزیر معارف قلات)

د مودودي صاحب په کتابونو مې نظر وکړ. دده په اړه زما خپله دا رأیه ده: چې هغه د رسول الله ﷺ د راوړې اسلام څخه مطمئن نه دی. ددې له امله هغه غواړي چې هر څه دې زما تابع شي. د هغه لپاره په اصلي اسلام کې ترمیم ضروري دی: خو د هغې پېټول هم ضروري دي. پدې وجه هغوی ددې ترمیم تخریبي عمل په انشاء لیکلو او د اقامت دین په نعرو او د یورپي طرز د تهمتونو په پردو کې د پټولو کوشش کوي. ددې تخریبي عمل دوه محرکه دي. خپل ځان لوی ګڼل او د الله پاك څخه نه ویرېدل. عوامو کې ددې دواړو بیماریو کې د اخته کسانو کمی نشته بلکې ښه زیات دي.

۸: اسوة الصلحاء شیخ الحدیث مولانا نصیر الدین غورغشتوي صاحب (د مولانا حسین علي صاحب ﷫ خلیفه)

مودودي صاحب ضال او مضل یعنې خپله ګمراه او نور خلک هم ګمراه کوي.

۹: استاد العلماء مولانا عبدالحق صاحب (شیخ الحدیث دار العلوم حقانیه، اکوړه خټك، ضلع پېښور)

---

(۱) مودودی دستور اور عقائد کی حقیقت : ۱۸

بسم الله الرحمن الرحیم

د مودودي صاحب عقاید د اهل سنت والجماعت خلاف او ګمراه کوونکي دي، مسلمانان دي ددې فتنې څخه د ځان ساتنې ډېر کوشش کوي

ددې علماء کرامو څخه پرته د څلور پنځوسو (۵۴) مخورو عالمانو نورې تفصیلي فتوې په حق پرست علماء کی مودودی صاحب سے ناراضگی کے اسباب ص ۹۳ تر ۱۳۳ کې کتل کیدی شي.

**د جماعت اسلامي فرقې په اړه د زیات تحقیق لپاره ددې کتابونو مطالعه وکړی**

- مودودي صاحب اور ان کی تحریرات کی متعلق چند اهم مضامین
- فتنه مودودیت .... شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا کاندهلوی رحمة الله علیه
- مودودي دستور اور عقائد کي حقیقت ..... شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مدنی صاحب
- الاستاد المودودی ...... علامه محمد یوسف بنوری رحمة الله علیه
- کشف حقیقت ... مولانا سعید احمد صاحب مظاهر العلوم سهارنپور
- مودودی صاحب کا ایك غلط فتوی ..... مولانا سرفراز خان صفدر صاحب رحمه الله
- تنقید اور حق تنقید .... مولانا محمد یوسف لدهیانوی صاحب رحمة الله علیه
- مودودی مذهب .... مولانا قاضي مظهر حسین صاحب چکوالي
- مودودي صاحب کا نصب العین .... مولانا لال حسین اختر صاحب رحمة الله علیه
- آئینه تحریك مودودیت .... مولانا مفتی مهدی حسن شاه جهانپوری رحمة الله علیه
- مکتوبات بسلسله مودودي جماعت .... مولانا حسین احمد مدني رحمة الله علیه
- مکتوبات شیخ جلد سوم
- جماعت اسلامی سی مجلس مشاورت تك .... مولانا منظور نعمانی صاحب رحمة الله علیه
- حق پرست علماء کی مودودی سی ناراضگی کی اسباب ... مولانا احمد علی صاحب لاهوری رحمة الله علیه
- اظهار حقیقت بجواب خلافت و ملوکیت .... مولانا محمد اسحاق صدیقی
- تقصیرات تفهیم ... مولانا مفتی عبدالرحمن بجنوری صاحب
- سیدنا معاویه رضی الله عنه اور تاریخی حقائق .... مولانا مفتی محمد تقی صاحب

✿ تحريك مودوديت كى ايكسرى رپورت .... مولانا عبدالقدوس رومى

✿ مودوديت بى نقاب .... مولانا عبدالقدوس رومى صاحب

✿ عادلانه دفاع .... مولانا سيد نور الحسن بخارى صاحب

✿ مودودى صاحب كى غلط نظريات .... جناب كريم الدين صاحب

✿ تحريك جماعت اسلامى ايك تحقيقى مطالعه .... داكتر اسرار احمد

✿ اسلامى سياسات يا سياسى اسلام .... حكيم مولانا عبيدالله سرى نگر

✿ تبليغى جماعت، جماعت اسلامي او بريلوي حضرات ... مولانا محمد منظور نعمانى صاحب

✿ مقام صحابه كتاب وسنت كى ررشنى ميں او مولانا مودودي صاحب ... جناب محمّد ابوبكر غازي پوري صاحب

✿ مولانا مودودي كى ساتهـ ميرى رفاقت كى سرگزشت اور اب ميرا موقف.... مولانا محمد منظور نعماني صاحب رحمه الله

✿ صحابه كرام اور ان پر تنقيد .... مولانا محمّد عبدالله صاحب





# [د جماعت المسلمین فرقه]

## د جماعت المسلمین تاریخ

د جماعت المسلمین فرقه د غیر مقلدینو یو شاخ دی. واضحه دي وي چې د غیر مقلدینو نهه ډلې دي. د هغې تفصیل په لاندې ډول دی:

## د غیر مقلدینو د فرقو تفصیل

| شمیر | د جماعت نوم | کله جوړ شوې دي |
|---|---|---|
| ۱ | جماعت غرباء اهل حدیث | ۱۳۱۳ھ |
| ۲ | کانفرنس اهل حدیث | ۱۳۲۸ھ |
| ۳ | امیر شریعت | ۱۳۳۹ھ |
| ۴ | فرقه ثنائیه | ۱۹۳۸ء |
| ۵ | فرقه حنفیه عطائیه | ۱۹۲۹ء |
| ۶ | فرقه شریفیه | ۱۳۴۹ھ |
| ۷ | فرقه غزنویه | ۱۳۵۳ھ |
| ۸ | جمعیت اهل حدیث | ۱۳۷۹ھ |
| ۹ | انتخاب مولانا محی الدین | ۱۳۷۸ھ |

## جماعت المسلمین ډله کله وجود ته راغله:

جماعت المسلمین دا د غرباء جماعت یوه څانګه ده. چې د هغې بنسټ په ۱۳۸۵ھ کې د مسعود احمد په نوم یو سړي کېښود

## د جماعت المسلمین فرقې بنسټګر مسعود احمد حالات

**نوم یې:** سید مسعود احمد دی.

**پیدایش** : په ۱۹۱۵ء هندوستان کې پیدا شوی. مور او پلار یې د بریلوي مسلك سره

اړیکه ډرلوده. لومړنی زده کړې یې په خپل کلي کې کړي. وروستنی زده کړي یې د اګره پوهنتون کې د بي، ایس، سي کې امتحان ورکړ
پاکستان ته د راتلو نه وروسته یې په سیکرټریټ کې وظیفه پیل کړه. بیا یې هغه پرېښوده. د قرآن او حدیث مطالعه یې شروع کړه. بیا یې د غیر مقلدینو اهل حدیثو، طرفته میلان پیدا شو. تر ځلوېښتو کلونو پورې یې د غیر مقلدینو تبلیغ پیل کړ
په مزه مزه د هغوی څخه هم بدګمانه شو. د هغوی وینا وه چې اهل حدیث (غیر مقلد) په خپل مسلك باندې کلك وي. د خپلو عالمانو په فتوو باندې عمل کوي او د سنتو هیڅ اهمیت ورسره نه وي (۱)
ددېنه وروسته په ۱۳۸۵هـ کې هغوی خپله د یوې ډلې بنسټ کېښود. چې نوم یې ورته د جماعت المسلمین کېښود. بیا یې خپل ژوند هم د هغې لپاره وقف کړ. د سید مسعود احمد خواهش وو. چې ډاکټر اسرار یو د رازونو څخه ډك او محقق مقرر دی. هغوی سره یو ځای کار وکړي. شروع کې یې څه تعلق زیات شو: خو ډاکټر د هغوی د عقایدو په بنسټ دا وویل: چې دا سړی د نبوت دعوه کونکی دی او بیا په هغوی کې جدایي راغله.

## د مسعود احمد لیکنې او کتابونه

د هغوی وړې او لویې لیکنې چې رایو ځای شي، چې تقریبا ټولې یو سل او دیرش (۱۳۰) لیکنې جوړېږي
**وفات**: د جمعې په ورځ ۶ د شوال ۱۴۱۷هـ. مطابق ۱۴ فروري ۱۹۹۷ء وفات شو. (۲)
ددېنه وروسته د جماعت المسلمین امیر شیخ محمد اشتیاق صاحب وټاکل شو. څو اهمې لیکنې یې دا دي:

## د مسعود احمد کتابونه په یو نظر کې

۱: تفسیر قرآن عزیز ۲: صحیح تاریخ الاسلام والمسلمین

---

۱) المسلم نمبر ۱ عیدالاضحی ۱٤۱۷ هـ ص ۶۸
۲) المسلم ج ۱ ص ۶۲، ۶۳، ۶۵

۳: صلاة المسلمین ٤: منهاج المسلمین

۵: توحید المسلمین ٦: تفهیم اسلام

۷ تلاش حق ۸: ذهن پرستي وغیره

# د جماعت المسلمین نظریې او عقیدې

**لومړی عقیده** : تقلید که مطلقا وي او که شخصي وي. دواړه ناجائز او حرام دي [1]

**دویمه عقیده** : د اسلام په څلورو دلائلو کې قیاس او اجتهاد نه مني. پدې اړه هغوی لیکي: چې د خلکو په رایه او اجتهاد سره هدایت نشي موندل کیدی. [2]

**دریمه عقیده** همدغه شان د اجماع څخه هم انکار کوي. صرف هغه اجماع معتبره ده. کومه چې د نبي د زمانې وي. [3]

**څلورمه عقیده** : د هغوی په نزد حنفي، شافعي، مالکي، حنبلي ټولې ګمراه ډلې دي. څکه چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې دا نه وې. [4]

**پنځمه عقیده** : په لمانځه کې پنځه ځایونو کې رفع الیدین فرض دي. ددېنه بغیر لمونځ نه صحیح کیږي. [5]

**شپږمه عقیده** : مونږ خپل ځان ته مسلمین وایو، ددېنه علاوه نور نومونه (حنفي، شافعي) کېښودل ناجائز دي.

**اوومه عقیده**: ټوله ډله د (جماعت المسلمین) سره یو ځای کول لازم دي. ﴿الزم جماعة المسلمین﴾ د صحیح مسلم [6] څخه استدلال کوي چې جماعت المسلمین لازم ونیسی. ﴿فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ [7] او مه مری مګر د مسلمان کیدو په حالت کې.

---

[1]) منهاج المسلمین ص ٣٤، خلاصه تلاش حق : ٤١، ٤٣

[2]) منهاج المسلمین ص : ٢٩

[3]) خلاصه تلاش حق ص١١٨

[4]) دعوت حق

[5]) صلاة المسلمین ضمیمه رفع الیدین خلاصه تلاش حق : ٧٩

[6]) مسلم برقم : ١٨٤٧

[7]) سورة البقرة آیت : ١٣٢

**اتمه عقیده** : د اخترونو په لمانځه کې د دولسو تکبیرونو قائل دي، د غیر مقلدینو په تکبیرونه یې دولس دي.

**نهمه عقیده** : خپل ځانته د مسلمان ویلو پر ځای مسلم ویل پکار دي، ځکه چې قرآن کریم کې د مسلم لفظ ذکر دی، مسلمان نه دی ذکر.

**لسمه عقیده** : د فقه ضرورت نشته، قرآن او حدیث کافي دی، د فقهې خبره منل حرامه ده. [1]

**یوولسمه عقیده** : د امیر په لاس بیعت کول فرض کیږي.

**دولسمه عقیده** : د لفظ خدا اطلاق په الله پاك باندې ناجائز دی.

**دیارلسمه عقیده** : ایصال ثواب جائز نه دی.



## [د جماعت المسلمین نظریې او عقیدې، د قران او حدیث څخه یې جوابونه]

## لومړی عقیده: د تقلید څخه انکار

تقلید چې مطلقا وي او که تقلید شخصي وي جائز نه دی، پدې اره هغه لیکي: چې په فقه کې د ځانه جوړې شوې مسئلې د الله پاك له لوري نه دي، لهذا د هغې زده کړه شرك او دا ټول د تقلید نتیجه ده، لهذا تقلید د شرك لپاره بنیاد دی. [2]

یو ځای لیکي چې:

په تقلید سره خواهش پرستي خپریږي.

همدغه شان لیکي:

تقلید گمراهي خپروي. [3]

**جواب** : د اهل سنت والجماعت علماء فرمايي: په کومه مسئله کې چې د قرآن، حدیث او اجماع څه تصریح نه وي؛ نو د یو امام تقلید ضروري دی.

---

[1] خلاصه تلاش حق : ۳۱

[2] التحقیق فی جواب التقلید ص : ۱۱۲

[3] التحقیق في جواب التقلید : ۵۷

**د تقليد معنى** : په نامي شرح حسامي کې صرف د تقليد معنى دا ليکل شوې ده:

﴿ التقليد اتباع الغير على ظن انه حق بلا نظر الى دليل ﴾ (١)

د بل چا اتباع کولو ته تقليد وايي په دې گمان چې دى په حقه دى بغير د دليل د غوښتنې نه.

علامه ابن ملك او علامه ابن العينى رحمهما الله د تقليد تعريف داسې کوي:

﴿ وهو عبارة عن اتباعه في قوله او فعله للحقية من غير تأمل في الدليل ﴾ (٢)

يعنې تقليد په ښه عقيدت سره د چا د قول يا فعل اتباع کولو ته وايي. بغير د دليل د فکر کولو نه.

## د قرآن څخه د تقليد ثبوت

١: ﴿ يَآأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَطِيْعُوا اللهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ﴾ (٣)

**ترجمه** :اې مؤمنانو! د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ تابعداري کوى او د اولو الامر (يعنې علماء) کوم چې ستاسو څخه دي.

٢: ﴿ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰى اُولِي الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ﴾ (٤)

**ترجمه** : دې خلکو که دا حکم رسول الله ﷺ او اولوا الامر ته حواله کړى وى: نو معلومه به وى هغه خلکو ته چې د دوى څخه دې استنباط کوي.

٣: ﴿ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾ (٥)

**ترجمه** : ستا نه مخکې هم مونږ نه دي لېږلي مګر سړي. چې هغوى ته مو وحى کوله، د عالمانو څخه پوښتنه وکړى که تاسو خپله نه پوهېږى.

---

[1] نامي صفحه : ١٩٠
[2] شرح منار خلاصه ابن العين : ٢٥٢
[3] سورة النساء آيت : ٥٩
[4] سورة النساء آيت : ٨٣
[5] سورة النحل : ٤٣

## د احاديثو څخه د تقليد ثبوت

په ډيرو احاديثو کې د تقليد ثبوت شته. په هغې کې يو مشهور روايت دا دی:

﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنِّي لَا أَدْرِي مَا بَقَائِيْ فِيكُمْ، فَاقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي، وَأَشَارَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ ﴾ [1]

**ترجمه**: د سيدنا حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته معلومه نده چې زه به په تاسو کې څومره پاتې يم. تاسو د دې دواړو اقتداء کوئ: ابوبکر او عمر رضي الله عنهما ته يې اشاره وکړه.

## د تقليد ضرورت او اهميت

د ډيرو مسئلو حل په قرآن او حديثو کې شتون لري . ډيرې مسئلې داسې دي. چې په قران او حديث کې بيا په صراحت سره شتون نه لري؛ نو داسې مسئلې چې صراحتاً په قران او حديثو کې وي او په ظاهري ډول هغو کې تعارض نه وي: نو په داسې مسئلو عمل کول واجب دي.

خو هغه مسئلې چې په قرآن او حديث کې نه وي، يا داسې مسئلې چې په هغو کې تعارض وي؛ نو اوس به په هغې کې غير مجتهد ته د مجتهد د تقليد ضرورت خامخا وي.

د رسول الله ﷺ په موجوديت کې خو به صحابه کرامو رضي الله عنهم د مسئلو پوښتنه د رسول الله څخه کوله. وروسته له دې چې د صحابه کرامو او تابعينو دور راورسيد: نو دوی به اجتهاد ته رجوع کوله.

لکه شاه ولی الله رحمه الله چې فرمايي:

﴿ كان الناس فى زمن الصحابة الى ان ظهرت المذاهب الاربعة يقلدون من اتفق من العلماء من غير نكير من احد يعتبر انكاره ولو كان ذلك باطلا لانكروه ﴾ [2]

[1] الترمذی: ۳٦٦۲، وابن ماجة: ۹۷، ومسند احمد: ۵/۳۸۲ و ۴۰۲، وابن حبان: ٦۹۰۲[؟؟

[2] عقد الجيد: ۴۳

**ترجمه** : خلکو د صحابه کرامو ﷺ د دور څخه تر دې چې څلورو مذهبونو رواج ومونډ، خلکو به د عالمانو تقلید کولو بغیر د داسې کوم نکیر نه چې د هغه نکیر د اعتبار وړ وي، که تقلید کول باطل وی؛ نو خامخا به هغوی ورباندې رد کړی وو.

علماء کرام فرمايي چې: د تقلید دوه قسمونه دي. ۱: تقلید مطلق. ۲: تقلید شخصي، یو لوري ته تقلید کول ضروري دي او بل لوري ته په ائمه اربعه وو کې د یو کس تقلید کول ضروري دي.

د مذاهب اربعه وو (امام ابوحنیفه، امام مالك، امام شافعي، امام احمد ﷺ) څخه پرته ټول مذهبونه ختم شوي، اوس هم ددې څلورو امامانو اتباع (تقلید) د سواد اعظم اتباع ده، ددې څلورو څخه بهر وتل د سواد اعظم څخه بهر وتل دي. (۱)

پدې څلورو واړو امامانو کې د یو د تقلید په اهمیت باندې ابن خلدون ډیره اهمه خبره کړې:

په کلیو او ښارونو کې هم ددې ائمه اربعه وو تقلید منحصر دی. د دوی څخه پرته چې کوم ائمه وو، د هغوی مقلدین ورک شو، هغوی د اختلافاتو دروازې او لارې بندې کړې، چونکې علمي اصطلاحات مختلف شوي او خلک د اجتهاد مرتبې ته د رسیدلو څخه پاتې دي او ددې امر ویره پیدا شوه، چې د اجتهاد څخه پرته چیرته چې په هغوی کې داسې خلک رانشي، چې نه خو ددې اهل وي او نه د هغوی دین او د هغوی رایه قابل وثوق وي، لهذا د زمانې په عالمانو کې چې کوم محتاج وو، هغوی د اجتهاد څخه خپل عجز ښکاره کړ. د هغې د ګرانیدو تصریح یې وکړه، د همدې مجتهدینو امامانو تقلید یې وکړ. چې خلک د هغوی مقلدین کیدل، هدایت او رهنمايي یې حاصلوله. دغه شان تقلید کولو کې چې کله د یو امام او کله د بل امام طرفته په رجوع کولو کې دین د لوبو شی جوړ شي، پدې وجه یې د داسې تقلید کولو څخه خلک منع کړل. صرف د یو امام په تقلید کولو یې زور ورکولو. صرف د مذاهبو نقل پاتې شوی، هر چا په اصولو او اتصال سند بالروایة کې د خپل خپل امام مجتهد

---

۱) عقد الجید: ٥٦، طبعة قرآن محل بكراتشي

تقليد شروع کړ، د فقه څخه د حکم نه ماسېوا بل مطلب نشته. زمونږ په زمانه کې د اجتهاد دعوه کوونکي مردود او د هغوی تقلید متروك او مهجور دي او مسلمانان د همدې ائمه اربعه وو په تقلید باندې مستقیم شوي دي. [۱]

## دویمه عقیده: د اجماع څخه انکار

د اجماع څخه انکار کول، چې صرف هغه اجماع معتبره ده کومه چې د نبي کریم ﷺ د زمانې اجماع ده.

**جواب** : اهل سنت والجماعت اجماع او قیاس لره شرعي دلیل ګڼي. څنګه چې په قرآن او حدیث باندې عمل ضروري دی. همدغه شان په کومو خبرو چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اتفاق راغلی. په هغو هم عمل کول ضروري دي. اهل سنت د اجماع ثبوت د قرآن کریم د آیت او حدیث څخه وړاندې کوي. مثلاً:

## د قرآن کریم څخه د اجماع ثبوت

۱: ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ﴾ [۲]

**ترجمه** : اې مؤمنانو! د الله پاك، د هغه د رسول ﷺ او د اولو الامر تابعداري کوی.

۲: ﴿ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴾ [۳]

**ترجمه** : او څوك چې د رسول الله ﷺ مخالفت د هدایت واضحه کیدو نه وروسته کوي، د مؤمنانو د لارې نه پرته په بله لاره روان شي؛ نو مونږ به هغه هم هغه طرفته واړوو. کوم طرفته چې اړول شوی وي او جهنم ته به یې داخل کړو او هغه ډیر بد ځای دی د واپس ورتلو.

مؤمنان هم معیار جوړ شوي، چې د مؤمنانو په کومه خبره اجماع وشي، هغه هم معیار دي.

---

[۱] ابن خلدون : ۱/۳۵۵

[۲] سورة النساء آیت : ۵۹،

[۳] سورة النساء آیت : ۱۱۵

## د احاديثو څخه د اجماع ثبوت

اهل سنت و الجماعت ډېر احاديث د اجماع د ثبوت لپاره وړاندې کوي. د هغې څخه مونږ هم ددې کتاب په عنوان: د اجماع امت څخه انکار کول. کې نقل کړي دي.

## دريمه عقيده: د قياس او اجتهاد څخه انکار کول

د هغوی دا وينا ده چې:

قياس که د ادله اربعه وو څخه خارج شي: نو کيدی شي چې حق ته نژدې شي [1]

بل ځای کې ليکي چې:

په اسلام کې د اجتهاد او قياس قطعا هيڅ اجازه نشته. [2]

**جواب** : اهل سنت والجماعت قياس او اجتهاد هم د قران او حديث په شان حجت مني. پدې باندې عمل کول ضروري دي. ځکه چې ټولې مسئلې په قرآن او حديث کې موجودې نه دي. وروسته پيدا کيدونکې مسئلې چې هغه مجتهدينو حل کړي وي چې په هغوی کې د اجتهاد شرطونه وي. (لکه امام ابوحنيفه. امام شافعي. امام مالك او امام احمد وغيره) هغوی به د قرآن او حديث مسئلې د قياس په واسطه راوباسي.

مثلا : په شرابو کې نشه ده. پدې وجه دېته حرام ويل کيږي: نو په افيون او هيروين کې هم نشه ده. پدې وجه دېته هم حرام ويل کيږي.

## د قياس ثبوت د احاديثو څخه

اهل سنت والجماعت د قياس د شرعي حجت کيدو لپاره د ډېرو احاديثو څخه استدلال کوي!

۱: کله چې رسول الله ﷺ سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه يمن طرفته وليږلو : نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: څنګه به فيصله کوې؟ معاذ رضي الله عنه جواب ورکړ. په قرآن سره.

---

[1] مذاهب خمسه اور دين اسلام : ۱۵/۱٦

[2] جماعة المسلمين دسمبر ۲۰۰۱، ص ۲٤، توحيد المسلمين : ۲۷٤، ۲۷۸، تلاش حق : ۳۱

رسول اللهﷺ وفرمایل: که هغه مسئله په قرآن کې نه وي؛ نو هغوی عرض وکړ. د رسول اللهﷺ د احادیثو څخه. رسول اللهﷺ وفرمایل: که هغه مسئله په حدیث کې هم نه وي؛ نو هغوی عرض وکړ چې زه به خپله رایه (عقل) فیصله کوم. ددې خبرې په اوریدو سره رسول اللهﷺ د سیدنا معاذؓ په سینه باندې لاس راښکلو او وې فرمایل: تعریفونه دي د هغه ذات لپاره چا چې زما قاصد ته د صحیح خبرې توفیق ورکړ. (۱)

د بخاري په روایت کې دي:

۲: رسول اللهﷺ یو ځل یو لښکر ولیږلو او وې وفرمایل: چې بنو قریظه ته رسیدلو سره د مازدیګر لمونځ وکړئ؛ نو ځینو د مازدیګر لمونځ په لاره کې وکړ او ځینو وویل: چې مونږ خو به بنو قریظه ته رسیدلو سره لمونځ کوو. کله چې رسول اللهﷺ ته ددې ذکر وشو؛ نو رسول اللهﷺ یو هم ملامته نه کړ. (۲)

۳: د مسلم په روایت کې دي: رسول اللهﷺ سیدنا عليؓ ته حکم وکړ چې: کومې وینځې زنا کړې ده هغې ته کوړې ورکړه؛ خو عليؓ چې هغه ولیده: نو د هغې بچی شوی وو؛ نو د عليؓ وویرید چې چیرته دا د کوړې ورکولو له امله مړه نشي او واپس راغلو. کله چې یې رسول اللهﷺ ته ددې ذکر وکړ؛ نو هغوی ورته وفرمایل: ﴿احسنت﴾ ښه دې وکړه. (۳)

همدغه شان د ډیرو احادیثو څخه د قیاس ثبوت ملاویږي.

## د ائمه اربعه وو د اختلاف نه انکار

حنفي، شافعي، مالکي او حنبلي دا ټولي ډلي دي، د ډلو جوړولو څخه اسلام منع کړې ده، کله وايي چې د ائمه مجتهدین اختلاف صحیح دی. لیکي چې: اجتهادي اختلاف خو په اعمالو کې کیدی شي او دا برداشت کیدی شي

(۱) ابوداؤد: ۳۵۹۲، والترمذی: ۱۳۲۷، واحمد: ۵/۲۳۰، والبیهقی: ۱۰/۱۱۴
(۲) صحیح بخاری صلاة الخوف: ۱/۱۲۹
(۳) مسلم کتاب الحدود ج۲ ص۷۱

په ائمه کرامو کې اجتهادي اختلاف شتون درلود. دا صرف په اعمالو کې وو، بل لورې نه د ائمه کرامو ﷺ اختلاف څخه په ګمراهی سره هم تعبیر کوي. [۱]

**جواب** : علماء کرام فرمایي. هغه اختلاف بد دی، چې د دین په اصولو کې وي او کوم اختلاف چې د دین په فروعو کې وي، هغه مذموم نه دی. د ائمه کرامو اختلاف د دین په فروعو کې دی، همدغه شان څوك چې د صفا حکم نه وروسته اختلاف کوي هغه بد دي. لکه چې معلومه خبره ده. قبله مغرب لوري ته ده: نو اوس څوك په ضد کې راشي او ووایي چې: قبله د مشرق لوري ته موږ لمونځ کوو. معلومه خبره ده چې د هغه لمونځ به نه کیږي او که په ځنګل کې څلور کسان وي تولو تحري او غور کولو نه وروسته بیلو بیلو طرفونو ته لمونځ وکړ. پدیکې خو نه د هغوی ضد وو او نه عناد؛ نو اوس به د تولو لمونځ وشي. همدغه شان د ائمه کرامو مثال دی. نه د هغوی اختلاف په اصولي عقایدو کې دی بلکې په خپل منځ کې یې اختلاف د ضد او عناد په بنیاد دی.

## پنځمه عقیده: د رفع الیدین نه بغیر لمونځ نه کیږي

**جواب** : د جمهورو علماؤ او اجماع امت وینا ده: چې رفع الیدین کول په لمانځه کې سنت او مستحب دي. په رفع الیدین نه کولو سره لمونځ کیږي. (تر ننه پورې د ائمه کرامو پدیکې صرف د ترجیح اختلاف دی).

مثلاً امام ابوحنیفه رحمه الله ترك رفع الیدین ته ترجیح ورکوي. که څوك رفع الیدین کوي: نو لمونځ کیږي. د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نزد رفع الیدین ته ترجیح حاصله ده، د هغوی په نزد که څوك رفع الیدین پرېږدي؛ نو لمونځ یې کیږي.

## د رفع الیدین په مستحب کیدو کې مختلف قولونه:

د امام شافعي رحمه الله د مذهب مشهور عالم علامه نووي رحمه الله د مسلم په شرح کې لیکي: په لمانځه کې رفع الیدین کول مستحب دي. [۲]

[۱] خلاصه تلاش حق ص: ٦٦
[۲] شرح النووی لمسلم: ١/١٦٨

علامه خطابي شافعي د ابوداؤد په شرح کې ليکي:

والحديث يدل على استحباب الرفع في هذه الاربعة.

**ترجمه:** حديث دلالت کوي چې رفع اليدين په څلورو وارو ځايونو کې مستحب دي. [1]

امام ابن تيميه حنبلي رحمه الله فرمايي:

﴿ فان النبي صلى الله عليه وسلم قال انما جعل الامام ليؤتم به [2] وسواء رفع يديه او لم يرفع يديه لا يقدح ذلك في صلاتهم ولا يبطلها ﴾ [3]

**ترجمه** : رسول الله ﷺ فرمايي: امام ددې لپاره ټاکل شوی. چې د هغه اقتداء وکړی شي، که رفع اليدين کوي او که يې نه کوي. په رفع اليدين کولو يا نه کولو سره دې د چا بدې ونه ويل شي. ځکه چې پدې سره لمونځ نه باطليږي.

همدغه شان علامه ابن القيم (حنبلي) رحمه الله فرمايي:

﴿ وهذا من اختلاف المباح الذي لا يعنف فيه من فعله ولا من تركه وهذا كرفع اليدين في الصلاة وتركه ﴾ [4]

**ترجمه** : دا د هغه مباح اختلاف نه دی، چې د هغې په کولو او پرېښودلو ملامتيا نشته، دا په لمانځه کې د رفع اليدين کولو او پرېښودلو په څېر دي.

**يادونه** : زياتې لا دا چې علامه ابن تيميه او علامه ابن القيم رحمهما الله دا د امام احمد رحمه الله د مذهب پيروکار دي. د جماعت المسلمين پروفيسر مسعود احمد هغوی دواړو ته غير مقلد وايي. [5]

---

[1] عون المعبود ج١ ص٤٤٣

[2] اخرجه مسلمٌ: ٤٠٤.

[3] مجموعة الفتاوى : ٢٢/١٥٣

[4] زاد المعاد : ١/١٤٤

[5] خلاصه تلاش حق ص: ١٤٧ (و قول مسعود احمد صحيح لان الامام ابن القيم اقر بذلك في الاعلام ٢/٢٤٢، ٢٤٣: ولقد أنكر بعض المقلدين على شيخ الإسلام في تدريسه بمدرسة ابن الحنبلي وهي وقف على الحنابلة والمجتهد ليس منهم فقال إنما أتناول ما أتناوله منها على معرفتي بمذهب أحمد لا على تقليدي له)

نو اوس چې د هغوی د ګمان مطابق ابن تيميه او ابن قيم رحمهما الله غير مقلدين دي:
نو هغوی هم د فرضيت څخه انکار کوي: نو اوس هغوی ته خپله غور کول پکار دي.
د امام ابوحنيفه او امام مالك رحمهما الله په مذهب کې صرف د تکبير تحريمه په وخت
رفع اليدين دی، د باقي ارکانو په وخت نشته. (١)

د احنافو په نزد د رفع اليدين پرېښودل مستحب دي.

## د احنافو دلايل

١: ﴿ عَنْ جَابِرِبْنِ سَمُرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ ـ صلى الله عليه وسلم ـ فَقَالَ: مَالِيْ أَرَاكُمْ رَافِعِيْ أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ اُسْكُنُوْا فِي الصَّلاَةِ ﴾ (٢).

**ترجمه**: د سيدنا جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم بهر راووتی، او مونږ په لمانځه کې هغه وخت رفع اليدين کول، رسول الله صلى الله عليه وسلم (د ناراضتيا اظهار وکړ) او وې فرمايل چې: څه وجه ده چې زه تاسو په رفع اليدين کولو باندې وينم. ګويا د مستو اسونو لکۍ دي، په لمانځه کې ساکن اوسئ.

٢: ﴿ حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قال حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِاللهِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ـ صلى الله عليه وسلم ـ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلاَةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَّرْكَعَ، وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَلاَ يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ ﴾ (٣).

**ترجمه**: مونږ ته حميدي حديث بيان کړی. هغه فرمايي: چې ما ته سفيان حديث بيان کړ، هغوی ته زهري. فرمايي: ماته سالم بن عبدالله خبر راکړ او هغه د خپل پلار عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه نقل کوي، چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدو: کله چې به يې لمونځ شروع کړ: نو د اوږو پورې به يې رفع اليدين کول. کله چې به يې رکوع کوله. وروسته يې چې کله د رکوع نه سر راپورته کړ او سجدې به د تلو او راتلو پر مهال لاسونه نه پورته کول.

---

١) پدې باندې د علماء کرامو مستقل کتابونه دي. عمدة القاری: ٥/٢٧١، وبذل المجهود جلد ٢.
٢) مسلم: ١/١٨١، وابوداؤد: ١/١٤٣، نسائی: ١/١٧٦، واحمد: ٥/٨٦، ٨٨، ٩٣، ١٠١، ١٠٢، ١٠٧
٣) مسند حميدي ٢/٢٧٧، حديث نمبر ٦١٤

۳: ﴿ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ مَسْعُودٍ أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- فَصَلَّى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ ﴾[1]

**ترجمه** : حضرت علقمه رحمه الله فرمايي چې: سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وفرمايل: آيا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ لمونځ وکړم؟ هغوی لمونځ شروع کړ او رفع اليدين يې ونکړه مګر په لومړي ځل.

۴: ﴿ عن مُحَمَّدِ بْنِ جَابِرٍ عَنْ حَمَّادِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : صَلَّيْتُ خَلْفَ النَّبِيِّ - صَلَّى الله عليهِ وسلَّم- وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ فَلَمْ يَرْفَعُوا أَيْدِيَهُمْ إِلَّا عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ ﴾[2]

**ترجمه** : محمد بن جابر. د حماد بن ابي سليمان. هغه د ابراهيم. هغه د علقمه. او هغه د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کوي: ما د رسول الله ﷺ. ابوبکر او عمر رضي الله عنهما سره لمونځ کړی. هغوی به د تکبير تحريمه نه علاوه رفع اليدين نه کول.

۵: ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ، قَالَ : تُرْفَعُ الأَيْدِي الا فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ : إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ ، وَإِذَا رَأَى الْبَيْتَ ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ، وَفِي عَرَفَاتٍ ، وَفِي جَمْعٍ ، وَعِنْدَ الْجِمَارِ ﴾[3]

**ترجمه** : سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي: رفع اليدين صرف په اووه ځايونو کې کولی شي. ۱: کله چې لمانځه ته ودريږي، ۲: بيت الله ته د کتلو پرمهال، ۳. دصفا په غونډی، ۴: د مروه په غونډی، ۵: په عرفات کې. ۶: په مزدلفه کې، ۷: د رمی جمار پر مهال.

۶: ﴿ عَنِ الْبَرَاءِ بِنِ عازبٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَى قَرِيبٍ مِنْ أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَا يَعُودُ وفي روايةٍ : ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا حَتَّى انْصَرَفَ وفي رواية : ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا حَتَّى يَفْرُغَ ﴾[4]

**ترجمه** : د سيدنا براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دی: رسول الله ﷺ به چې کله لمونځ شروع کړ؛ نو غوږونو ته به يې نزدې لاسونه پورته کول، د هغې نه وروسته به

---

[1] ترمذی، ۱/۳۵، وابوداؤد : ۱/۱۰۹، النسائی : ۱/۱۶۱، ابن حزم فی المحلی : ٤/۸۸

[2] الدار قطني: ۱/۲۹۵، والبيهقي: ۲/ ۱۱۳، و کامل ابن عدی: ٦/۱٥۲.

[3] مصنف ابن ابی شيبة : ۲۳۷

[4] ابوداؤد : ۱/۱۰۹، طحاوی : ۱/۱۱۰، مصنف عبدالرزاق : ۲/۷۰، مصنف ابن ابی شيبة : ۱/۲۳٦،

يې بيا نه پورته كول. په يو روايت كې دي چې د لمانځه نه فارغيدو پورې به يې رفع اليدين نه كول.

۷. ﴿ عَنِ الأَسْوَدِ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ عُمَرَ فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِّنْ صَلاَتِهِ إِلاَّ حِيْنَ افْتَتَحَ الصَّلاَةَ، قَالَ عَبْدُ المَلِكِ: وَ رَأَيْتُ الشَّعْبِيَّ، وَإِبْرَاهِيمَ، وَأَبَا إِسْحَاقَ، لاَ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلاَّ حِيْنَ يَفْتَتِحُونَ الصَّلاَةَ ﴾[۱]

**ترجمه**: اسود فرمايي چې: ما د عمر رضي الله عنه سره لمونځونه كړي، هغوى به د لمانځه د شروع نه علاوه چيرته هم رفع اليدين نه كول.

عبدالملك (د حديث راوي) فرمايي ما شعبي، ابراهيم نخعي او ابو اسحاق ليدلي دى، هغوى به د لمانځه د شروع نه پرته رفع اليدين نه كول.

۸. ﴿ عن عاصم بن كليب عن أبيه – وكان من أصحاب على –: أن على بن أبي طالب – كرم الله وجهه – كان يرفع يديه فى التكبيرة الأولى التى يفتتح بها الصلاة ثم لا يرفعهما فى شىء من صلاة ﴾[۲]

**ترجمه**: عاصم بن كليب رحمه الله د خپل پلار څخه نقل كوي چې د سيدنا علي رضي الله عنه د ملګرو څخه وو، وايي: چې سيدنا على رضي الله عنه به صرف په لومړي تكبير كې رفع اليدين كول. د هغې نه وروسته به يې د لمانځه په هيڅ كومځ برخه كې هم رفع اليدين نه كول.

۹. ﴿ عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ: أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَا يَفْتَتِحُ، ثُمَّ لاَ يَرْفَعُهُمَا ﴾[۳]

**ترجمه**: امام ابراهيم النخعي رحمه الله فرمايي: چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به د لمونځ په پيل كې رفع اليدين كول بيا به يې نه كول.

۱۰. ﴿ عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلاَّ فِي أَوَّلِ مَا يَفْتَتِحُ ﴾[٤]

**ترجمه**: امام مجاهد رحمه الله فرمايي: چې ما عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د لمانځه د پيل نه پرته په رفع اليدين كولو نه دى ليدلى.

---

[۱] مصنف ابن ابى شيبة ۱/۲۳۷، طحاوى : ۱/۱۱۱، كذا فى نصب الراية : ٤۰٥
[۲] موطاء امام محمد : ۹٤، طحاوى : ۱/۱۱۰، مصنف ابن ابى شيبة : ۱/۲۳٦
[۳] طحاوى ۱/۱۳۳، مصنف ابن ابى شيبة : ۱/۲۳٦
[٤] طحاوى : ۱/۱۱۰، مصنف ابن ابى شيبة ۱/۲۳۷،

دا خو صرف لس احادیث او اثار دي؛ خو پدې مسئله کې نور هم ډیر حدیثونه او آثار شتون لري. بل لوري ته د رفع الیدین احادیث هم ښه ډیر دي. په همدې بناء په څلورو امامانو کې امام ابوحنیفه او امام مالک ﷫ د رفع الیدین نه کولو ته ترجیح ورکوي. امام شافعي او امام احمد ﷫ رفع الیدین والا حدیثونو ته ترجیح ورکوي.

که څوک د هغوی د مذهب خلاف کوي؛ نو هغوی وایي: چې په لمانځه کې به هیڅ نقصان نه راځي. صرف د استحباب د پرېښودو خبره ده، د څوارلس سوه کالو څخه واخله تر ننه پورې چا هم نه دي ویلي: چې دا رفع الیدین فرض دي او ددېنه بغیر لمونځ نه صحیح کیږي.

## شپږمه عقیده: د خپل ځان لپاره د مسلمین لفظ کارول

خپل ځان ته مسلمین وایي. ددېنه علاوه حنفي، شافعي وغیره نومونو ته ناجائز وایي، ددې لپاره د قرآن کریم آیت ﴿ سماكم المسلمين ﴾[1] الله پاك ستاسو نوم مسلمین ایښی. وغیره داسې آیتونو څخه خپل غلط استدلالونه کوي.

**لومړی جواب** : علماء کرام فرمايي: چې دلته د مسلمین لفظ ضد کفر دی، کله چې انسان په الله پاك او رسول ﷺ باندې ایمان راوړي: نو اوس هغه مسلم شو. کافر نه دی. ددېنه وروسته چې هغه څه نوم ږدي هغه صحیح دی، مثلا د قرآن کریم خدمت کونکو ته مفسرین او د حدیثونو خدمت کونکو ته مُحَدِّثِیْن، د نحو خدمت کونکو ته نحویین وغیره ویل کیږي. آیا دا ټول مسلمانان نه دي؟

**دويم جواب** : صحابه کرامو ﷡ هم خپل ځانونه د قبائلو طرف ته منسوب کوی حال دا چه هغوی ټول مسلمین وو. مثلا قریشی، تمیمی، حارثی، غفاری وغیره.

**دريم جواب** : په قرآن کریم کې چې چیرته ﴿ سماكم المسلمين ﴾ دی، همدغه شان الفاظ د ﴿عبادالرحمن﴾ هم پکې دي.

---

[1] سورة الحج آیت : ۷۸

دغه شان په حديث کې د سوداګرو نوم راځي. چې رسول الله ﷺ په سوداګرو باندې تير شو او وې فرمايل:

﴿ فَسَمَّانَا بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ ﴾ (١)

**ترجمه** . رسول الله ﷺ زمونږ ښه نوم کېښود او معشر تجار يې ورته وويل.

دغه شان د انصارو په اړه غيلان بن جرير د سيدنا انس ﷜ څخه پوښتنه وکړه:

﴿ أَرَأَيْتُمْ اسْمَ الْأَنْصَارِ كُنْتُمْ تُسَمَّوْنَ بِهِ أَمْ سَمَّاكُمُ اللَّهُ ﴾ (٢)

**ترجمه** : ستاسو نوم انصار څنګه شو. دا نوم تاسو خپله اېښې که الله درته اېښې؟ پدې باندې سيدنا انس ﷜ وفرمايل: ﴿ بَلْ سَمَّانَا اللَّهُ ﴾ الله پاك زمونږ دا نوم اېښې. د صحابه کرامو نوم انصار په آيت کريمه : ﴿ ﴿ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ ﴾ مخکې کېدونکي د مهاجرينو او انصارو څخه. پدې الفاظو سره ثابت دي (٣).

**خلاصه دا** : چې د توحيد او رسالت منونکي هر يو ته به مسلمين ويل کېږي. څوك چې د توحيد او رسالت انکار کوي. هغه به غير مسلم وي. باقي نومې. قبيله. ښار د تعارف لپاره په بيلو بيلو نومونو اېښودو کې هيڅ خبره نشته.

## اوومه عقيده: د جماعت المسلمين سره يو ځاى شى

﴿ تلزم جماعة المسلمين ﴾ د جماعت المسلمين سره يو ځاى شى. ﴿ فاعتزل تلك الفرق كلها ﴾ د ټولو فرقو څخه جدا شه. (٤)

**لومړى جواب**: ددې حديث مطلب حافظ ابن حجر ﷫ وغيره دا ښودلى ﴿ فعرف لن المراد بالوصف المذكور اهل السنة والجماعة وهم اهل الشريعة من سواهم ﴾ د اهل علمو د

(١) ابوداؤد رواية قيس بن ابى غرزهص١١٦

(٢) بخارى بروايت انس ج١ ص٥٣٣

(٣) سورة التوبة آيت : ١٠٠

(٤) البخارى : ٣٦٠٦، ٧٠٨٤، ومسلم : ١٨٤٧

جماعت سره یو ځای کېدل ضروري دي او هغه اهل سنت والجماعت دي. هم هغوی د شرعي علومو پیژندونکي دي. (۱)

په مصنف ابن ابی شیبه کې دي: چې دا د هغه وخت خبره ده. کله چې، څوك خلیفه نه وي؛ نو تاسو وتښتئ او تر مرګه پورې د ونو په بیخونو پورې پیوست شئ. که خلیفه وي؛ نو هغه سره اوسیږه! اګر که هغه ستا ملا کمزوري کړي. (۲)

**دویم جواب** : دا اوږد حدیث دی. د پوره حدیث ترجمه بله ده. چې په هغې سره مطلب خپله واضحه کیږي، دا حدیث د سیدنا حذیفه بن الیمان ﷺ څخه روایت دی. چې په هغې کې راځي: خلکو به د رسول الله ﷺ څخه د خیر خبرې معلومولې. ما به ترې د شر (فتنې) خبرې پوښتلې. پدې ویریدم چې چیرته زه پکې اخته نه شم. یوه ورځ ما وویل: یا رسول الله ﷺ مونږ د جاهلیت په زمانه کې وو. الله پاك مونږ سره د نیکی معامله وکړه، آیا ددې نیکی نه وروسته به هم څه شر راځي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! ما پوښتنه وکړه، ددې شر نه وروسته به بیا خیر راځي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: ددېنه وروسته به داسې خلك پیدا شي. چې څه په زما په سنت روان وي او څه به خپلې طریقې جوړې کړي. ما بیا پوښتنه وکړه: چې ددېنه وروسته به بیا شر وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! هغه وخت به د جهنم طرفته راغوښتونکي د جهنم په دروازه ودریږي. څوك چې هم د هغوی خبره مني، هغه به جهنم ته غورځوي، ما عرض وکړ. یا رسول الله ﷺ ! ددې خلکو به څه صفتونه وي. (چې مونږ یې وپیژنو) رسول الله ﷺ وفرمایل: دا خلك به په ظاهره کې د لوی جماعت څخه وي، ما وویل یا رسول الله ﷺ: که دا خلك زه نه بیا مومم: نو څه وکړم. رسول الله ﷺ وفرمایل: که د مسلمانانو یو جماعت یا امام وي: نو هغوی سره شه. که جماعت او امام نه وي: نو بیا د ټولو فرقو نه بیل شه او ځنګل ته لاړ شه! د ونو په بیخونو کې کښینه! دا به ستا په حق کې ډېر غوره عمل وي (۳)

---

(۱) فتح الباری ۱۳/۳۱۶، کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة

(۲) مصنف ابن ابی شیبة، کتاب الفتن، ابوداؤد، ج۱ ص۵۸۲

(۳) بخاری ج۲ ص۱۰۴۹

**وضاحت** : ددېنه معلومیږي چې دوی کوم حدیث وړاندې کوي. هغه خو خپله د قیامت د فتنې د لړۍ والي خبره کوي.

**دریم جواب** : دا د حدیث څخه څنګه معلومه شوه؟ چې د امام نه مراد دلته د هغوی د جماعت امیر مسعود دی، د مسلمین نه مراد د مسعود جماعت المسلمین دی، دا مطلب خو یو محدث هم نه دی بیان کړی. ﴿ فاعتزل تلك الفرقة کلها ﴾ نو بیا د ټولو فرقو څخه جدا شه! ددېنه مراد د حکومت باغیان او ګمراه خلک دي. دا مطلب نه چې ددېنه مراد ټول دیني جماعتونه دي.

سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي: ﴿ فالزم جماعة الناس ﴾ [1]

## اتمه عقیده: خپل ځان ته د مسلمان پر ځای مسلم وایي

خپل ځان ته د مسلمان ویلو پر ځای مسلم ویل پکار دي. ځکه چې د مسلمان لفظ په قران او سنت کې نشته او د مسلم لفظ په قران او سنت کې شته.

**جواب** : د مسلم لفظ پښتو ترجمه په مسلمان سره کیږي، دا دواړه بیل بیل الفاظ نه دي، بلکې یو شی دي، یو عربي لفظ دی او بل اردو لفظ دی.

## نهمه عقیده: د فقه ضرورت نشته

د فقه ضرورت نشته، یوازې قرآن او حدیث پوره دی!

یو ځای کې پروفیسر مسعود احمد لیکي:

د فقه په کتابونو کې چې څه دي آیا هغه ټول منزّل من الله دي؟ که داسې نه وي؛ نو ددې اتباع حرامه ده.

همدغه شان بل ځای کې لیکي:

د فقه بېشماره مسئلې د ځان نه جوړې شوي، وللاکثر حکم الکل (اکثر لره حکم د کل وي) د مصداق کیدو له امله دا فقه د ځانه جوړه شوې.

---

[1] طبراني ورجاله ثقات مجمع الزوائد : ۲۲۲/۵

**جواب** : د فقه اهمیت او ضرورت منل شوی. ددې وجه دا ده: لکه څرنګه چې د انسان ضروریات ډیریږي، دغه شان دفقهې په مسئلو کې هم اضافه کیږي، همدغه شان کوم ساده ژوند چې د صحابه کرامو ﷺ عادت وو ختم شو. د ایران او نورو عجمي ملکونو په خوښه او طبیعتونو باندې مرکوز کیدل پدې وجه د حالاتو تقاضا دا شوه. چې د کتاب او سنت تعلیمات په داسې اندازې ترتیب شي.چې د صحابه کرامو ﷺ اقوال ولټول شي او د دین ټوله ذخیره مخې ته کېښودل شي. تر څو د ژوند نظام په مکمل ډول سم شي، چې د هغې په رڼا کې عالم، جاهل، ذهین، عربي، عجمي، هر یو خپل ژوند په شریعت باندې په آسانی سره تیر کړي او کومې مسئلې چې صراحت سره په قرآن، حدیث او د صحابه وو په اقوالو کې شتون نه لري، هغه د نصوصو څخه راوویستل شوي، تر څو آینده نسلونه په شریعت باندې په آسانی سره عمل وکړي.

## د اختر په لمونځ کې د شپږو تکبیرونو څخه

## انکار او په عامو لمونځونو اعتراض کول

د اختر په لمونځ کې دوولس زیاتي تکبیرونه دي، نه شپږ تکبیرونه لکه أحناف چې وایي.

**جواب**: د غیر مقلدینو په بیان کې ددې په اړه جواب تیر شوی؛ زموږ او د دوی صرف د اختر د لمونځ په زیاتي تکبیرونو کې اختلاف نشته. بلکې په عامو لمونځونو هم هغوی اعتراض کوي، د سید وقار علی شاه په وینا [1] د جماعت المسلمین نظریه د لمانځه په اړه داسې ده:

۱: افسوس! خلکو لمونځ بدل کړی. د لمونځ ارکان یې برخې برخې کړي، ځینې یې پکې فرائض ټاکلي، ځینې یې پکې واجبات ټاکلي. ځینې یې پکې سنت ټاکلي او ځینې یې پکې مستحبات ټاکلي، د نبی کریم ﷺ او د هغه د صحابه کرامو ﷺ په

---

[1] سید وقار علي شاه د ډیرې مودې پورې د جماعت المسلمین د باني مسعود احمد سره وو؛ خو د مسعود احمد سره د نظریاتو د اختلاف له امله بیل شو.

دور کې ددې تقسیم نوم او نخښنه هم نه و... لمونځ فرض دی، طریقه یې هم فرض ده.
پدیکې فرض، واجب، سنت او د مستحب تقسیم فرضې دی هیڅ حقیقت نه لري [۱]
۲: په اسلام کې د اختر لمونځ، تحیة المسجد، د لمر او سپوږمۍ تندر نیولو لمونځونه فرض دي. [۲]
۳: د ښځو لپاره عیدګاه ته تلل فرض دي؛ خو مذاهب خمسه کې یو هم په ښځو باندې عیدګاه ته تلل فرض نه مني. [۳]
۴: د اذان جواب ورکول فرض دي: خو په مذاهب خمسه کې چا هم ددې په فرضیت قول نه دی کړی. [۴]
۵: په لمانځه کې ﴿ اللهم اني اعوذبك من عذاب جهنم... ﴾ ویل فرض دي: خو په مذاهب خمسه کې چا هم دېته فرض نه دي ویلي. [۵]
۶: د جمعې غسل فرض دی؛ خو په مذاهب خمسه کې چا هم دېته فرض نه دي ویلي. [۶]
۷: په درې کاڼو سره استنجاء کول فرض دي، [۷] خو اهل حدیث والا وایي چې که طاق نه اخلي؛ نو هیڅ ګناه نشته. [۸]
۸: د اهل حدیثو په مذهب کې دي: چې اول دي په مخ مسح وکړي. بیا دي په لاسونو باندې. په اسلام کې دي: چې اول دي په لاسونو باندې مسح وکړي او بیا په مخ باندې. [۹]

---

[۱] متفرق مضامین : ۲۹
[۲] مذاهب خمسه اور دین اسلام : ۲۱، ۲٤، ۳٤
[۳] مذاهب خمسه اور دین اسلام : ۲٦
[۴] مذاهب خمسه اور دین اسلام : ۲۹
[۵] حواله مذکوره : ۳۲
[۶] مذاهب خمسه اور دین اسلام : ۳۰
[۷] تحقیق صلاة : ٤۷
[۸] المسلم : ۲/۲۱
[۹] المسلم : ٤/۱٦

۹: په زېږې سره نیت کول خلاف سنت دي او په زړه سره نیت کول عین سنت دي. (۱)

۱۰: په یو سلام سره درې رکعته وتر جائز نه دي، (۲) رسول الله ﷺ درې رکعته (وتر) حرام کړي دي؛ خو د اهل حدیثو په نزد جائز دي. (۳)

۱۱: لوڅ سر دې لمونځ نه کوي، (۴) داسې یو حدیث هم نشته. چې په هغې کې لوڅ سر سره د لمونځ کولو صراحت وي. هغه هم بغیر د عذر نه. (۵) د هیڅ حدیث څخه دا نده ثابته چې رسول الله ﷺ چیرته لوڅ سر لمونځ کړي وي، خصوصا پداسې وخت کې چې د هغوی سره خولۍ یا پګړۍ موجوده وي. لهذا خولۍ یا پګړۍ تړلو سره لمونځ کول د پورته آیت ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ (د هر لمانځه لپاره ډول او زینت وکړئ) په لحاظ ضروري دي. (۶)

۱۲: دا خیال هم صحیح نه دی. چې کشمیري انتهایي په صحت سره لمونځ کوي. نهایت صحیح خو په ځای پریږده، په سلو کې یو هم په مشکله صحیح لمونځ کوي. د تقلید د جهالت او د غفلت دور دی. (۷)

۱۳: د شافعي، مالکي، حنبلي او حنفي لمانځه طریقه د هغوی د مذهبونو مطابق ده. د حدیث سره د هغوی هیڅ تعلق نشته. (۸)

۱۴: د (اهل حدیثو) زموږ لمونځونو ته کتلو سره قې ورځي. (۹)

۱۵: د احنافو لمونځ غلط دی، (۱۰) د احنافو د لمانځه طریقه بېشکه غلطه ده. د مقلد لمونځ بالکل نه قبلیږي. (۱۱)

---

۱) تحقیق صلاۃ : ۱۱۱

۲) صلاۃ المسلمین ص : ۳۹۶

۳) رساله مسعود احمد صاحب بنام محمد شفیق صاحب ۱۸ ذوالقعده ۱۴۰۳ھ ص ۱۱

۴) نماز کی اهمیت : ۱۲

۵) صلاۃ المسلمین ص : ۷۵، منهاج المسلمین : ۹۹

۶) نماز اور زینت : ۹

۷) تفهیم اسلام : ۲۲٤

۸) سوالات کے جوابات از مسعود احمد صاحب : ۳ رمضان ۱۴۱۱ھ ص ۱

۹) مراسله مسعود احمد صاحب بنام عمران رشید صاحب : ۱۸ محرم ۱۴۱۱ھ ص۲

۱۰) التحقیق فی جواب التقلید : ۱۱

۱۱) تلاش حق : ۵۵، ۱۰۹

۱۶: تاسو د احنافو د لمانځه پوره مشاهده وکړی، د دوی د لمانځه طریقه به د رسول الله ﷺ د بیان شوي طریقې مطابق بیخي نه وي. (۱)

۱۷: مونږ ته حکم شوی: ﴿ فاعتزل تلك الفرقة كلها ﴾ ټولې فرقې پرېږدی او د هغوی څخه جدا شی؛ لهذا مونږ د هغو ټولو نه جدا شو، د هغوی په لمونځونو کې نه شم شریکیدلی، څنګه به شریك شو، پداسې حال کې چې دوی فرقه وارانه لمونځ کوي، چې د اسلامي لمونځ څخه ډېر مختلف دی. (۲)

## یولسمه عقیده: د مسعود احمد په لاس بیعت کول فرض دي

دوی د خپل امیر مسعود احمد سره بیعت کول فرض ګڼي، که څوك بیعت نه کوي؛ نو هغه مسلمان نه دی، پدې اړه هغوی ټول هغه دلیلونه وړاندې کوي، چې د اسلامي حکومت او خلیفة المسلمین سره یې تعلق وي، د هغه احادیثو څخه مراد خلیفة المسلمین وي.(۳)

## دولسمه عقیده: د الله پاک لپاره لفظ خدا (خدای) ویل جائز نه دي

د لفظ خدا (خدای) اطلاق په الله پاك باندې ناجائز دی، پدې اړه هغوی لیکي: زمونږ په نزد الله اسم ذات دی. ددې ترجمه نشي کیدی، بله دا چې لفظ خدای د الله پاك د شان سره نا مناسب دی، ځکه چې د فارسیانو د عقیدې مطابق دوه خدایان دي، یو د نیکی خدای او دویم د بدی خدای، ګویا دا خدای ناقص دی، د الله پاك ذات د نقصان څخه پاک دی، لهذا د الله پاك لپاره د لفظ خدای استعمالول صحیح نه دي (۴)

**جواب** : اهل سنت والجماعت فرماي: په عربی ژبه کې د رب ترجمه په پښتو کې د مالك او صاحب په معنی ده، د همدې ترجمه په فارسی ژبه کې په خدا سره کیږي، په همدې وجه د الله پاك نه سېوا بل چا ته خدای ویل جائز نه دي. په غیاث اللغات کې

---

۱) مجله المسلمین : جنوری ۲۰۰۲، ص ۹۱

۲) جماعت المسلمین پر اعتراضات اور اُن کے جوابات : ۳۶

۳) شرح مسلم للنووی کتاب المارة ۲/۱۱۹

۴) التحقیق فی جواب التقلید : ۱۱۷

دي، د خدا معنی مالك او د صاحب ده. همدغه شان د سوونو کالو راهیسي یې د هندوستان لوی اکابر استعمالوي، چا هم پدې باندې نکیر نه دی کړی. [1]

## دیارلسمه عقیده: د ایصال ثواب څخه انکار

چې مړي ته ثواب وبخښل شي؛ نو د هغې ثواب مړي ته نه رسیږي.

**جواب** : دا عقیده هم د اهل سنت والجماعت خلاف ده، د اهل سنت والجماعت په نزد مړي ته د مالیه (خیرات، صدقې وغیره) یا بدني (نفل لمونځ وغیره) یا مالي او بدني (حج وغیره) ثواب رسیږي، همدا خبره د احادیثو او اکابرینو څخه نقل شوې ده.

په یو روایت کې دي، چې یوې ښځې پوښتنه وکړه، چې زه د خپل پلار له طرفه حج یا عمره کوم؛ نو آیا ددې ثواب هغه ته رسیږي؟ رسول اللهﷺ وفرمایل: هو. [2]

په یو روایت کې دي: چې رسول اللهﷺ یو صحابي ته مشوره ورکړه، چې د خپلې مور له طرفه کوهی وکنه! هغې ته به یې ثواب ورسیږي.

همدغه شان په یو روایت کې راځي: چې د درې عملونو ثواب انسان ته د مرګ نه وروسته هم رسیږي:

۱: صدقه جاریه. ۲: هغه علم چې خلکو ته یې فایده ته ورسیږي. ۳: نیك اولاد. [3]

## د جماعت المسلمین په اړه د مفتیا نورایي

د یو سوال په جواب کې مولانا محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله فرمایي چې:

په کلمه شهادت کې د کلمه طیبه شاهدي ورکول کیږي، که کلمه طیبه هیڅ شی نه وي؛ نو شاهدي د څه شي ورکول کیږي، اصل کې په مسلمانانو کې د اختلاف پیدا کولو لپاره شیطان نوي نوي خبرې راوباسي، دا خلک ګمراه دي، د دوی څخه ځان لرې ساتل پکار دي. [4]

---

[1] د تفصیل لپاره وګورئ: آپ کے مسائل اور انکا حل : ۸/٤۹

[2] البخاري : ۱۵۱۳، ومسلم : ۱۳۳٤، وابوداؤد : ۱۸۰۹، والنسائی : ۵/۱۱۷

[3] مسلم : ۱٦۳۱، وابوداؤد: ۳۸۸۰، والترمذی : ۱۳۷٦، والنسائی : ٦/۲۵۱، واحمد: ۲/۳۷۲

[4] آپ کے مسائل اور انکا حل : ۱/۱۹۱

د يو بل سوال په جواب کې مولانا محمد يوسف لدهيانوي ﷫ ليکي: جماعت المسلمين د غير مقلدينو يو جماعت دی، چې د ائمه اربعه وو مقلدينو ته مشركان وايي. [1]

د سيد وقار علي شاه په وينا د جماعت المسلمين عقيدې د قاديانيانو سره يو ځای کيږي!

## د قاديانانو او جماعت المسلمين عقيدې په يو نظر کې

| نمبر | د احمديه عقيدې (قادياني) | د مسعوديه جماعت المسلمين عقيدې (رجسټرډ کراچی) |
|---|---|---|
| ۱ | څوك چې د مرزا غلام احمد قادياني په جماعت کې نه وي داخل، هغه مسلمان نه دی. | څوك چې د مسعود احمد په جماعت کې نه وي داخل. هغه مسلمان نه دی. |
| ۲ | د غير احمدي په اقتداء کې لمونځ کول صحيح نه دی. | د غير مسعودي په اقتداء کې لمونځ کول صحيح نه دی. |
| ۳ | د غير احمدي په اقتداء کې حج کول جائز نه دی. | د غير مسعودي په اقتداء کې حج جائز نه دی. |
| ۴ | د غير احمدي د جنازې لمونځ جائز نه دی. | د غير مسعودي د جنازې لمونځ جائز نه دی. |
| ۵ | د غير احمدي د ماشوم بچي جنازه کول هم جائز نه دي. | د غير مسعودي د ماشوم بچي جنازه کول هم جائز نه دي. |
| ۶ | د غير احمدي لپاره د مغفرت دعا کول جائز نه دي. | د غير مسعودي لپاره د مغفرت دعا کول جائز نه دي. |
| ۷ | غير احمدي ته د احمدي لور ورکول جائز نه دي. | غير مسعودي ته د مسعودي لور ورکول جائز نه دي. |

[1] آپ کے مسائل اور انکا حل: ۱/۱۸۶

| | | |
|---|---|---|
| ۸ | د غير احمدي لور سره نكاح جائز ده، لكه د اهل كتابو سره. | د غير مسعودي لور سره نكاح جائز ده، لكه د اهل كتابو سره. |
| ۹ | د احمديت خلاف تلونكي د جماعت نه خارج دي. | د مسعوديت خلاف تلونكي د جماعت نه خارج دي. |
| ۱۰ | د احمديت پرېښودونكي په نكاح كې كه احمدي جينۍ وي؛ نو هغه په طلاق وركولو او جينۍ په طلاق اخستلو مجبورولی شي. | د مسعوديت پرېښودونكي په نكاح كې كه مسعودي جينۍ وي؛ نو هغه په طلاق وركولو او جينۍ په طلاق اخستلو مجبورولی شي. |
| ۱۱ | هر احمدي ته پكار دي چې خپل ځان په حقه وګڼي او غير احمدي په ناحقه. | هر مسعودي ته پكار دي چې خپل ځان په حقه وګڼي او غير مسعودي په ناحقه. |
| ۱۲ | هر احمدي ته پكار دي چې صرف د خپل جماعت لپاره د خپل نفس، مال او وخت قرباني وركړي. | هر مسعودي ته پكار دي. چې صرف د خپل جماعت لپاره د خپل نفس، مال او وخت قرباني وركړي. |
| ۱۳ | د قرآن او حديث صرف هغه وضاحت او تشريح منل كيږي، كومه چې مرزا صاحب يا د هغوی خلفاؤ كړې وي. | د قرآن او حديث صرف هغه وضاحت او تشريح منل كيږي، كومه چې مسعود صاحب يا د هغوی خلفاؤ كړې وي. |
| ۱۴ | د خپل مقصد لپاره توريه (خپله عقيده پټول) جائز ده. | د خپل مقصد لپاره توريه (خپله عقيده پټول) جائز ده. |
| ۱۵ | د احمديت پرېښودونكي مرتد دي، وغيره وغيره. | د مسعوديت پرېښودونكي مرتد دي، وغيره وغيره. |

# د جماعت المسلمین په رد لیکل شوي کتابونه !

- جماعت المسلمین قرآن وسنت کی عدالت میں. مفتی اکرام الرحمن صاحب... مکتبه منیریه
- افکار وعقائد وفتاوی جماعت المسلمین ..... مرتبه سید وقار علی شاه.
- جماعت المسلمین اپنی افکار ونظریات کی آئینه میں ، مرتبه مولانا محمد قاسم سومرو، مکتبه جامعه بنوریه، کراچی.
- فرقه جماعت المسلمین تحقیق کی آئینی میں. مناظر اسلام مولانا محمد صفدر اوکاړوی
- جماعت المسلمین یا جماعت التکفیر ... سید وقار علی شاه صاحب وحیدی کتب خانه، معراج کتب خانه، مکتبه اسلام .....محله جنگی، پشاور شهر.
- نام نهاد جماعت المسلمین، یعنی فرقه مسعودی کی سوالات کی جوابات، مولانا محمد امین اوکاړوی





# [فرقه انجمن سرفروشان اسلام]

## د انجمن سرفروشان اسلام فرقې تاریخ

ددې فرقې بنسټګر ریاض احمد ګوهر شاهي دی، لومړی دی د بریلوي مسلك منونکی وو؛ خو بیا ډیر زر د هغه تحریك افشا شو، چې دی یو بې دینه سړی دی او د یوې ایجنسی (مؤسسې) پیداوار دی، دی د هیڅ مسلك منونکی نه، بلکې په خپلو خواهشاتو عمل کونکی انسان دی، پدې وجه هغه د ښځو سره ملاویدل. شراب او چرس څښل وغیره داسې ډول حرامو ته حلال ویل.

د مال او دولت د ډیر والي څخه هم معلومیږي. چې هغه د یوې ایجنسی سړی دی، چې د مسلمانانو ترمنځ د اختلاف جوړونې لپاره تیار شوی وو. په همدې وجه هغه ښکاره او بغیر د ویرې د غلطو عقیدو او نظریو پرچار وکړ، بیا هغه په لږ وخت د یوې فتنې په حیثیت خلکو ته په ډاګه شو او په پوره ملك کې د هغه جرائیم خپاره شو، بیا دده پدې غلطي او خرابې عقیدې عالمانو خپلې ویناوې وکړې او د هغه د کفر فتوی یې ورکړه.

## د انجمن سرفروشان اسلام فرقه کله وجود ته راغله؟

دا فرقه په ۱۹۸۰ء کې پیدا شوې. د دوی لومړنی مرکز کوټري ښار حیدر آباد سندهـ خورشید کالونی کې وو.

## د انجمن سرفروشان اسلام د بنسټګر ریاض احمد ګوهر شاهي حالات

**نوم** : ریاض احمد ګوهر شاهي.... د پلار نوم یې فضل حسین مغل چې حکومتي وظیفه یې هم درلوده.

**پیدایش** : د پنډی په ډهوك ګوهر شاه کلي کې په ۲۵ نومبر ۱۹۴۱ء پیدا شوی.

**زده کړه** : په خپل کلي کې ډهوك ګوهر شاه کې یې تر اتمه پورې مکتب وویل، بیا یې په خپلو روپیو شخصي تعلیم وکړ تر دې چې لسم صنف یې پای ته ورسوی،

بيا يې د ويلډنګ او موټر مکينك (مستري توب) کار زده کړ. او د موټر ميکنك (موټر جوړونې) دکان يې خلاص کړ؛ خو په هغې کې ورته څه ګټه ونشوه. د کاروبار د حاصلولو لپاره چې پريشانه شو؛ نو سوچ يې وکړ چې د پيرى مريدى کار شروع کول ښکار دي، ددې لپاره يې په پيل کې د خانقاه چکرې ولګولې.

ګوهر شاهي خپله ليکي: څو کاله د سيهون شريف په غرونو او لاله باغ کې روان وو، مجاهدې يې وکړې؛ خو مراد راته حاصل نه شو.

بيا مي د حام داتار او برى امام په دربارونو کې پاتې شو؛ خو هيڅ فايده ورته ونشوه، په روحاني سفر کې هغوى په يو بل ځاى کې ليکي چې د شلو څخه د ديرشو کالو تر عمر پورې د يو خر اثر وو، لمونځ وغيره ټول ختم شو، د جمعې لمونځ هم ادا نه شو، د پيرانو او عالمانو نه جدايي راغله، په اکثرو محفلونو کې به مي په هغوى پسې بدې ردې ويلې، واده مي وکړ، درې بچي مي پيدا شو، په کاروبار کې مصروف شوم، د ژوند په مطلب پوه شوم چې لړ شان ژوند دى، مزې وکړه، فالتو وخت به مي په سينماګانو او تهيټرو کې تيريدلو، د پيسو د راجمع کولو لپاره د حلال او حرام تميز هم ختم شو، په کاروبار کې بې ايماني، چل، دوکه او درواغ ويل زما شعار جوړ شو، پدې پوه شوم چې د نفس اماره په قيد کې يې ژوند تير شو، د سوسائيټيانو له امله راباندې د بدى اثر وشو. (١)

بيا مي پيرى مريدى شروع کړه، ددې لپاره هغه د سندهـ، غريبه او بې تعليمه علاقه جام شورو ټيکسټ بك بورډ کې ځانته يوه وړه کوټګى (اطاق. حجره) جوړه کړه، د پيريانو خاپيرو راويستلو دنده يې شروع کړه، د کمزورو عقيدو والا خلکو پرې رش جوړ کړ، د جام شورو د ميډيکل کالج (معالجوي طب) زده کوونکي تګ راتګ هم دلته شروع شو؛ خو د پوهنتون د هغه دا ځاى ختم کړ، وروسته هغه په حيدر آباد سرې ګهاټ کې ځانته اډه جوړه کړه.

---

١) روحاني سفر ص: ١٣ تا ١٦

دا واقعه گوهر شاهي خپله په خپل کتاب روحاني سفر کې ليکلې: د هغه په ليکلو کې يې وګورئ. ګوهر شاه ليکي:

روحاني حکم وشو. چې حيدر آباد ته واپس لاړ شه! او د الله پاك مخلوق ته فيض ورسوه. ما ورته وويل چې که هلته مي واپس کوې: نو پنډي ته مي وليږه! هلته هم د الله پاك مخلوق دی، چې په دنيا کې اوسيدل دي: نو بيا د ښځې او بچو نه لري والی په څه؟ حکم وشو چې ښځې بچي هم دلته راوغواړه! په جواب کې ما وويل چې د هغوی د معاش لپاره به وظيفې ته ضرورت وي، زه اوس د دنيوي دندو څخه بيل اوسيدل غواړم، جواب راغی: چې څوك د الله پاك د دين خدمت کول غواړي. الله پاك د هغوی مرسته کوي او الله پاك هغوی ته د هغه ځای نه رزق ورکوي. چې د هغه ګمان هم نه وي، د جام شورو د ټيکسټ بك بورډ نه شا ته مې يو ځای جوړ کړ. کيناستم او د قلبي ذکر، د پيريانو وغيره سلسله شروع شوه، هغه خلك چې د سيهون نه خبر وو. هغوی راته تګ راتګ شروع کړ. هغوی زما د ضرورياتو وسيله جوړه شوه. اوس دلته هم د خلکو رش جوړ شوی، ځايي پوليس راپسې ولګيدل. پټ پټ يې زما د حرکاتو جايزه واخسته، تر دې چې يوه عکس ويستونکي کامره مې په نزدې ونه کې برابره کړه. تر څو راتلونکي حادثې له نزدې په خپلو سترګو وګورم، د پوهنتون او معالجوي طب زده کوونکي طالبان راغلل. د ذکر او فکر خبرې به يې اوريدلې. د هغوی سره هم د ذکر شوق پيدا شو. مشر مدير ته يې معلومه شوه. چې هغه د نورو عقايدو سره اړيکه درلوده. هغه زما مريدانو په سختۍ سره منع کړ: خو منع نه شو، يوه ورځ مدير چوکيدارانو ته حکم وکړ، چې د هغه دا اطاق وران کړي، يا استعفی ورکړي، د سبا راختو سره سم چوکيداران راغلل، وې ويل: مونږ ته ستا د اطاق د خرابولو حکم شوی، مونږ چوکيدارانو ته هيڅ هم ونه ويل: تر دې چې هغوی زما د اوسېدو دغه کمره راخرابه کړه او ټول سامان يې لرې وغورځولو. (۱)

---

(۱) روحاني سفر ص: ۸ تا ۹

اوس په حیدر آباد سرې ګهاټ کې اوسیږم، دلته هم راته خلک راتلل، خلک به راسره په ډیره مینه ملاویدل، سوچ مې وکړ، چې ولې د دوی څخه د دین کار وانخستل شو، د ټولو نه مې لومړی د بوډاګانو سره قلبې ذکر شروع کړ، هغوی راسره ومنله او زما ښه تعریفونه یې هم کول؛ خو د عمل لپاره څوك هم تیار نه شو، بیا مې سوچ وکړ، چې د دین د عالمانو څخه باید مرسته او کومک واخستل شي، ډیرو عالمانو سره ملاو شوم؛ خو دا خلک ظاهر هر څه ګڼي، د هغوی په نزد ولایت هم علم ظاهري وو، بلکې اکثره عاملین مولویان، پیران او فقیران جوړ شوي، ډیرو کمو عالمانو د علم باطن په اړه راسره صرف خټې وخوځولو. اکثرو راسره مخالفت څرګند کړ، بیا مې د عابدانو او زاهدانو د اړیکې سره سره د ځوانانو لورې ته مخه کړه، ځکه چې د هغوی زړونه لا محفوظ وو، زړونو یې د زړه خبره ومنله،هغوی عملا لبیك راته ووایه، بیا مې هغوی ته د روحانیت د نسخو پلورلو لپاره په بازارونو کې د ګرځولو وینا وکړه؛ نو ټولو په مینه دا خواهش منظور کړ، په کلیو، محلو او جوماتونو کې مې ښه ډېر مینه وال پیدا کړه، د انجمن سرفروشان اسلام پاکستان بنیاد مې هم په دغه وخت کې کېښود. [۱]

ددېنه وروسته هغه د خپلو عقیدو او نظریو پېل کوي، د څه عقیدو ذکر په وړاندې صفحو کې راروان دی.

## د انجمن سرفروشان اسلام عقیدې او نظریې

۱: رسول اللهﷺ چې ما ته څه وایي. هم هغه زه بیانوم. [۲]

۲: د اسلام په پنځه ارکانو کې خو روحانیت نشته. روحانیت خو په ذکر کې دی. [۳]

۳: د قرآن کریم څلویښت پارې دي. [۴]

---

[۱]) روحانی سفر : ۳۸، ۳۹

[۲]) حق کی آواز ص : ٤

[۳]) حق کی آواز ص : ۳

[۴]) حق کی آواز ص : ۵۲

۴: د رسول الله ﷺ د زیارت نه بغیر څوک هم د هغه امتي نه شي جوړیدی. [1]

۵: روحانیت زده کړی، که ستاسو تعلق د هر مذهب سره وي، که مسلمان یې که عیسایي، که هندو یې، که سکهـ یې بغیر د کلمې ویلو نه هم الله پاك ته بنده رسیدلی شي. [2]

۶: د انبیاؤ ﷺ سپکاوی کول.

۷: زه امام مهدي یم، زما په طریقې سره به دنیا ته هدایت حاصلیږي. [3]

۸: په کلمه کې لا اله الا الله محمدٌ رسول الله، ددې په ځای ګوهر شاهي رسول الله ویل پکار دي. [4]

۹: د سیدنا عیسی علیه السلام سره د ملاقات دعوه کول.

۱۰: د پردیو ښځو سره په لاس ستړي مشي او غاړه یو ځای کول وغیره صحیح دي.

## د فرقه انجمن سرفروشان اسلام عقیدې او نظریې، د قران او حدیث څخه یې جوابونه

### لومړی عقیده

رسول الله ﷺ چې ما ته څه تعلیم راکوي، زه هم هغه خلکو ته بیانوم.

د اسلام ارکان، لمونځ، روژه، حج، زکوة کې روحانیت نشته، روحانیت خو صرف په ذکر کې دی، لکه ګوهر شاهي خپله لیکي:

په لمونځ، روژه، حج، زکوة او نورو عبادتونو کې روحانیت نشته، د روحانیت تعلق د زړه د ټك ټك په ذریعه الله کول دي، چې د هغې په ذریعه انسان کې موجوده نور نورو مخلوقاتو ته هم نقلیږي او الله الله کول شروع کوي، بیا دوی لمونځونه کوي، روژې نیسي، د هغوی دا عمل به تر قیامته پورې جاري وي. [5]

---

[1]) میناره نور ص: ٣٤

[2]) میناره نور

[3]) حق کی آواز: ٤/٥

[4]) اشتهار

[5]) حق کی آواز: ۳

**جواب** : ددې خلاف د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي: پدې باندې اجماع ده چې لمونځ، روژه، حج، زکوة او نور عبادتونه دا په دين کې اصل مقصود دي، که څوك ددې په اړه ووايي چې پديکې روحانيت نشته؛ نو دا د کفر خبره ده. (١)

خلاصه دا چې: شريعت او روحانيت يعنې طريقت د حقيقت په لحاظ سره يو شی دي. طريقت په شريعت باندې د عمل کولو نوم دی. يعنې هغه طريقه چې د هغې په ذريعه انسان په کامل شريعت باندې عمل کولی شي.

## دويمه عقيده: د قرآن کريم څلوېښت پارې دي

دې باره کې خپله ګوهر شاهي ليکي:

دا قرآن کريم دعوامو لپاره دی، لکه څنګه چې يو علم د عوامو لپاره او بل علم د خواصو لپاره دی، چې د سينې نه سينې ته منتقل شوی وي. همدغه شان د قرآن کريم لس پارې نورې هم دي، کله چې مونږ د الله پاك د پيژندلو لپاره په مغل باغ سيهون شريف کې ذکر، فکر، تلاوت، عبادت، رياضت او مجاهدې وکړې: نو په مونږ باندې باطني راز ښکاره شو، باطني مخلوقات زمونږ مخې ته راغلل او هغه لس پارې هم مخې ته راغلې. (٢)

په همدې کتاب کې بل ځای ليکي: ديرش پارې د ظاهري قرآن کريم او لس ورسره د باطني يو ځای کولو سره څلوېښت پارې شوې. (٣)

**جواب** : دا عقيده هم د قرآن او حديث څخه سراسر خلاف ده. په قرآن کريم کې الله پاك خپله فرمايي:

﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾ (٤)

**ترجمه** : بېشکه مونږ قرآن نازل کړی او هم مونږ به ددې ساتنه کوو.

---

١) احسن الفتاوی : ١/٣١٩
٢) حق کی آواز : ٥٢
٣) حق کی آواز : ٥٤
٤) سورة الحجر آيت : ٩

## د مسلمانانو عقيده

د مسلمانانو عقيده ده: چې تر قيامته پورې د هر قسم لفظي او معنوي تحريف نه به قرآن کريم محفوظ وي، که زمانه هر څومره بدله شي؛ خو په قرآن کريم کې به بدلون نه راځي او د قرآن کريم د حفاظت په اړه هم ډېر احاديث موجود دي.

## دريمه عقيده

### د رسول الله ﷺ د زيارت نه بغير څوک هم د هغه امتي نشي جوړيدى !

خپله ګوهر شاهي په خپل بدنام کتاب مينارهٔ نور کې ليکي

تر څو چې رسول الله ﷺ چا ته خپل ديدار نصيب نکړي. د هغه د امتي کيدو دعوه نشي کولى.

**جواب** : د اهل سنت والجماعت په نزد د امتي کيدو لپاره دا شرط تر ننه پورې چا هم نه دى لګولى، ددې ثبوت نه په قرآن، او نه هم په احاديثو مبارکه وو کې شته: نو دا شرط به څنګه ومنل شي؟

علماء کرامو د مسلمانيدو لپاره صرف هم دومره ليکلي: چې څوک هم د زړه نه د الله پاک د توحيد او د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي ورکړي، هغه د رسول الله ﷺ امتي او مسلمان دى. د رسول الله ﷺ په امت کې شامل دى. اګر که هغه ټول عمر د رسول الله ﷺ زيارت کړى وي، يا يې بيخي نه وي کړى هغه مسلمان دى.

د الله پاک د پيژندګلوو او هغه ته د رسيدو لپاره روحانيت زده کړى اګر که ستاسو تعلق د هرې فرقې يا مذهب سره وي، پدې اړه خپله ګوهر شاهي ليکي:

د الله پاک د پيژندلو او هغه ته د رسيدلو لپاره روحانيت زده کړى! که ستاسو تعلق د هرې فرقې يا هر مذهب سره وي، مسلمانان به وايي: چې بغير د کلمې د زده کولو نه څوک الله پاک ته څنګه رسيدلى شي؟ پداسې حال کې چې عملي داسې وي چې د عيسايانو، هندوانو او سکانو ذکر بغير د کلمې نه روا دى. (۱)

---

۱) ګوهر ص: ٤

په يو بل ځاى کې ليکي: د الله پاك د پېژندګلوو او هغه ته د رسيدلو لپاره روحانيت زده کړئ! که ستاسو تعلق د هر مذهب سره وي. (١)

دې باره کې د اهل سنت والجماعت علماؤ او پوره امت اتفاق دی: چې د اسلام قبلولو نه بغير يو عمل هم د الله پاك په نزد قبول نه دی، لکه چې د قرآن کريم او احاديثو څخه ددې ثبوت ملاويږي، مثلا:

﴿ وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ (٢)

**ترجمه** : څوك چې د دين اسلام څخه سېوا بل دين غواړي؛ نو د هغه نه به هيڅکله قبول نکړی شي.

## په احاديثو کې هم ددې ثبوت شته

١: ﴿ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ يَهُودِيٌّ وَلَا نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ يَمُوتُ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَّا كَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴾ (٣)

**ترجمه** : قسم دي وي په هغه ذات چې د محمد ﷺ روح د هغه په ولکه کې ده، نه دی مؤمن هيڅ يو کس چې هغه يهودي وي او که عيسائي وي چې زما په اړه واوري او پر ما ايمان را نه وړي، تر دې چې هغه مړ شي، مګر دا چې هغه به د اور څښتن وي.

٢: ﴿ قال عليّ رضى الله تعالى عنه فى اخر خطبة له : أيها الناس دينكم دينكم فإن السيئة فيه خير من الحسنة فى غيره إن السيئة فيه تغفر وإن الحسنة فى غيره لا تقبل ﴾ (٤)

**ترجمه** : سيدنا علي رضي الله عنه خپلو اخري خطبو کې په يوه خطبه کې داسې وويل: اې خلکو! خپل دين مضبوط کړئ! ځکه چې پديکې ګناه کول، د غيرو په دين کې د نيکۍ کولو نه غوره دی. ځکه چې په اسلام کې ګناه معاف کيږي او د نورو په دين کې نيکي هم نه قبليږي.

---

(١) فرمان گوهر شاهی، بريشت روشناس، مناره نور
(٢) سورة آل عمران آية : ٨٥
(٣) مسلم : ١٥٣، كذا فى المشكوة ص١٢
(٤) روح المعانى : ١٠٩/٣

۳: مشهور روايت دی: چې که موسی علیه السلام هم ژوندی وی؛ نو هم زما د دین تابعداري به يې کړې وی. [۱]

## د عقايدو د علماؤ څخه هم ددې ثبوت

مثلا : ۱: ﴿ان الله لا يغفران يشرك به﴾

ترجمه : (پدې خبره د ټولو مسلمانانو اجماع ده) چې مشرك ته بخښنه نه کيږي.

په شرح العقيدة الطحاويه کې دي:

۲: ﴿ واذا زال تصديق القلب لم ينفع بقية الاخر فان تصديق القلب شرط في اعتبارها وكونها نافعة ﴾ [۲]

ترجمه : کله چې په زړه کې د ايمان تصديق پاتې نشي؛ نو باقي عملونه هم کار نه ورکوي، ځکه چې د زړه تصديق د اعمالو د معتبر او فايده مند کيدو لپاره شرط دی.

## څلورمه عقيده: د انبياؤ علیهم السلام سپکاوی کول

د سيدنا آدم علیه السلام په اړه ګوهر شاهي ليکي:

ترجمه : کله چې د سيدنا آدم علیه السلام جسم (بدن) تيار شو؛ نو شيطان پرې د نفرت له امله لاړې تو کړې، چې د هغه په نوم پربوتې او د شرك يوه جرثومه دننه پکې داخله شوه، چې وروسته هغه جرثومه د شيطان مرستندويه جوړه شوه او سيدنا ادم علیه السلام د نفس د شرارت له امله د خپل وراثت يعنې جنت نه راوتلو سره په عالم ناسوت کې وغورځول شو. [۳]

د سيدنا موسی علیه السلام په اړه ليکي:

د بيت المقدس نه دوه ميله لرې د سيدنا موسی علیه السلام مزار دی، يهوديان سړي او ښځې هلته شراب څښي، تر دې چې هغه مزار د بې حيايي اډه شوه، چې د هغې له امله د موسی علیه السلام لطايفو هغه ځای پرېښود او هغه مزار اوس خالي بت خانه پاتې شو. [۴]

---

[۱] رواه احمد : ٤/٢٦٦، والبزار : ١٢٤

[۲] نبراس ص : ٣٦٠

[۳] ميناره نور : ص ١١، ١٢

[۴] ميناره نور : ٦٢

**جواب** : ددې په خلاف د جمهور امت اجماع ده، چې د انبياؤ ﷺ تحقير او سپكاوى كفر دى. همدا خبره د قرآن، احاديثو او د جمهور امت د اقوالو څخه معلوميږي.

## د انبياؤ ﷺ سپكاوى كفر دى، د قرآن كريم څخه ددې ثبوت

۱: ﴿ ذٰلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ﴾ (۱)

**ترجمه** : چا چې كفر وكړ او زما په رسولانو يې ټوقې وكړې، د هغوى بدله جهنم دى.

۲ ﴿ قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ﴾ (۲)

**ترجمه** : ووايې! آيا په الله او د هغه په آيتونو او رسول الله ﷺ پسې تاسو ټوقې كولې؟ اوس عذرونه مه جوړى، يقينا تاسو د ايمان راوړلو نه وروسته كافران شوي يى.

۳: ﴿ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ ﴾ (۳)

**ترجمه** : ددې لپاره چې تاسو په الله او د هغه په رسول ﷺ ايمان راوړى؛ د هغه عزت او تعظيم يې وكړى.

## د انبياؤ ﷺ سپكاوى كفر دى، د احاديثو څخه ددې ثبوت

۱: ﴿ وعن ابن عباس رضى الله عنهما: "أيما مسلم سب الله أو سب أحدا من الأنبياء فقد كذب الرسول الله صلى الله عليه وسلم وهي ردة يستتاب منها فإن رجع فيها وإلا قتل ﴾

**ترجمه** : سيدنا ابن عباس ﷺ فرمايي: چې كوم مسلمان الله يا نبي ﷺ ته كنځلې وكړي، هغه د رسول الله ﷺ تكذيب وكړ، دى مرتد شو، كه هغه توبه وكړي؛ نو صحيح ده، ګنه نو وژل كيږي به.

۲: ﴿ عن مجاهد قال: أتى عمر برجل سب النبي صلى الله عليه وسلم فقتله ثم قال عمر: "من سب الله أو سب أحدا من الأنبياء فاقتلوه" ﴾ (۴)

---

(۱) سورة الكهف آيت : ۱۰۶

(۲) سورة التوبة آيت : ۶۵، ۶۶

(۳) سورة الفتح آيت : ۹

(۴) الصارم المسلول لابن تيمية ص ۱۹۵

**ترجمه** : سيدنا عمر رضي الله عنه ته يو سړي راويستل شو: چا چې رسول الله ﷺ ته کنځلې کړې وې، پدې باندې سيدنا عمر رضي الله عنه د هغه د وژلو امر وکړ. وې فرمايل ځوک چې الله يا يو نبي ته کنځلې وکړي: نو هغه ووژنئ.

## د جمهور امت عقيده هم دا ده

په تحفه شرح منهاج کې دي چې:

۱: ﴿ او كذب رسولا او نبيا او نقصه باى منقص كان صغرا اسمه مريدا تحقيره او جوز نبوة احد بعد وجود نبينا صلى الله عليه وسلم وعيسى عليه السلام نبى قبله فلا يرد ﴾[١]

**ترجمه** : که ځوک د يو هادي رسول تکذيب وکړي کافر کيږي. يا يې تقصير (کمی) بيان کړي. تحقيرا په تصغير سره نوم اخستلو باندې. يا د رسول الله ﷺ د نبوت نه وروسته د چا لپاره د نبوت منصب جائز ګڼي او عيسى عليه السلام ته د رسول الله ﷺ نه مخکې نبوت ورکول شوی. پديکې هيڅ شك نشته.

۲: ﴿ يكفر اذا شك فى صدق النبى صلى الله عليه وسلم او سبه او نقصه او صغره .... ويكفر به بنسبة الانبياء الى الفواحش ﴾[٢]

**ترجمه** : کله چې د يو نبي په صدق کې شك وکړي يا کنځلې ورته وکړي. يا د هغه په شان کې کمی وکړي يا يې په تصغير سره نوم واخلي او يا هم د فواحشو نسبت انبياؤ عليهم السلام ته وکړي. پدې ټولو سره انسان کافر کيږي.

۳: ﴿ الكافر بسب نبى ... فانه يقتل حدا ﴾[٣]

**ترجمه** : نبي ته کنځل کولو سره انسان کافر کيږي او هغه به حدا وژل کيږي.

---

[١] تحفه شرح منهاج : ص ٢٤١
[٢] الاشباه والنظائر : ص ١٣٧
[٣] رد المحتار ٤/٢٣١

# پنځمه عقيده

## د مهدي کيدو دعوه کول او دا ويل چې هدايت به زما په ذريعه خپريږي

دې باره کې خپله گوهر شاهي ليکي:

که خلک ماته امام مهدی وايي: نو په اصل کې چې چا ته ځومره فيض ملاويږي، هغه مونږ هم دومره گڼي، ځينې خلک خو مونږ ته نور هم وايي. مونږ هغوی ته پدې وجه څه نه وايو چې د هغوی عقيده ځومره زمونږ طرفته زياته وي. هغه د هغوی لپاره هغومره غوره ده. (۱)

**جواب** : ددې په خلاف د مسلمانانو دا عقيده ده چې امام مهدي به قيامت ته نزدې پيدا کيږي.

د هغه نوم به محمد وي د والد نوم به يې عبدالله، د مور نوم به يې امنه وي، د سيدنا حسن رضي الله عنه په اولاد کې به وي، د مدينې منورې اوسيدونکی به وي.

د مهدي په باره کې ډير روايتونه راغلي، مثلا:

۱: ﴿ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ أَوْلَادِ فَاطِمَةَ ﴾ (۲)

**ترجمه** : د سيده ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چې: هغوی د رسول الله ﷺ څخه واوريدل: مهدي به زما د خاندان نه وي، يعنې د فاطمې د اولاد څخه.

۲: ﴿ قَالَ عَلِيٌّ، وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ، قَالَ: إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ، يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ، وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ، - ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةً - يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا ﴾ (۳)

---

۱) سوالنامه گوهر : ۱۹۹۷ء ص ۸

۲) ابوداؤد : ۲/۲۴۰، ابن ماجة وکذا فی المشکاة ص : ۴۷۰

۳) ابوداؤد : ۲/۲۴۰، ابن ماجة وکذا فی المشکاة ص : ۴۷۰

**ترجمه** : سيدنا علي رضي الله عنه سيدنا حسن رضي الله عنه ته وكتل او ويې فرمايل زما دا ځوی سردار دی، لکه رسول الله ﷺ چې هغه ته سيد ويلي. زر ده چې دده د نسب نه به يو سړی پيدا شي، چې نوم به يې ستاسو د نبي د نوم په څېر وي، په اخلاقو کې به هم د هغوی په شان وي او هغه به ځمکه د عدل او انصاف څخه ډکه کړي

۳: ﴿ عن عبدالله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ : لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي .... وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ ﴾ [1]

**ترجمه** : د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: دنيا به تر هغه پورې وي. تر څو زما د خاندان يو سړی د عربو بادشاه شي، د هغه نوم به زما د نوم په شان او د هغه د والد صاحب نوم به زما د والد صاحب د نوم په شان وي.

۴: ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - الْمَهْدِيُّ مِنِّي أَجْلَى الْجَبْهَةِ أَقْنَى الأَنْفِ يَمْلأُ الأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلاً كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا ﴾ [2]

**ترجمه** : د سيدنا ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت به تر هغه پورې نه راځي. تر څو ځمکه د ظلم او بې انصافۍ څخه ډکه شي. بيا به زما د خاندان يو سړی پيدا شي، چې ځمکه به د عدل نه ډکه کړي. لکه څرنګه چې هغه دد بنه مخکې د ظلم او بې انصافۍ نه ډکه وه.

## د امام مهدي په اړه متواتر احاديث راغلي

د امام مهدي رحمه الله په باره کې دومره ډېر روايتونه نقل دي: چې حد د تواتر ته رسيدلي، چې انکار ترې کول ممکن نه دي. علامه شوکاني رحمه الله فرمايي:

﴿ فتقرر ان الاحاديث الواردة فى المهدى المنتظر متواترة والاحاديث الواردة فى نزول عيسى بن مريم عليهما السلام متواترة ﴾ [3]

---

[1] العقائد : ۲/۲۳۱، وترمذى : ۲/٤٦، وكذا فى المشكاة : ٤٧٠ (حسن)

[2] ابوداؤد : ٤٢٨٥ (حسن)

[3] كتاب الاذاعة : ۷۷

**ترجمه** : هغه احاديث چې د مهدي موعود په باره کې راغلي دي: هغه متواتر دي او هغه احاديث چې د عيسى عليه السلام د نزول په باره کې راغلي دي هغه هم متواتر دي.

ددې ټولو روايتونو نه معلوميږي چې د امام مهدي راتلل د قيامت د علاماتو څخه يوه علامه ده. د هغوی کوم علامات چې په احاديثو کې بيان شوي دي. هغه يوه علامه هم په ګوهر شاهي کې نده موندل شوې. پدې وجه دی مهدي موعود نه بلکې يو درواغجن دی. (١)

## شپږمه عقيده

## په کلمه کې د محمد رسول الله په ځای ګوهر شاهي رسول الله ويل

دې باره کې خپله ګوهر شاهي په خپل بدنام کتاب حق کی آواز کې ليکي:

**ترجمه** : د پيدايش د جشن پر مهال يو رنګين استيکر R.A.G.S نيشنل انګلينډ جاري کړ، چې په هغې کې کلمه او زما نوم ليکلی وو. حال دا چې پديکې څه داسې خبره نه وه. بيا يې هم د مخالفينو د شر له امله فورا ضبط کړ. (٢)

**جواب** : په کلمه طيبه کې دويم جزء محمد رسول الله (ﷺ) دی. پدې باندې د جمهور امت اجماع ده،لکه چې دنوروانبياؤ عليهم السلام سره به د کلمې په دويم جزء کې نوم ذکر کېده. همدغه شان ګوهر شاهي هم خپل نوم په کلمه کې شامل کړی، چې داسې دی: (٣)

لاالہ الااللہ ادم صفی اللہ

لاالہ الااللہ ابراهيم خليل اللہ

لاالہ الااللہ اسماعيل ذبيح اللہ

لاالہ الااللہ موسیٰ کليم اللہ

لاالہ الااللہ عيسیٰ روح اللہ

---

١) د زيات وضاحت لپاره وګورئ: عقائد الاسلام، مولف ابو محمد عبدالحق حقاني، ص١٨١، ١٨٦ عقيده سفارينه ٦٧/٢

٢) حق کی آواز ص : ٥١٤

٣) مهدی منتظر، شيخ ابن حجر مکی، پديکې د مهدي دوه سوه علامات ليکل شوي دي

دغه شان ګوهر شاهي هم د کلمې سره خپل نوم يو ځای کړی او داسې يې ليکلي

لااله‌الاالله ګوهرشاهی رسول‌الله

دغه شان د جمهور امت اتفاق دی چې په کلمه طيبه کې په تغير کولو سره انسان د اسلام نه وځي. د اهل سنت والجماعت عقيده ده چې صرف نبیﷺ نه منونکی کافر دی. ددې سره سره چې رسول اللهﷺ څه راوړي دي. د هغې نه منل هم کفر دی. همدا خبره د قرآن. حديث او اجماع امت نه ثابته ده. علامه ابن حزم ظاهري ؒ په خپل کتاب الفصل کې ليکي:

﴿صح الاجماع على ان كل من جحد شيئا صح عندنا بالاجماع ان رسول اللهﷺ اتى به فقد كفر﴾[1]

**ترجمه** : پدې باندې اجماع ده: هر هغه سړی چې د داسې امر نه انکار کوي. چې رسول اللهﷺ د الله پاك له لوري راوړی وي. يا هم د هغه څه نه انکار کوي چې په اجماع سره ثابت وي. هغه کافر دی.

او په ايثار الحق نومې کتاب کې دي:

﴿ان الكفر هو جحد الضروريات من الدين او تاويلها﴾[2]

**ترجمه** : د دين د ضرورياتو نه انکار کول يا د هغې غلط تاويل کول کفر دی.

## اوومه عقيده: د سيد نا عيسیٰ عليه‌السلام سره د ملاقات دعوه

دې باره کې خپله ګوهر شاهي ليکي:

امام مهدي او سيدنا عيسیٰ عليه‌السلام ظاهر شوي دي. څوك چې هغوی ته نزدې وي. هغوی يې پيژني او څوك چې هغوی ته نزدې کيږي هغوی هم پيژني. پداسې طريقې سرې د هغوی تعداد زياتيږي.[3]

همدغه شان په بل ځای کې د هغه مريد ليکي:

---

[1]) کتاب الفصل : ٤/٢٥٥

[2]) ايثار الحق : ص ٤٤١

[3]) حق کی آواز، ملفوظات گوهر شاهی ص : ١٧، تاريخ اشاعت ١٥ جون ١٩٩٨ء

حضرت سیدنا ریاض احمد گوهر شاهي مدظله‌د امریکې د دورې په تاریخ ۲۹ مئ ۱۹۹۷ء د نیو میکسیکو په ښار طاؤس (Taus) په یو ځایي هوټل (Eimdnti ladge) کې د سیدنا گوهر شاهي سره سیدنا عیسیٰ علیہ السلام ظاهري ملاقات وشو. دا ملاقات تر نن ۲۸ جولائي ۱۹۹۷ء پورې یو راز وو: خو اوس چې کله مرشد پاك ددې راز نه پرده پورته کړه: نو دې سره یې څه تفصیلات ارشاد وفرمایل: د نیو میکسیکو هوټل کې یې په لومړۍ شپه د اوسېدو پر مهال د شپې په آخري برخه کې مي یو سړی په خپله کمره (حجره) کې وموند. لږه لږه رڼا وه. ما ویل که زمونږ څوك ملګری دی. ما ترې پوښتنه وکړه ولې راغلی یې؟ جواب یې راکړو: تاسو سره د ملاقات لپاره: چې ما رڼا کړه: نو دا بل یو مخ وو. چې د هغې په لیدو سره زما ټولې وظیفې په الهي یاد سره په جوش کې راغلل. ما ته یو نا آشنا خوشحالي محسوسه شوه. څنګه خوشحالي چې ما څو ځله د رسول الله ﷺ په محفلونو کې محسوسه کړې وه. معلومیده چې هغوی ته په هره ژبه ښه په مکمل ډول مهارت حاصل وو. هغوی ماته وویل: چې زه عیسیٰ بن مریم علیهما السلام یم. اوس په امریکا کې اوسیږم. ما ترې پوښتنه وکړه: چیرته اوسیږې؟ جواب یې راکړ: نه مخکې زما څه استوګنه وه او نه اوس شته. بیا ورسره نورې خبرې هم وشوې. هغه مونږ ته (ګوهر شاهي) نور بیان مناسب ونه ګڼل. حضرت ګوهر شاهي وایي: چې څو ورځې وروسته چې کله زه امریکې زوناټوسن کې یو روحاني سینټر (Eastgantrd A.Z ۳۳۳۵Tocson) ته لاړم: نو هلته مي د کتابونو په الماری کې مي د کوربه ښځې سره هم د هغه ځوان (یعنې عیسیٰ علیہ السلام) تصویر (عکس) ولید. ما هغه سندستي وپیژند. د هغې نه مي پوښتنه وکړه. چې دا تصویر د چا دی؟ هغې وویل: د عیسیٰ بن مریم علیهما السلام دی.

پوښتنه مي ترې وکړه. تا ته څنګه ملاو شوی؟ وې ویل: چې د هغوی د پیژندګلو څه کسان په یو مقدس روحاني ځای کې د عبادت او ریاضت لپاره تللي وو، د هغه ځای ځینې تصویران یې ویستلي وو. کله چې هغه تصویران چاپ شو: نو په څه تصویرانو کې دا مخ هم راغلی وو. چې هغه وخت هلته چا نه وو لیدلی او نه یې د هغه تصویر ویستلی وو. هغه تصویر مي د هغې ښځې نه واخیست. چې په سپوږمۍ کې

د یو موجود تصویر بالکل شبیه وو، اوس چې مي کله دلته لندن کې دغه تصویر ګاردین اخباروالو ته د اشتهار لپاره ورکړ: نو هغوی هم د خپل کجریتر په ذریعه د سپوږمۍ نه د اخستل شوي تصویر سره یو ځای کړ او ددې تصدیق یې وکړ چې دا او د سپوږمۍ والا تصویرونه یو دي. اوس د دې حوالو په رڼا کې ددې راز نه پرده پورته شوه او موږ ټول یې هم تصدیق کوو چې واقعي دا تصویر د سیدنا عیسی علیه السلام دی [١].

**جواب** : د پوره امت اتفاق دی چې سیدنا عیسی علیه السلام په اسمانونو کې ژوندی دی. قیامت ته به نږدې نازلیږي. بیا به څه موده په ځمکه کې اوسیږي. بیا به وفات کیږي. د رسول الله ﷺ په خوا کې به دفن کیږي

د سیدنا عیسی علیه السلام د نزول په اړه احادیثو کې راځي کله چې هغه د اسمان نه رابنکته شي. هم هغه وخت به خلک هغه ویني. د مخکې نه به هغه په ځمکه کې نه وي موجود.

﴿ عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم: فَبَعَثَ اللهُ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ فَيَنْزِلُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِيَّ دِمَشْقَ بَيْنَ مَهْرُوذَتَيْنِ وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلَى أَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ ﴾ [٢].

**ترجمه** : د سیدنا نواس بن سمعان رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: بیا به الله پاك مسیح علیه السلام د مریم ځوی رالیږي. هغه به د دمشق د مشرقي سپینې منارې سره دوه ځادرونه اغوستلي او رابنکته کیږي به او د دوه ملایکو په وزرو به یې لاسونه ایښي وي.

**یادونه** : ددېنه معلومیږي چې سیدنا عیسی علیه السلام به په دمشق کې رابنکته کیږي. د ګوهر شاهي په قول هغه په امریکا کې رابنکته شوی. کوم وخت چې سیدنا عیسی علیه السلام رابنکته شي. هغه به د لمانځه وخت وي

﴿ عن جابر رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ - قَالَ - فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فَيَقُولُ أَمِيرُهُمْ تَعَالَ صَلِّ لَنَا. فَيَقُولُ لَا. إِنَّ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ أُمَرَاءُ. تَكْرِمَةَ اللهِ هَذِهِ الْأُمَّةَ ﴾ [٣].

---

[١] اشتهار کرده سرفروش پبلشر

[٢] مسلم : ٢/٤٠١، ترمذی : ٢/٤٧، ابن ماجة : ٢/٣٠٦، ابوداؤد : ٢/٢٤٥

[٣] مسلم برقم : ١٥٦، واحمد : ٣/٣٤٥، و٣٨٤ وکذا فی المشکوة ص٤٨٠

**ترجمه** : د سیدنا جابر ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما په امت کې به یو جماعت همیشه په حق باندې جنګیږي. هغوی به تر قیامته پورې غالب وي. بیا یې وفرمایل: چې کله سیدنا عیسی بن مریم ﷺ رانښکته شي: نو د مسلمانانو امیر به ورته وایي چې تشریف راوړی لمونځ وکړی! هغوی به جواب ورکړي. چې نه الله پاك دې امت ته دا فضیلت ورکړی. چې ستاسو ځینې دي د ځینو نورو امیران وي.

## سیدنا عیسی ﷺ چې کله د اسمان نه نازل شي؛ نو جهاد به کوي

﴿ عن ابي هريرة رضی الله تعالی عنه قال: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا مُقْسِطًا فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ ﴾ [1]

**ترجمه** : د سیدنا ابوهریره ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ قسم وخوړ او وې فرمایل قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په ولکه کې دی. چې نږدې به په تاسو کې (عیسی) ابن مریم ﷺ عادل حاکم رانښکته شي. صلیب به ماتوي او خنزیر به ووژني او جزیه به ختمه کړي او مال به ډېر شي د صدقې او زکوة قبلونکی به څوك نه وي.

سیدنا عیسی ﷺ به څلوېښت کاله په ځمکه کې واوسیږي. آخر به د رسول الله ﷺ په خوا کې دفن شي

﴿ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ إِلَى الْأَرْضِ، فَيَتَزَوَّجُ، وَيُولَدُ لَهُ، وَيَمْكُثُ خَمْسًا وَأَرْبَعِينَ سَنَةً، ثُمَّ يَمُوتُ، فَيُدْفَنُ مَعِي فِي قَبْرِي، فَأَقُومُ أَنَا وَعِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ بَيْنَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ ﴾ [2]

**ترجمه** : د سیدنا عبدالله بن عمر ﷠ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: سیدنا عیسی بن مریم ﷺ به په ځمکه رانښکته کیږي. بیا به واده کوي او اولاد به یې پیدا کیږي. بیا به پنځه څلوېښت کاله عمر پوره کوي او وفات کیږي به. زما د قبر په

---

[1] بخاری ۱/٤٩٠، ومسلم : ۱/۸۷، وترمذی: ۱/٤٦، وابوداؤد

[2] کتاب الوفاء لابن الجوزی رحمه الله تعالی بحواله مشکاة : ص ٤٨٠

خوا کې به دفن کيږي، بيا به زه او عيسی ﷺ د قيامت په ورځ د يو قبر نه پاځيږو. د ابوبکر او عمر ﷺ ترمنځ.

ددې ټولو روايتونو نه معلوميږي، چې سيدنا عيسی ﷺ به قيامت ته نزدې راښکته کيږي او د قيامت په لويو نخښو کې د هغوی نزول هم دی. کله چې په دمشق کې راښکته شي؛ نو امام مهدي به موجود وي او ټول مسلمانان به يې وپيژني.

## اتمه عقيده:

## ښځو ته لاس، غاړه ورکول او په هغوی باندې بدن چاپي کول صحيح دي

په روحاني سفر کې ګوهر شاهي خپله ليکي:

**ترجمه** : هغه به د مستی له امله زياته رانزدې شوه. کله به يې په سترګو کې عجيبه مستي خپره شوه. بيا به يې د اولاد په څېر تکبر راباندې کولو. حال دا چې د هغې عمر پنځوس کالو ته نزدې وو. زما لاس به يې ونيولو او په خپلو سينو پورې به يې لګولو او کله به يې د مستی له امله خو ګډا (اتڼ) هم شروع کړه. [1]

په خپل کتاب کې بل ځای ليکي:

کله چې به يې زړه خفه شو. يا به ورته بچي ياد شوه: نو هم هغه ښځې به ورته يک دم ښکاره شوې. بيا به يې نعتونه پرې ويل. په ما به هغه پرېشانه وخت هم تير شو. کله به مي په بدن کې درد وو: نو هغه به راغله چاپي به يې کړم، چې په هغې سره به ماته ډېر سکون ملاو شو.

**جواب** : پداسې حال کې چې بل طرفته د احاديثو نه ثابته ده. چې د ښځو سره ملاويدل او هغوی سره لاس اچول يا په هغوی باندې چاپي کول ټول ناجائز دي.

١: د سيدنا عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې يو سړی د يوې ښځې سره يواځې شي؛ نو د هغوی سره دريم شيطان وي. [2]

[1]) روحانی سفر: ص ٣٧
[2]) ترمذی

۲: د سیدنا معقل بن یسار رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: که په تاسو کې د چا په سر میخ ټك وهل شي. دا غوره ده ددېنه چې هغه یوه داسې ښځه مسه کړي. چې د هغه لپاره حلاله نه ده. (۱)

۳: پردو ښځو ته سلام کول او دغه شان پردو سړو ته د ښځو سلام کول هم نا جائز دي. (۲)

۴: د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه په یو اوږد حدیث کې راغلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د لاسونو زنا د نامحرم شي نیول دي (۳)

علماء کرام فرمایي: چې د نامحرمې ښځې سره خبرې اترې کول او غاړه ورکول او بدن پرې چاپې کول وغیره ټول حرام کارونه دي.



# [د فرقه انجمن سرفروشان اسلام په اړه د مفتیانو رایې]

## د مولانا محمد یوسف لدهیانوی شهید رحمه الله تعالی آخري فتوی

## استفتاء

بسم الله الرحمن الرحیم

د دین عالمان څه فرمایي: ددې مسئلې په باره کې. یو سړی چې د هغه نوم ریاض احمد گوهر شاهي دی او د هغه د جماعت نوم ''انجمن سرفروشان اسلام.. دی، دغه سړي میټرك پاس (لسم صنف ویلی) دی. د ویلډر او موټر میکنك په کار کې ښه مهارت لري، د مغل قوم سره اړیکه لري: خو خپل ځان ته سید وایي. کوټري خورشید کالونی. حیدراباد، سندهـ کې. د ''روحانی مرکز.. په نوم هغه خپله اډه جوړه کړې ده، د هغه دعوه ده:

۱: څه چې محمد ﷺ مانه ښیي، زه هم هغه تاسو ته بیانوم.

---

۱) رواه الطبرانی والبیهقی کما فی ترغیب المنذری : ٤٨٥

۲) ابو نعیم و کنزل العمال ج٨ ص٢٦٣

۳) البخاری ٣٢٤٣ ومسلم ٢٦٥٧ واحمد : ٨٢٢٢

۲: د رسول الله ﷺ سره مي ډېر ملاقاتونه کيږي.

۳: څو ځله مي رسول الله ﷺ سره بالمشافه ملاقات شوی دی

۴: د هغه عقيدت مندو يو کاغذ خپور کړی. چې په هغې کې د ﴿ لااله الاالله ﴾ نه وروسته د ﴿ محمد رسول الله ﴾ په ځای رياض احمد ګوهر شاهي ليکل شوی: خو دا سړی د کاغذ په اړه وايي: چې پديکې هيڅ ګناه نشته.

۵: د اسلام په پنځه بنيادي ارکانو لمونځ او روژې ته ظاهري عبادت وايي. چې پدکې روحانيت نشته. روحانيت د زړه په ټک ټک کې دی.

۶: دا سړی د قرآن کريم د ديرشو پارو په ځای څلويښت پارې مني. زياتې لس پارې ددې ديرشو پارو نه په مختلفو مضامينو مشتمل دي. پدې ديرشو پارو کې دي: چې زکوة دوه نيم فيصده دی: خو په هغه لسو پارو کې دي چې زکوة اووۀ نوي فيصده دی. په ديرشو پارو کې دي. چې لمونځ کوه! کنه نو ګناهګار به شې. په هغه لسو پارو کې دي: چې که تا لمونځ وکړ؛ نو ګناهګار به شې. وغيره وغيره.

۷: د هغه وينا ده: چې زما معتقدين ما مهدي ګني او ما چې څوك څنګه ګني. هغه ته به هغومره فايده رسيږي.

۸: د هغه وينا ده: چې زما تصوير په سپوږمۍ. لمر او حجر اسود کې ظاهر شوی دی. څوك چې ددېنه انکار کوي. هغه د الله پاك د ډيرو لويو لويو نخښو نه انکار کوي.

۹: زما د حجر اسود د تصوير امام حرم حماد بن عبدالله تصديق کړی دی او ويلي يې دي چې دا د مهدي د تصوير سره ملاويږي.

۱۰: هغه وايي چې د رسول الله ﷺ سره په عالم ارواح کې اوسيدم. کله چې هغوی دنيا ته تشريف راوړ او په حجر اسود کې يې زما تصوير وليد: نو زه يې وپيژندم، پدې وجه رسول الله ﷺ زما تصوير بنکل کړ.

۱۱: هغه وايي: چې د عيسی عليه السلام سره هغه د امريکې په يو هوټل کې ملاقات کړی او هغه ماسره د ملاقات لپاره راغلی وو. د هغه دا وينا هم ده چې سيدنا عيسی عليه السلام نازل شوی دی.

۱۲. د هغه وينا ده: چې امام مهدي پيدا شوی، د مهدي کېدو د دعوې نه پدې وجه چوپ دی، چې په پاکستان کې د قانون توهين رسالت د وېرې له امله د زندان نه دارېږي.

۱۳. هغه د نامحرمو خصوصا د ځلې (ځلو ښځو ورځو) په دوران کې ټوله شپه د يوې مستی سره په غېږ کې وو؛ خو په هغې سره د هغه په روحانيت کې فرق نه راځي.

۱۴. هغه په انبياؤ کرامو عليهم السلام کې سيدنا ادم عليه السلام (معاذ الله) د حسد او د نفس د شرارت مريض ګڼي.

۱۵. هغه د سيدنا موسی عليه السلام قبر مبارك د هغوی د بدن مبارك نه خالي او د شرك اډه يې ګڼي.

۱۶. هغه وايي: چې الله پاك مجبور دی، سره له دې چې هغه د شا رګ سره دی، باوجود هم هم ليدل نشي کولی.

۱۷. هغه وايي: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله پاك د ملاقات لپاره تللی وو: نو وې کتل چې د الله پاك په لاس کې د سيدنا علي رضي الله عنه ګوتمه وه.

۱۸. هغه وايي: چې بنګ، چرس حرام نه دي، بلکې هغه نشه چې هغې سره په روحانيت کې اضافه کېږي حلاله ده، دا هسې بې ځايه زمونږ علماء کرامو حرامه کړې ده.

۱۹. هغه وايي: چې روحانيت زده کړئ! اګر که ستاسو تعلق د هر مذهب سره وي او چا چې روحانيت زده کړ اګر که هغه د اسلام کلمه نه وي ويلې، هغه به جهنم ته نه ځي.

۲۰. هغه د خپل ځان لپاره د الهام او معراج دعوه کوونکی دی.

اوس پوښتنه دا ده: چې آيا دا سړی مسلمان دی که کافر او زنديق دی؟ ددې سړي او د هغه د جماعت او د هغه د منونکو په اړه د قرآن او سنت او علماء امت څه حکم دی؟ دې خلکو سره ملاويدل، رشته او تعلق ساتل جائز دي کنه؟ بله دا چې د هغوی د ذبيحې څه حکم دی؟ تفصيل سره د دلايلو بيان کړی.

والسلام

سائل: سعيد احمد جلال پوری، کراچی

## الجواب :

**بسم الله الرحمن الرحيم... الحمد لله وسلام على عباده الذين اصطفى اما بعد!**

محترم ورور جناب مولانا سعيد احمد جلالپوری زيده مجده! چې د رياض احمد گوهر شاهي په اړه چې هغه د خپل جماعت نوم انجمن سرپروشان اسلام ايښې دی، دا سوال نامه مرتب کړې، زما په وينا هغوی په گوهر شاهي باندې يو کتاب ليکلی، د هغوی پدې پوره کتاب کې د پورته ذکر شوو سوالونو په اړه حوالې موجودې دي، او محترم ورور مولانا سعيد احمد صاحب د هغه دعوو خلاصه په ډيرو ښکلو الفاظو سره پدې سوالنامه کې نقل کړې ده. ددې سوال نامې په آخر کې يې دا سوال کړی، چې آيا دا سړی رياض احمد مسلمان دی که کافر او يا زنديق؟

۱: چا چې ددې سوال نامې مطالعه کړې وي. هغه خپله ويلی شي. چې دا سړی مسلمان نه. بلکې کافر، زنديق او مرتد دی.

۲: دا سړی او د هغه جماعت او د هغه د منونکو په اړه د قرآن. سنت او د اکابرين امت تصريحات دا دي: چې داسې سړی هيڅکله مسلمان کيدی نشي.

۳: د رياض احمد گوهر شاهي او د هغه د جماعت د خلکو سره تعلق ساتل او رشته وغيره کول جائز نه دي.

۴: د هغوی حلاله مرداره ده.

۵: چا چې د کتاب او سنت او د اکابرين امت تصريحات لوستي وي، د هغه لپاره په پورته ذکر شوو کارونو باندې د دليل وړاندې کولو ضرورت نشته، بلکې پدې سوال نامه کې چې څه ليکل شوي دي: هغه خپله زموږ د فتوی دليل دی.

والله اعلم بالصواب

محمد يوسف عفى الله عنه

د ۱۲ صفر ۱۴۲۱ هـ

# د جامعه علوم اسلاميه علامه بنوري ټاؤن فتوى

الجواب ومنه الصدق والصواب!

**الجواب** : واضحه دې وي چې الله پاك په رسول الله ﷺ باندې د نبوت سلسله ختمه کړې. د دين د تكميل اعلان يې کړى. هغه ذات په ټولو دينونو کې د اسلام دين زمونږ لپاره غوره کړى. په قرآن کريم کېددې تذکره پدې الفاظو سره شوې:

﴿ وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ (١)

**ترجمه** : او څوك چې د دين اسلام نه سېوا بل دين غواړي: نو د هغه نه به هيڅكله قبول نه کړى شي.

په رسول الله ﷺ باندې دين كامل او مكمل شوى، چې د هغې واضح ثبوت دا ارشاد الهي دى:

﴿ اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا ﴾ (٢)

په صورت کې موجود دى، لهذا که څوك په اسلام کې د ترميم او اضافې کولو ناپاك كوشش كوي: نو مسلمان د هغه په هيڅ صورت کې د برداشت كولو لپاره تيار نه دى.

د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته ډول ډول فتنې پيدا شوې. څوك د نبوت دعوه كوونكي وو. څوك د مهدويت دعوه كوونكي شو. څوك د مسيحيت. د داسې كسانو ډلې په دنيا کې شتون لري. چا چې ددې دعوې سره سره د يوې نوې مذهبي ډلې بنياد كېښود. په ايران کې محمد على باب او بهاء الله شيرازي د مهدي كيدو د دعوې سره سره خپل سفر شروع کړ. دې وخت کې د بهائي مذهب تابعدار د دنيا په مختلفو ځايونو کې موجود دي. په امريكا کې ماسټر فادر محمد او عاليجاه محمد هم د مهدي كيدو پاوړى د نوي مذهب د شروع كولو لپاره استعمال کړه او د نيشن آف اسلام په نوم يې د هغوى مذهب د خپل موجوده مشر لوئس فرحان په قيادت کې خپور کړ، چې د دنيا د يو ارب مسلمانانو د مسلمه دين اسلام نه قطعي مختلف مذهب دى،

---

(١) سورة آل عمران آية : ٨٥

(٢) سورة المائدة : ٣

دغه شان د پاکستان په علاقه مکران کې ذکري مذهب د سوونو کلونو نه راروان دي، هغه هم ملا محمد اټکي د مهدي کيدو د دعوې سره شروع کړ او په مزه مزه هغه د رسول الله او د خاتم النبيين القابات د خپل ځان لپاره خاص کړل

انګريز ملعون د خپل اقتدار پر مهال د مسلمانانو د ملي وحدت د ختمولو لپاره مختلفې فتنې راپورته کړې. غرض دا چې اسلام د مختلفو فتنو سره مخامخ شو، ددې ټولو څخه خطرناکه او بې حده تکليف ورکونکې د جعلي نبوت او دروغژن نبي فتنه وه، چې انګريزانو د امت مسلمه د جهاد د جذبې ختمولو. د منصب نبوت د سپکاوي او د دين مسلمات ،منل شوي او ضروري خبرې، ناقابل اعتبار جوړولو لپاره د قاديان نه د پلار او نيکه د وختو غلام نه د نبوت دعوه وکړه او امت يې په غم کې اخته کړ. اصل کې د قاديانيت فتنه هم د اسلام لپاره يو لوی خنډ شو. د ملت اسلاميه او هندوپاك مسلمانان ددې انګريزي نبي د انګريزی دين د زهر ختمولو او د هغه د بدبودار وجود د دفن کولو نه لا فارغ شوي نه وو. چې ددې ګنده فتنې د خيټې نه هم دې سره يو شان د روحانيت او تصوف په نوم د هغه تابعدارو يوه نوې فتنه پيدا کړه، چې د هغې باني رياض احمد ګوهر شاهي يو دم د پوره آبادی رانړولو اعلان وکړ. لکه په استفتاء کې د ليکل شوو عقايدو او د نورو هغه کتابونو. رسالو او پمپلټ وغيره کتلو نه معلوميږي، چې هغوی په اسلام او صاحب اسلام ﷺ پسې د سپکاوي خبرې کړي، په قرآن کريم کې تحريف. په کلمه طيبه کې بدلون. په سپوږمۍ، لمر او حجر اسود کې د خپل صورت د ښکاره کيدو دعوه کوونکی وو. د هغه وينا ده: چې د حرم امام حماد بن عبدالله د هغه تصوير په حجر اسود باندې ليدلی دی، حال دا چې د حرم د ائمه کرامو سربراه شيخ عبدالله بن سبيل په سختی سره ددې ترديد کړی دی او داسې سړي نه يې ضال مضل او په دجالين کې يو دجال شمار کړی دی، فرمايي: چې د حماد بن عبدالله په نوم يې هيڅ امام. په حرم کې موجود نه دی، دغه شان د محمد رسول الله ﷺ نه د براه راست تعليم اخستلو دعوه کوونکی وو، تر دې چې هغه د لمونځ، روژې، حج او نورو شعائر اسلام څخه انکار وکړ. ښه خو دا وه چې د نجات لپاره يې د دين، ايمان او د اسلام د ضرورت نه هم انکار کړی وی او د هغه په نږد

ظاهري شريعت، قرآن. حديث او د هغو د حكمونو هيڅ حقيقت نشته. د نورو باطلو عقايدو نه علاوه د هغه دا وينا چې نعوذ بالله سيدنا عيسى عليه السلام د امريكې په يو هوټل كې د هغه د ملاقات لپاره راغلى وو. چې د هغې په باره كې باقاعده انجمن سرفروشان په پمفلټ او رسالو كې تصويري شكل كې د ملاقات منظر ښودلى دى.

په صورت مسئوله كې داسې عقيدې لرونكي سړي او د هغې متبعين د اهل سنت والجماعت د علماؤ په نزد ضال مضل او دجالين دي او د اسلام د دايرې څخه خارج او كافر او زنادقه دي. هغوى سره ملاويدل او رشته وغيره كول حرام دي او د هغوى ذبيحه هم حرامه ده.

ځكه چې د هغه متبعين ګوهر شاهي رسول مني. باقاعده د هغه كلمه وايي. لكه چې د هغه په كتابونو كې ذكر دي او د اصول اسلام. لمونځ. روژه. زكوة او حج نه منكر دي. پدې وجه د هغوى په كافر كيدو كې هيڅ شك نشته.

﴿ قال فى الدر (و) حرم نكاح (الوثنية) قال فى الشامية تحت (قوله الوثنية) ويدخل فى عبدة الاوثان عبدة الشمس (الى قوله) وفى شرح الوجيز و كل مذهب يكفر به معتقده اهـ، قلت وشمل ذلك الدروز والنصيرية والتيامنة فلا تحل مناكحتهم ولا تؤكل ذبيحتهم لانهم ليس لهم كتاب سماوى ﴾ (١)

د هغوى د لاس ذبيحه حلاله نه ده. لكه چې د پورته عبارت نه معلومه شوه

الجواب صحيح
محمد عبد المجيد
خولجه غلام رسول
محمد عبد السلام
رئيس دار الافتاء
جامعة العلوم الاسلامية
٢٩ فروری ١٤٢١هـ

فقط والله اعلم
كتبه
الجواب صحيح
المتخصص فى الفقه الاسلامى
دار الافتاء جامعة العلوم الاسلامية
علامه بنورى تاؤن كراچى نمبر ٥
٤ جون ٢٠٠٠ء

---

(١) تنوير الابصار والدر المختار مع رد المحتار: ٤/١٣٢، طبعة الرشيدية

# د جامعه فاروقيه فتوى

الجواب حامدا ومصليا:

په استفتاء کې ذکر شوي شق نمبر، ۴، ۵، ۶، ۱۱، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۸، ۱۹ چې د کوم سړي عقيده وي. هغه د اسلام د دايرې څخه خارج، ګمراه. باغي او ګستاخ رسول دی، داسې سړی يا د هغه تابعدارو سره تعلق ساتل د هلاکت باعث دی. داسې خلکو سره رشته جوړول او همدغه شان د هغوی ذبيحه خوړل حرامه ده.

د مسلمانانو د داسې خلکو سره تعلق ساتل هلاك او د ايمان بربادي ده. مسلمانانو ته پکار دي چې ددې کسانو سره تعلق ونه ساتي. (الله پاك دي مونږ ددې فتنو څخه وساتي).

ددې سړي د کفريه عقايدو مختصر تفصيل لاندې ليکل کيږي!

۱: په کلمه کې د محمد رسول الله پر ځای خپل نوم ليکل ناجائز او حرام دي.

۲: د پوره امت پدې باندې اجماع ده چې لمونځ، روژه. حج. زکوة. عبادات. په دين کې اصل مقصود دي، ددې په اړه دا ويل چې په هغې کې روحانيت نشته دا خبره د کفر ده. (۱)

۳: الله پاك د قرآن کريم د حفاظت ذمه خپله اخستلې ده، د قرآن پاك په اړه دا ويل چې د هغې څلويښت پارې دي. د نص صريح خلاف دی او دا کفر دی.

۴: همدغه شان د انبياؤ ﷺ په شان کې ګستاخي کونکي د امت په اجماع سره کافران دي.

﴿ في الشامية: الكافر بسب نبي... فانه يقتل حدًا ﴾ (۲)

۵: ددې سړي دا وينا چې الله پاك مجبور دی. شا رګ ته د نزدې کيدو باوجود هم څه نه ويني، ﴿نعوذ بالله﴾ کفريه عقيده ده، د قطعي نصوصو څخه انکار دی، دغه شان دا ويل چې که روحانيت خوك زده کول غواړي؛ نو کلمه دي نه وايي، جهنم ته به

(۱) احسن الفتاوی: ۱/۳۱۹

(۲) ج ٤ ص ۲۳۱

نه ځي، دا کفريه عقيده ده، ځکه چې د جهنم نه د بچ کيدو لپاره کلمه ويل ضروري دي او په هغې باندې عمل هم ضروري دي، دا عقيده د قطعي نصوصو مخالف ده.

الجواب صحيح | فقط کتبه:
بنده محمد اقبال عفاالله عنه | حماد الله وحيد
۲۴ فروری ۱۴۲۱ھ | دارالافتاء جامعه فاروقيه کراچی

## د دارالعلوم کراچی فتوی

## الجواب :

نحمده ونصلی علی رسوله الکريم، امابعد!

په سوال کې د رياض احمد گوهر شاهي په باره کې پوښتنه شوې. چې شرعا ددې څه حکم دی؟ د هغوی په اړه موږ د هغوی د ليکل شوو کتابونو او رسائلو څخه د هغوی نظريې او قابل اعتراض مواد پيش کول غواړو. بيا به په هغې باندې ضروري تبصره کوو. په آخر کې به ددې خلاصه او د هغه سړي حکم ليکو!

د ليکلو په وخت چې د مذکوره سړي کوم کتابونه او رسالې مونږ سره موجود دي، د هغې نومونه لاندې ليکل شوي!

۱: مينارهٔ نور، ناشر: سرفروش پبلی کيشنز، پاکستان

۲: تحفة المجالس ..... ناشر: سرفروش پبلی کيشنز، پاکنستان

۳: تحفة المجالس (حصه سوم) ناشر: انجمن سرفروشان اسلام

۴: رهنماء طريقت واسرار حقيقت ... ناشر: سرفروش پبلی کيشنز، پاکستان

۵: روشناس ... ناشر: سرفروش پبلی کيشنز، پاکستان

۶: گوهر.... سالاله ...... ناشر: سرفروش پبلی کيشنز، پاکستان

۷: ترانهٔ صدائے سرفروش حيدر اباد ... (پندره روزه)

اوس ددې کتابونو او رسالو څخه اهم اقتباسات وګوری!

اول: د الله پاك د پيژندګلوو او معرفت لپاره اسلام ضروري نه د!

الف: د الله پاك د پيژندګلو او هغه ته د رسيدلو لپاره روحانيت زده کړی. اګر که ستاسو تعلق د هر مذهب سره وي (١)

ب: د الله پاك د پيژندګلوو او هغه ته د رسيدلو لپاره روحانيت زده کړی؛ اګر که ستاسو تعلق د هر مذهب يا فرقې سره وي. مسلمان به دا وايي: چې بغير د کلمې ويلو نه بغير څوك څنګه الله پاك ته رسيدلی شي؟ حال دا چې عملي طور داسې کيږي. عيسائي. هندو او د سکهانو ذکر. بغير د کلمې ويلو نه روا نه دی. (٢)

ج: سيدنا ابوهريره ﷛ فرمايي: چې ما ته د رسول الله ﷺ نه دوه علمه حاصل کړي، يو ما ته تاسو بيان کړ او که بل بيان کړم: نو تاسو به ما ووژنی. اصل کې هم دا دويم علم دی. چې بغير د کلمې ويلو نه پرې الله پاك ته رسيدل کيدی شي. (٣)

د: ځينې خلک د مذهب په ذريعه پاکيږي او څه خلک د يو ولي په محبت او نظر باندې هم پاکيږي. (٤)

هـ: مونږ بغير د نسل او مذهب د تفريق نه خلکو ته د الله پاك د محبت درس ورکوو. هر کله چې د اصحاب کهف سره د محبت په وجه يو سپی. حضرت قطمير جوړيدو سره جنت ته داخليدی شي: نو د چا زړونه چې د الله پاك په محبت کې الله الله کوي. هغه به ولې د الله پاك د بخښنې نه محروم وي. (٥)

و: يوه بله امريکايي ښځه شاه صاحب ته د ملاقات لپاره راغله. هغه هم د روحانيت طالبه وه، ددې امريکايي ښځې سره يوه پاکستاني جوړه هم وه. پاکستاني جوړې حکومت ته وويل: چې دا امريکايي ښځه ستاسو په لاس باندې اسلام قبلول غواړي. ددې خبرې په اوريدو سره شاه صاحب براه راست دې ښځې ته مخاطب شو او پوښتنه يې ترې وکړه، ستا څه پکار دي صرف اسلام که خدای؟ هغه ښځې ورته ښکاره وويل: خدای! شاه صاحب وويل: صحيح ده مونږ تا ته د خدای لاره ښايو..... د

---

١) فرمان ګوهر شاهی بريشت روشناس، مينارهٔ نور اور تحفة المجالس
٢) ګوهر ص ٤ سرفروش پبلی کيشنز پاکستان
٣) ګوهر ص ٤ سرفروش پبلی کيشنز پاکستان
٤) ګوهر ص ٦ سرفروش پبلی کيشنز پاکستان
٥) صداء سرفروش ١٢ ربيع الاول ١٤١٩هـ

خدای طرفته دوه لارې دي. یوه لاره د عشق او محبت لاره دہ. ،بیا شاه صاحب د دواړو لارو فرق بیان کړ. چې د اسلام په لاره کې د څه قوانینو پابندي دي په خلاف د عشق د لارې دہ» [1]

ددې اقتباس نه دا خبره واضحه شوه چې د جناب گوهر شاهي په نزد په مخصوصې طریقې سره ذکر کولو باندې د الله پاك پیژندگلوو او هغه ته رسیدل کیدی شي، تزکیه نفس او د الله پاك محبت حاصلیدی شي. د هغې د حاصلولو لپاره مسلمان کیدل هم ضروري نه دي، د اسلام نه سېوا نورو مذهبونو والا هم دا امر حاصلیدی شي، بلکې کوي یې. همدغه شان اصلي مقصود روحانیت دی. چې د هغې لپاره اسلام شرط نه دی. غیر مسلم که هندو هم وي، عیسایي یا سکھ. د روحانیت د حاصلولو نه وروسته د هغه مغفرت هم کیدی شي. د الله پاك د حاصلولو لپاره اسلام هیڅ ضروري نه دی، ددېنه بغیر ددې حاصلول ممکن دي او ددې نظریې د ثابتولو لپاره موصوف دوه دلیلونه بیان کړي، په یو حدیث کې سیدنا ابوهریرهؓ او دویم د اصحاب کهف سپی لکه چې ددې تفصیل په اقتباساتو کې ذکر شو.

دا ټولې خبرې د قرآن کریم، احادیث طیبه او اجماع امت په رڼا کې بالکل باطلې او بېکاره د گمراهی دي، ځکه چې د کفر سره یو عمل هم د الله پاك په نزد قبول نه دی، او هیڅ ذکر باعث د قرب، باعث د الله پاك د محبت او د تزکیه نفس نه دی. کفر سره د ذکر کولو نه چې کوم ظاهري فایدې په نظر راځي، هغه د ذکر او توجه ظاهري اثر دی؛ خو دا ذکر د قرب او رضا باعث هیڅکله نشي کیدی. د اعمال صالحه د قبولیت لپاره لومړی ایمان شرط دی. ایمان شرعا تر هغه پورې معتبر نه دی، تر څو پورې چې د اسلام سره سره د ټولو باطلو ادیانو او مذهبونو نه د براءت اظهار نه وي، دې باره کې د قرآن کریم څو آیتونه. د رسول اللهﷺ څو احادیث طیبه او د عقایدو او فقه څو معتبر تصریحات په طور د نمونې پیش کولی شي!

١: ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ [2]

---

[1]) گوهر ص ٧ سرفروش
[2]) سورة آل عمران آیت : ١٩ .

**ترجمه** : بېشكه دين د الله پاك په نزد صرف اسلام دی.

۲: ﴿ وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ [۱]

**ترجمه** : او څوك چې د دين اسلام نه سېوا بل دين غواړي: نو د هغه نه به هيڅكله قبول نه شي.

۳: ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ﴾ [۲]

۴: ﴿ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ﴾ [۳]

**ترجمه** : ددې كافرانو ټول نيك عملونه ضايع شوي: نو د قيامت په ورځ به مونږ د هغوی د نيكو عملونو لږ وزن هم نه قايموو.

پدې اړه څو نبوي ارشادات لاندې ليكل شوي!

۱: ﴿ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ يَهُودِيٌّ وَلَا نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ يَمُوتُ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَّا كَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴾ [۴]

**ترجمه** : قسم په هغه ذات چې د محمد ﷺ نفس د هغه په ولكه كې دی. ددې امت نه چې چا هم زما په اړه واوريدل. كه هغه يهودي وي او كه نصراني. بيا پداسې حال كې مړ شو. چې زما په راوړل شوي دين بې ايمان نه وي راوړی: نو هغه به د اور والا نه وي.

۲: ﴿ وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم في عمه ابي طالب وهو كان يحوطه وينصره ولكن لم يومن به ومات على دين عبدالمطلب، أَهْوَنُ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا أَبُو طَالِبٍ وَهُوَ مُنْتَعِلٌ بِنَعْلَيْنِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ ﴾ [۵]

**ترجمه** : ابو طالب ته به د ټولو نه سپك عذاب وركول كيږي. هغه دا چې هغه به پيزار اچولي وي. چې په هغې سره به يې دماغ خوټكيږي.

---

[۱] سورة آل عمران آيت : ۸۵

[۲] سورة آل عمران آيت : ۲۲

[۳] سورة آل عمران : ۱۰۵

[۴] مسلم : ۱۵۳، احمد : ۲/۳۵۰ مشكوة كتاب الايمان ۱۲

[۵] مسلم كتاب الايمان

د رسول اللهﷺ تره وګوري: چا چې به د هغوی سره انتهايي د شفقت او همدردی معامله کوله او د هغوی حمايت به يې کولو؛ خو د ايمان د نه کيدو له امله د جهنم نه بچ نه شو. معلومه شوه چې د ايمان نه بغير هيڅ عمل هم د جهنم نه بچ کونکی او خلاصی ورکونکی نشي کيدی.

۳: ﴿ وقال عليه الصلاة والسلام ... ان المومن اذا اذنب ذنبا كانت نكتة سوداء في قلبه، فان تاب ونزع واستغفر صقل منها، وان زاد زادت حتى يغلف بها قلبه الخ (رواه الترمذيؒ) ﴾ (١)

**ترجمه** : مؤمن چې کله يوه ګناه کوي؛ نو د هغه په زړه کې يو تور داغ ولګي. ددېنه وروسته که هغه توبه کوي. د ګناه نه منع شي او استغفار کوي: نو هغه داغ صفا شي: خو که هغه بار بار د ګناه ارتکاب کوي: نو د هغه پوره زړه تور شي.

ددې حديث شريف نه خپله اندازه ولګوی: چې د معصيت په ارتکاب سره د مؤمن په زړه باندې څه اثر پريوځي؟ نو کفر چې اکبر الکبائر او تور والی تور والی دی، تر څو پورې چې هغه په زړه باندې سور وي: نو په خاص ذکر سره هغه تور والی څنګه لرې کيدی شي؟ لهذا اول ايمان راوړل شرط دي. د هغې نه وروسته تزکيه نفس کيدی شي. د کفر په حالت کې هيڅکله نشي کيدی او هغه ته هيڅکله روحانيت يعنې د الله پاك قرب او ربنتينې محبت نشي حاصليدی.

په تفسير روح المعاني کې دي:

﴿ قال عليٌّ رضي الله تعالى عنه في اخر خطبةٍ له : أيها الناس دينكم دينكم فإن السيئة فيه خير من الحسنة في غيره إن السيئة فيه تغفر وإن الحسنة في غيره لا تقبل ﴾ (٢)

**ترجمه** : سيدنا عليؓ په خپلو آخري خطبو کې وفرمايل: اې خلکو! خپل دين کلک ونيسی! څکه چې پديکې ګناه کول په غير دين کې د نيکی نه غوره دي، څکه چې په دين اسلام کې ګناه معاف کيږي او په غير دين اسلام کې نيکي هم نه قبليږي.

هر کله چې د کفر سره نيکي نه قبليږي؛ نو پدې نيکی سره زړه څنګه روښانه

---

١) مسلم : ١٥٣، واحمد : ٢/٣٥٠ الترغيب والترهيب ٩٢١٤

٢) روح المعانی : ٣/١٠٩

کیدی شي؟ د الله پاك حقیقي معرفت او هغه پورې حقیقي رسیدل څنګه حاصلیدی شي؟ او د ټولو نه لویه خبره دا ده چې هغه ته به بخښنه څنګه کولی شي؟

په شرح عقیده طحاویه کې دي:

﴿ وإذا زال تصديق القلب لم ينفع بقية الأخر (الاجزاء) فإن تصديق القلب شرط في اعتبارها وكونهانافعة ﴾ [1]

**ترجمه** : کله چې د زړه تصدیق (ایمان) پاتې نشي؛ نو باقي اجزاء (یعني اعمال) په کار نه راځي، ځکه چې د زړه تصدیق (ایمان) د باقي اعمالو د معتبر او مفید کیدو لپاره شرط دی.

د شرح عقاید په شرح نبراس کې دي:

﴿ والله تعالى لايغفران يشرك به (والمراد من الشرك الكفر) باجماع المسلمين ﴾ [2]

**ترجمه**: پدې خبره باندې دمسلمانانو اجماع ده، چې مشرك (كافر) ته به بخښنه نه کیږي.

د ځینو صوفیاء کرامو له طرفه دا خبره مشهوره ده: چې د هغوی په نزد به په آخرت کې د کفارو خلاصی هم وي. دا قول شیخ ابن العربي ته منسوب شوی دی: خو صاحب د نبراس فرمایي: چې جمهورو علماء کرامو ددې وجې نه په هغوی باندې سخت نکیر کړی دی؛ خو صاحب د نبراس فرمایي: چې د شیخ په شان کې داسې لعن طعن نه دي کول پکار؛ خو پدې عقیده کې هغوی سره اتفاق هم نه دي کول پکار. ځکه چې دا عقیده د امت د اجماع نه خلاف ده. بالکل شاذ قول دی. هغه فرمایي:

﴿ والجمهور ينكرون ذلك منه اشد الانكار ويكفرونه وعليك بالكف عنه عن طعنته والاعتقاد بخلود عذاب الكفار على طبق الاجماع ﴾ [3]

ګوهر شاهي صاحب، د خپلې دعوې د ثابتولو لپاره عموما دوه دلیله ذکر کوي:

الف : د اصحاب کهف سپی. ب : حدیث د ابو هریرة رضي الله عنه.

---

[1]) شرح عقيدة الطحاوية : ٣٤١

[2]) النبراس ص : ٣٦٠

[3]) النبراس ص : ٣٦١

۱: د لومړي دليل په باره کې عرض دا دی: چې دا دليل صرف په جهالت او ګمراهی باندې مبني دی. چې د هغې وجوهات لاندې ليکل شوي:

اول خو د اصحاب کهف د سپي جنت ته تلل د صحيح او معتبرو روايتونو څخه ثابت نه دي، لکه صاحب د روح المعاني ددې تصريح فرمايلې: دويم دا چې که بالفرض دا روايتونه صحيح او معتبر هم ومنل شي: نو هم د هغه په جنت ته تلو باندې د يو کافر جنت ته تلل قياس کول بالکل غلط او باطل دي. ځکه چې د اصحاب کهف سپی د غير عاقل کيدو له امله د ديني احکامو مکلف نه دی. کفار او مشرکين او نور انسانان د عقلمند کيدو له امله د ديني احکامو مکلف دي. لهذا د ايمان د راوړلو د وجې او په حالت د کفر کې د مړ کيدو په صورت کې همېشه همېشه لپاره په دوزخ کې اوسيږي. دريم دا چې د اصحاب کهف په سپي باندې د انسان قياس کول يدې وجه صحيح نه دي. چې صاحب د روح المعاني دې قياس ته د اهل تشيع قياس ويلی. ځکه د هغوی دا عقيده ده: چې د اصحاب کهف د سپي نجات کيدی شي: نو د کوم سړي نوم چې کلب علی (د علي سپی) کېښودل شي: نو د هغه نجات به په طريقه اولی وي، اهل تشيع خپلو بچو باندې دا نومونه ږدي. پس صاحب روح المعاني يعنې علامه آلوسي رحمه الله فرمايي:

وجاء في شأن كلبهم أنه يدخل الجنة يوم القيامة. فعن خالد ابن معدان ليس في الجنة من الدواب إلا كلب أصحاب الكهف وحمار بلعم، وليس فيما ذكر خبر يعول عليه فيما أعلم، وقد اشتهر القول بدخول هذا الكلب الجنة حتى أن بعض الشيعة يسمون أبناءهم بكلب على ويؤمل من سمى بذلك النجاة بالقياس الأولوى على ماذكر وينشد:

فتية الكهف نجا كلبهم: كيف لاينجوا غدا كلب على[1]

**ترجمه** : د اصحاب کهف د سپي په اړه دا خبره نقل ده. چې هغه به د قيامت په ورځ جنت ته ځي، د خالد بن معدان نه روايت دی، چې جنت ته به په حيواناتو کې صرف د اصحاب کهف سپی او د بلعم خر ځي؛ خو زما د علم مطابق پديکې يو روايت هم قابل

[1]) روح المعاني: ۱۵/۲۲۶

اعتماد نه دی، دا خبره مشهوره ده: چې دا سپی به هم جنت ته ځي. تر دې چې ځینې روافض د خپلو ماشومانو نومونه کلب علي ږدي او پدې باندې امید ساتي، چې پدې سره د نامداره شوي سړي خلاصی به کیږي. شاعر وایي:

**ترجمه** : د اصحاب کهف سپي خلاصی بیا موندلو؛ نو سبا (یعني د قیامت په ورځ) کلب علي، به څنګه خلاصی بیا نه مومي؟

۲: د سیدنا ابوهریره ﷛ هغه روایت چې موصوف ترې استدلال کوي. د هغې الفاظ دا دي:

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم وِعَاءَيْنِ فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ، وَأَمَّا الآخَرُ فَلَوْ بَثَثْتُهُ قُطِعَ هَذَا الْبُلْعُومُ ......يعني مجرى الطعام ﴾[1]

**ترجمه** : ما د رسول الله ﷺ نه دوه قسمه علمونه حاصل کړي دي. يو قسم خو ما ستاسو وړاندې ظاهر کړ او دویم که ظاهر کړم؛ نو زما مرۍ به پرې کړی شي.

کوم علم چې سیدنا ابوهریره ﷛ څخه ظاهر کړي، د هغې په تعین او مصداق کې د شراح حدیث مختلفې رایې او اقوال دي، مثلاً:

۱: ددېنه مراد علم باطن دی.

۲: ددېنه مراد علم توحید دی.

۳: ددېنه مراد د منافقانو نومونه دي.

۴: ددېنه مراد د بنو امیه ظالمان حکمرانان دي.

۵: ددېنه مراد مختلفې فتنې دي. [2]

لهذا د موصوف ددې علم په باره کې په تعیین سره فیصله کول چې ددېنه مراد دا دی، چې د کلمې ویلو نه بغیر هم الله پاك ته رسیدل کیدی شي، صرف د خپل طرف نه ایجاد دی، چې بالکل بې بنیاده او جهالت دی.

---

[1]) البخاری : ۱۲۰مشکوة شریف کتاب العلم ۳۷

[2]) وګوری : طیبی ۱/۴۱۶، مرقاة : ۱/۵۲۶ وغیره

## دویم: د شریعت او طریقت بیل بیل کیدل

الف ٠ اصل قرآن کریم کوم چې په نورو الفاظو کې سیدنا جبرئیل امین علیه السلام راوړی، هغه د رسول الله ﷺ په سینه مبارکه نازل شو، چې وروسته سینه په سینه، سلسله په سلسله مستحقو خلکو ته ملاویده. د هغه خلکو کرامتونه او فیض ددې باطن قرآن کریم څخه دی، دا د ظاهري قرآن کریم عکس دی. چې د کاغذ په ذریعه محفوظ شو، د علماء کرامو په برخه کې راغلو، بیا علماء کرامو په ظاهر سره ظاهري ډولي کړ او اولیاء کرامو په باطن سره باطن پاك کړ. (١)

ب: یوه وسیله قرآن کریم دی، کوم علم چې د ظاهري قالب او نفس برابرولو په اړه دی، دا د علماء کرامو په برخه کې راغلو او د علماء کرامو په ژبه خلکو ته هدایت وشو. دېته مقام د شنید او شریعت وایي.

دویمه وسیله د رسول الله ﷺ صحبت او محبت دی، ځکه چې د محبت تعلق د زړه سره دی، د زړه نه زړه ته لاره وي. د رسول الله ﷺ د زړه نور. د هغه په زړه کې داخل شي او هغوی صرف د نور نه هدایت بیا موندلو. ځکه چې د زړه تعلق د باطن سره دی او هغه د باطني رازونو نه خبر شوی، دېته طریقت وایي او ددې مقام لیدل دي، دا خلک اولیاء الله وبلل شو. (٢)

ج: د ظاهري عبادت تعلق د شریعت سره دی، هر وخت تلاوت کونکي یا نفل کوونکي، تسبیح اړونکي یا ذکر لساني کونکي حافظ. عالم او قاري پدې مقام شریعت کې وي، هغوی د جنت او حورو طالبان دي، د هغوی نفس نه مړ شو او نه پاك شو؛ خو برابر شو. اهـ(٣)

د جناب ګوهر شاهي د مذکوره کتابونو د پورته اقتباسونو څخه دا خبره بالکل واضحه ده، چې د هغوی په نزد شریعت جدا شی دی او طریقت جدا شی دی، ددې په

---

١) میناره نور: ص ٣٥، سرفروش پبلی کیشنز پاکستان
٢) روښناس: ص ١٦ سرفروش
٣) میناره نور: ص ٥ سرفروش

بنياد هغوی د قرآن کريم هم دوه قسمونه کړه، يو ظاهري کوم چې په کتابي شکل کې په مسلمانانو کې موجود دی او دويم باطني کوم چې د رسول الله ﷺ د زمانې نه سينه په سينه سلسله په سلسله اولياء کرامو ته منتقل شو.

دا هغه سخته ګمراهي او بې ديني ده. چې په هغې کې د ډيرې مودې نه په طريقت کې قدم اېښودونکي، جاهل او دکاندار خلک اخته شوي او راروان دي. هغوی دا نظريه جوړه کړې ده، چې شريعت بيل شی دی او طريقت بيل شی دی. کومې خبرې چې په شريعت کې حرامي دي، هغه په طريقت کې حلالي دي او ددې په بنياد هغوی ډير محرمات او منکرات، د کبائرو ارتکاب کول، د خپل ځان او د متعلقين لپاره جائز ګڼي. د داسې خلکو نه مسلمانانو ته هميشه سخت نقصان رسيدلی دی. د ګوهر شاهي د عباراتو څخه هم ښکاره ده چې د هغې په باطليدو او د قرآن او سنت د تصريحات بالکل خلاف کيدو کې هيڅ شک نشته. په يو حديث کې د قرآن کريم په باره کې راغلي: چې ﴿له ظهر وباطن﴾ چې د قرآن کريم يو ظاهر دی او يو باطن. پدې سره دې چا ته دا شك بالکل نه وي، چې پدې حديث سره د قرآن کريم تقسيم ثابتيږي، ځکه چې ددې دا مطلب نه دی. بلکې دا هم د يو قرآن په اعتبار سره د مطالبو او مفاهيمو درجه بندي ده. چې د قرآن کريم د ځينو آيتونو مطلب دومره واضح وي. چې په هغې باندې د معمولي فهم او عقل والا انسان هم پوهيږي او د ځينو مطلبونه پټ او د اشاراتو په شکل کې وي. په کوم باندې چې صرف متبحر او عاملين علماء پوهيږي، عام خلک د هغې د فهم نه قاصر دي. [1]

غرض دا چې شريعت او طريقت د حقيقت په اعتبار سره يو دی، طريقت په شريعت باندې د عمل کولو د طريقې نوم دی. يعنې هغه طريقه چې د هغې په ذريعه انسان په کامل شريعت باندې عمل وکړی شي؛ خو کله طريقت د شريعت يوې برخې ته هم وايي، چې شريعت عقايد، عبادات، معاملات، معاشرت او د اخلاقياتو د مجموعې نوم دی او د طريقت د شريعت د پنځمې برخې اخلاقياتو د خپلولو او

[1]) اوګورئ: طيبي شرح مشکاة ٤/٢٤٠، ومرقاة ٤/٦٤٢:

حاصلولو نوم دی، د پوره شريعت سرچينه قرآن او سنت دی، چې په هغې کې د طريقت تعليم هم دی او نور حکمونه هم پکې ډير دي.

خلاصه دا چې د قرآن کريم دوه قسمونه کول. شريعت او طريقت جدا جدا کول ښکاره ګمراهي ده.

په شرح عقيده طحاويه کې دي: ﴿ بل كلام الله محفوظ في الصدور، مقروء بالالسن، مكتوبٌ في المصاحف كما قال ابو حنيفة في الفقه الاكبر وهو في هذه المواضع كلها حقيقة ﴾[1]

**ترجمه** : کلام الله په سينو کې محفوظ دی. په ژبو سره لوستل کيږي. په صحيفو کې ليکل شوی دی، لکه چې په فقه اکبر کې امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي: او کلام الله پدې ټولو مقاماتو کې حقيقت دی.

ځومره صفا او واضحه خبره يې کړې ده: چې قرآن کريم هر چيرته وي. هغه حقيقي قرآن دی، د اصل او عکس په اعتبار سره هيڅ فرق نشته.

په شرح مقاصد کې دي: ﴿ والاصح انها اسم له لا من حيث تعين المحل فيكون واحدا بالنوع ويكون مايقرء القارئ نفسه لا مثله ﴾[2]

**ترجمه** : يعني قرآن کريم يو دی، هغه چې چيرته هم وي. قاري چې څه هم لولي هغه عين قرآن دی مثل د قرآن نه دی.

## دريم: د ولي کيدو لپاره ديدار الهي شرط کيدل:

ولي هغه ته وايي چا چې د رب ديدار کړی وي، يا يې د رب سره کلام کړی وي. ددينه بغير د ولايت دعوه دروغ ده.[3]

جناب ګوهر شاهی صاحب د ولي کيدو لپاره د الله پاك ديدار او د هغه سره کلام کول شرط ګرځولي. دا هم سراسر بې بنياده. د قرآن او سنت د واضحو تصريحاتو خلاف ده. الله پاك د ولي تعريف خپله کوي:

---

[1]) شرح عقيده الطحاويه : ص ١٧٩

[2]) شرح مقاصد : ٣/١١٤، طبعة اشاعة الاسلام بشاور

[3]) رهنماء طريقت : ص ١٩ سرفروش

﴿ اَلَاۤ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴾ (١)

**ترجمه** :خبردار! یقینا د الله پاك په اولیاؤ باندې به نه ویره وي او نه به هغوی غمجن وي، هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او هغوی متقیان وو.

پدې آیت کې الله پاك د ولي تعریف فرمایلی: ولي هغه څوک دی چې مؤمن وي او پرهیزګار وي. الله پاك د ولي جوړیدو لپاره د خپل دیدار یا کلام کولو هیڅ شرط نه دی لګولی. لهذا د موصوف د ولي کیدو لپاره د مذکوره شرط لګول سراسر جهل دی.

رسول اللهﷺ د ولي د پیژندګلوو علامه ښودلې او وایي. ﴿ الذين اذا رؤا ذكر الله ﴾ یعنې دا هغه خلک دي چې د هغوی په لیدو باندې الله پاك را یاد شي. (٢)

## څلورم: د رسول اللهﷺ د زیارت نه بغیر د امتی کیدو دعوه غلطه ده

. **الف** : ترڅو پورې چې رسول اللهﷺ چا ته زیارت ورنصیب نکړي، د هغه د امتي کیدو دعوه نشي کولی. اهـ (٣)

ب : ﴿ من رأني فقد رأني ﴾ (٤) دا حدیث رسول اللهﷺ صحابه کرامو ؓ ته وویل: ځکه چې هغوی په خپله په کتو سره مشرف وو، هغوی چې کله هم په خوب کې د رسول اللهﷺ دیدار کړی دی، رښتیا یې کړی دی او کومو خلکو ته چې دا شرف نه دی حاصل؛ نو هغوی به په خوب کې څنګه تمیز وکړی شي؟

شریعت خاص کر د طریقت والو ته داسې غمیزې ډیرې پیښیږي، پدې وجه د رسول اللهﷺ د زیارت د صحیح پیژندګلو راز ښکاره کیږي، په خوب، یا مراقبې او کشف کې چې کله د رسول اللهﷺ مجلس ته ورسیږي؛ نو د دیوالونو نه به دومره نور وریږي چې سترګې به توري شي. د دیدار نه وروسته به د هغه زړه د دنیا نه موړ شي. اهـ (٥)

---

(١) سورة یونس آیت: ٦٢، ٦٣

(٢) ابن ماجة

(٣) میناره نور : ٣٤

(٤) البخاری برقم : ٦٩٩٦

(٥) میناره نور ص : ٤٠

د موصوف د مذکوره عبارت څخه دا خبره ثابتيږي، چې د صحابه کرامو ﷺ نه وروسته د راتلونکو مسلمانانو د رسول الله ﷺ د امتي کيدو بنياد د هغوی په زيارت باندې دی او هغه هم د يو خاص علامې سره. چې د موصوف په راغلي خط کې ذکر دی. دا هم د قرآن او سنت د تصريحاتو بالکل خلاف او ښکاره ګمراهي ده. ځکه چې د قرآن او سنت نه د رسول الله ﷺ د امت دوه قسمه ثابت دي:

يو امت دعوت، دويم امت اجابت:

امت دعوت هغه خلکو ته ويل کيږي. د چا طرفته چې رسول الله ﷺ رالیږل شوی او هغوی ته يې د اسلام دعوت ورکړی او هغوی ته يې د ايمان راوړلو تلقين کړی. پدې امت کې د رسول الله ﷺ د زمانې نه واخله تر قيامته پورې راتلونکي ټول انسانان داخل دي او ټول کافران او مشرکين پکې شامل دي او امت اجابت هغه خلکو ته ويل کيږي چا چې ايمان راوړی او اسلام يې قبول کړی وي. کوم سړی چې هم کلمه وايي او د زړه نه د رسول الله ﷺ د پيغمبر کيدو تصديق کوي. هغه مسلمان دی او د رسول الله ﷺ امتي دی، اګر که ټول ژوند. په بيداری يا خوب يا مراقبه يا مکاشفه کې يې يو ځل هم د رسول الله ﷺ زيارت نه وي کړی.

د رسول الله ﷺ د مذکوره وينا مطلب دا دی: کوم سړی چې په خوب کې د رسول الله ﷺ زيارت وکړي او د هغه زړه دا شاهدي ورکوي چې دا رسول الله ﷺ دی، يا د نورو آثارو او قرائنو څخه ورته ددې علم وشي بس پوه شه چې هغه د رسول الله ﷺ زيارت وکړ، ددې لپاره د هغه علامې موندل کيدل چې د هغې ذکر موصوف په خپل عبارت کې کړی دی ضروري نه دی.

خو ياد ساتی! چې رسول الله ﷺ په خوب کې چاته د څه کولو حکم ورکړي. يا هغه د څه خبرې نه منع کړي؛ نو د خوب دا اشاره بالاجماع حجت نه ده؛ خو که د رسول الله ﷺ دا ارشاد د څه حکم شرعي سره متصادم او د هغې خلاف نه وي؛ نو د ادب له امله که هغه پوره کړی شي؛ نو غوره خبره ده.(١)

(١) اوګورئ: تكملة فتح الملهم: ٤/٤٥٢

**پنځم: اسم ذاتي د رسول الله ﷺ د امت نه علاوه چا ته هم نه دی ورکول شوی!**

دا اسم ذات الله پاك د رسول الله ﷺ د امتيانو نه علاوه يو نبي ته هم نه دی ورکړی. همدا وجه وه چې د بني اسرائيلو نبي د الله پاك ديدار ونکړی شو او د رسول الله ﷺ امتيانو د الله پاك ديدار وکړ اهـ[1]

دا دعوه هم بې دليله ده، ځکه چې عارف بالله شيخ عبدالعزيز دباغ رحمه الله فرمايي: چې د ټولو نه لومړی اسم ذاتي (الله) زمونږ نيکه سيدنا آدم عليه السلام وضع کړی دی!

﴿قال العارف بالله الشيخ عبدالعزيز دباغ: اول من وضع اسم الجلالة (الله) ابونا ادم على نبينا وعليه الصلاة والسلام﴾[2]

مخکې امتونو ته د الله پاك د اسم ذاتي د نه ملاويدو او د رسول الله ﷺ امت ته د اسم ذات د ورکول کيدو په بنياد دا ويل: چې د بني اسرائيلو انبياؤ عليهم السلام د الله پاك ديدار نصيب شو او د رسول الله ﷺ امتيان د الله پاك ديدار کوي، دا هم بهر حال صحيح خبره نه ده، يو خو پدې وجه چې پديکې د رسول الله ﷺ د امتي په نبي باندې فوقيت ثابتيږي، حال دا چې يو مسلمان هم د الله پاك د يو نبي نه افضل کيدی نشي. بله دا چې د الله پاك د ذات اقدس رؤيت پدې دنيا کې نشي کيدی؛ خو د معراج په شپه د يو قول مطابق رسول الله ﷺ ته د الله پاك زيارت شوی وو؛ خو د عامو خلکو په زيارت نه کيدو باندې د خلکو اجماع ده، پدې وجه د بني اسرائيلو نبي (غالبا ددېنه مراد د ګوهر شاهي سيدنا موسى عليه السلام دی) ته الله پاك وفرمايل: ﴿لن ترانی﴾ يعنې ته ما هيڅکله نشې ليدلی؛ خو په خوب يا حالت کشف يا په مراقبه کې چې د الله پاك کوم زيارت کيږي، هغه د ذات نه دی. بلکې بعض تجليات وي، چې په څه شکل کې متشکل شي او مخې ته راشي؛ خو ددې په بنياد دا ګڼل چې د الله پاك د ذات زيارت کيږي صحيح نه دی او د الله پاك د تجلياتو په صورت زيارت کيدل څنګه چې د رسول الله ﷺ د امت لپاره دي، د مخکې امتونو لپاره هم وو، د تخصيص هيڅ دليل نشته،

---

[1]) تحفة المجالس : ٣/١٣

[2]) فتح الله ص : ٢١٤

په شرح عقيدة الطحاويه کې دي:

﴿ واتفقت الامة على انه لا يراه احد في الدنيا بعينه ولم يتنازعوا في ذلك الا في نبينا صلى الله عليه وسلم خاصة ﴾ (١)

**ترجمه** : پدې باندې د امت اتفاق دی: چې پدې دنيا کې الله پاك څوك هم په خپلو سترګو نشي ليدی. اختلاف پدې سلسله کې صرف د رسول الله ﷺ په اړه دی.

او په شرح مقاصد کې دي:

﴿ وماقال به بعض السلف من وقوع الرؤية بالبصر ليلة المعراج فالجمهور على خلافه..اهـ ﴾

**ترجمه** : ځينې سلفو چې کومه دا خبره کړې: چې رسول الله (ﷺ) د معراج په شپه الله پاك په خپلو سترګو ليدلی وو. جمهور علماء کرام ددې رائې سره اختلاف لري.

## د بحث نتيجه

په تيرو صفحو کې د ګوهر شاهي د کتابونو او رسالو څخه د هغوی ځو لويې لويې نظريې او په هغې باندې د قرآن او سنت په رڼا کې د ضرورت په اندازه تبصره وشوه، چې په هغې کې د کافر نجات، تعدد قرآن، په شريعت او طريقت کې د تباين په شان نظريې انتهائي خطرناکې دي، چې د هغې په ګمراه کيدو کې د چا شك او شبهه هم نشته. لهذا ددې فاسد او ګمراه کونکو نظرياتو او عقايدو په رڼا کې رياض احمد ګوهر شاهي انتهائي لوی ګمراه او بدعتي دی. د هغه د بيعت، مجالس، تقرير او تحرير نه بچ کيدل واجب او ضروري دی، نورو خلك ترې هم ساتل پکار دي.

والله تعالى اعلم وعلمه اتم واحكم.

عصمت الله عصمه الله دار الافتاء دار العلوم کراچي نمبر ١٤..... ٤ ستمبر ٩ / ١٩ء

الجواب صحيح
احقر محمد تقى عثمانى عفى عنه

الجواب صحيح
بنده عبدالرؤف سكهروى

الجواب صحيح
محمد عبد المنان عفى عنه

الجواب صحيح
احقر محمود اشرف

الجواب صحيح
اصغر على ربانى

---

(١) شرح عقيدة الطحاوية : ١٩٦

# [د بريلويانو د فکر عالمانو فتاوې]

## د دارالعلوم امجديه کراچۍ فتوی

**باسمه تعالی:**

**الجواب** : د انجمن سرفروشان اسلام د بنسټګر رياض احمد ګوهر شاهي چې کومې ويناوې او عملونه سوال کوونکي په سوال کې ذکر کړي: چې هغه مو د اصل کتاب روحاني سفر سره يو ځای کړه او بيا مو وکتل: نو دا ثابته شوه چې دا ټولې خبرې هغه په روحاني سفر نومي کتاب کې ليکلي دي، ددېنه معلومه شوه چې په هغه باندې د قاديانيت وهابيت اثر دی او ددې اثر د لرې کولو ذکر هغه چيرته ندی کړی او عملي اعتبار سره چرسي، بې نمازه او بدکردار، ښځو سره تعلق ساتونکی. فاسق او فاجر دی، ددې فسق او فجور نه د توبې ذکر هغه په خپل کتاب کې نه دی کړی. بلکې د هغې د بيانولو سره يې د زياتې ګناه ارتکاب کړی او د دين د مشهورو بزرګانو او سيدنا خضر عليه السلام چې د هغوی د نبوت قول راجح دی. په شان کې ګستاخي او په هغوی باندې د قتل الزام لګولو سره يې د خپل باطني خبث اظهار کړی. په بخاري شريف کې حديث دی: رسول الله ﷺ وفرمايل: چې الله پاک فرمايي: ﴿من عادى لى وليا فقد اذنته بالحرب﴾[1] يعنې چا چې زما د ولي سره دشمني وکړه، ببشکه زه هغه سره د جنګ اعلان کوم. لهذا دا سړی د اولياء کرامو په شان کې ګستاخي کوونکی دی د الله پاک سره جنګ کوي، سيدنا خضر عليه السلام چې څه کړي دي، د هغې په اړه الله پاک په قرآن کريم کې فرمايي: ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِيْ﴾ يعنې هغه کارونه ما په خپل امر باندې نه دي کړي، بيا هغوی ته قاتل ويل انتهائي ګمراهي او جهالت دی، ددې په کتو سره معلوميږي چې ددې مصنف رياض احمد ګوهر شاهي جاهل، سخت ګمراه او د يوې نوې فرقې جوړولو سره مسلمانان ګمراه کوي، مسلمانانو ته پکار دي چې د هغه نه لرې واوسيږي، ځکه چې د هغه په صحبت کې د ناستې نه احتراز کول پکار دي. په قرآن

---

[1] اخرجه البخاري : ٦٥٠٢، وابن حبان : ٣٤٧

کريم کې دي: ﴿ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴾ يعنې د نصيحت راتلو نه وروسته د ظالمانو خلکو سره مه کينه او په صحيح بخاري کې دي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿ اياکم واياهم لا يفتنوکم ولا يضلونکم ﴾ د هغوی نه ځان وساتی او هغوی د ځان نه لرې ساتی، هغوی تاسو په فتنه کې وانه چوي او ګمراه مو نکړي.

وقار الدين غفر له ٢٧ شعبان المعظم ١٤١٠هـ ٢٥ مارچ ١٩٩٠ء

الجواب صحيح الجواب صحيح

والمجيب مصيب قاری عابد حسين

سيد فراست علی شاه غفر له يکم محرم الحرام ١٤١١هـ

مفتی جامعه رضويه کنگن والا جی ٹی رود گوجرانواله

لومړی محرم الحرام ١٤١١هـ

٢٥ جولائی ١٩٩٠ء

## د دار العلوم انجمن تعليم الاسلام جهلم فتوی

**الجواب**: د انجمن سرفروشان اسلام بنستګر او د روحاني سفر ليکوال رياض احمد ګوهر شاهي په خپل ليکل شوي کتاب کې د خپلو ويناوو او عملونو په اړه واضحه کړې، کله چې هغه د روحاني سفر کتاب په آئينه کې وکتل شي؛ نو ثابتيږي چې پدې سړي د قاديانانو او وهابيانو اثر دی، عملي ډول هم هغه خپله چرسي، بې نمازه او د درود شريف منکر دی. د بدکردارو ښځو سره يې اړيکه درلوده. هغه په خپل کتاب کې فخريه طور دا ويلي: چې لمونځ کول ضروري نه دي، د درود شريف هيڅ اهميت نشته. د کتاب نه د نورو غير اسلامي کارونو د ارتکاب ثبوت موجود دی، چې صفا ترې معلوميږي چې هغه په فسق او فجور کې اخته دي او قادياني غير مسلم منل شوی، لهذا د قاديانانو د تاثير والا خلک به خامخا غير مسلم وي، د سيدنا خضر عليه السلام په شان کې د قتل الزام لګول د اولياء کرامو خلاف په بهتان تړلو سره د خپل باطني خباثت بېشماره ثبوت هغه خپله کړی دی، همدغه شان د روحاني سفر په کتاب کې شيطاني دعوې. د الله پاك او د رسول الله ﷺ د حکمونو ښکاره خلاف

ورزي ده، پدې وجه داسې بې دينه، بې نمازه بلکې بې اسلامه سړي چې د غلام احمد قادياني په شان د دروغو دعوې کوي او د غير محرمو ښځو سره د عشق معشوقۍ په تعلقاتو زياتولو کې خوشحالي کوي، بيا علی الاعلان د هغې اظهار کوي. هغه د اسلام د دايرې څخه خارج دی. بلکې مسلمانانو لره هغه سره قطع تعلق کول پکار دي، که داسې غير اسلامي افعال او مکر و فريب کونکي ته آزادي ورکول شي: نو اکثر کلمه ګو مسلمانان به ګمراه کړي.

لهذا مسلمانان دي د هغوی د شر، غير اسلامي او ګمراه کن عقايدو څخه ځانونه خبر کړي، چې د رياض احمد ګوهر شاهي نومي سړي مسلك اختياروِل. د هغه د دوکې په دام کې راتلل، د هغه په محفلونو کې کښيناستل نه صرف ناجائز بلکې ډير لوی جرم دی، پدې وجه هر مسلمان لره د مذکوره شخص نه لرې اوسيدل پکار دي تر څو خپل ايمان په ښه توګه وساتي.

الراقم سيد فدا حسين راجوروی عفی عنه

بانی و مهتمم دار العلوم انجمن تعليم الاسلام (رجسترد) شمالی محله، جهلم

## د جامعه رضويه مظهر الاسلام فيصل آباد فتوی

الجواب وهو موفق للصواب

رسول اللهﷺ فرمايي: ﴿ كل مسكر ومفتر حرام ﴾ هر نشه ورکونکی او په دماغو کې نقصان راوستونکی شی حرام دی.

هغه صورت چې د هغې په باره کې پوښتنه شوې: چې کله د سوال کوونکي صدق ومنل شي: نو د رياض احمد ګوهر شاهي د کتاب روحاني ځينې عبارتونه مو ولوستل، چې سراسر د اسلام خلاف دي. خاص کر هر نشه ورکونکی شی رسول اللهﷺ حرام کړی دی او رياض احمد ګوهر شاهي نومي سړی هغې ته د عبادت درجه ورکوي. (معاذالله) دا ښکاره د مصطفیﷺ د فرمان نه انکار دی او په سينماګانو او تهيټرو کې وخت تيروونکی، د غير محرمو ښځو سره په يواځې والي کې شپې تيرونکی، د حرامو ارتکاب کونکی (معاذالله) هغه څنګه پير کيدی شي!

د پیری لپاره څلور شرطونه دي. د بیعت نه مخکې د دې لحاظ فرض دی!

۱: سني صحیح العقیده وي.

۲: علم ولري، چې د ضروریاتو مسئلې د کتابونو څخه را وویستل شي.

۳: فاسق مطلق نه وي.

۴: سلسله یې د رسول اللهﷺ پورې متصل وي ځکه چې: فارسي شعر دی:

ای بسا ابلیس آدم روئی هست — پس بهر دستے بناید داد دست

د همدې کتاب روحاني سفر په صفحه نمبر ۷ باندې دا عبارت لیکل شوی دی چې:
د سوسائټیانو د وجې نه راباندې څه د مرزائیت او څه د وهابیت اثر وشو.
د کوم صورت په باره کې چې پوښتنه شوې: د هغې نه پس توبه نه کول ګمراهي ده. اسلام او مسلمانانو ته دوکه ورکول دي، د کوم صورت په باره کې چې پوښتنه شوې وي، په هغې کې مذکوره سړی د پیری قابل نه دی. مسلمانانو ته پکار دي. چې د هغه بیعت مات کړي او د یو نیک صالح عالم چې باعمله وي بیعت وکړي.

والله تعالی ورسوله الاعلی اعلم.

ابوالخلیل — جامعه رضویه مظهر الاسلام فیصل اباد

**جامعه غوثیه مدرسه جلالیه عزیز العلوم اویسیه سعیدیه اوچ شریف، ضلع بهاولپور**

**الجواب: اللهم اجعله لنا الحق والصواب حامدا ومصلیا ومسلما:**

د ریاض ګوهر شاهي، چې دروغجن باني د انجمن سرفروشان اسلام دی، د هغه د کتاب روحاني سفر اقتباسات، د سوا کوونکي په سوالنامه کې مو لیکل شوي صفحې وکتل، کوم چې د روح اسلام او نور ایمان سراسر منافي دي او ټکر ورسره لري.

۱: مرزائي ګستاخ رسول دی. او په ګوهر شاهي باندې د هغوی اثر شوی، حال دا چې د ګستاخ رسول توبه هم قبوله نه ده.

۲: شریعت مطهره دوکه. فراډ. جواري او شراب حرام کړي دي. څوک چې هغه حلال ګڼي هغه د اسلام څخه خارج دی، څوک چې یې حرام ګڼي بیا یې هم کوي. هغه فاسق، فاجر او په کبایرو باندې زړورتیا کونکی دی، د داسې انسان نه نفرت او ځان ساتل

ډیر ضروري دي.

۳: د غیر محرماتو سره تخلیه او نور فحش حرکتونه کول حرام دي. ددې اجمال لنډ تفصیل دا دی:

نشې ته عبادت ویل د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ د حکمونو پورې خندا. د قرآن او حدیث څخه انکار کول دي. الله پاك فرمايي:

﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [1]

سید المرسلین ﷺ فرمايي: ﴿کل شراب اسکر فهو حرام﴾ [2]

همدغه شان بل ځای کې دي ﴿کل مسکر حرام﴾ [3]

په یو بل ځای کې دي:

﴿کل مسکر خمر وکل مسکر حرام ما اسکر منه الفرق فملأ الکف منه حرام﴾ [4]

۴: چرسي، شرابي ته د علماء حقه نه افضل ویل هم د قرآن او حدیث نه انحراف دی.

الله پاك فرمايي: ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاؤُا﴾ [5]

رسول الله ﷺ فرمايي: ﴿فضل العالم علی العابد کفضلی علی ادناکم﴾ [6]

۵: درود شریف غیر مفید ګڼل، کم عقل توب، ضلالت او ګمراهي ده، ځکه چې درود شریف په عباداتو کې اعلی، محبوب او مقبول عبادت دی. د هر قاری لپاره مفید او نافع. د ګناهونو لپاره دافع او د درجاتو لپاره رافع دی. رسول الله ﷺ ته د نزدې کیدو ذریعه او په محشر کې د نجات سبب دی. همدغه شان د حدیثو په کتابونو کې دي او الله پاك فرمايي:

---

[1]) سورة المائدة آیت: ۹۰

[2]) البخاری ٥٥٨٥، ومسلم : ٢٠٠١، وابوداؤد: ٣٦٨٢، والترمذی: ١٨٦٤، والنسائی : ٨/٢٩٨، واحمد: ٦/١٩٠[بطرزکتاب ٥٤٥؟؟

[3]) مسلم : ٢٠٠٣، وابوداؤد : ٣٦٧٩

[4]) جامع صغير : ٢/٩٩ (سنده صحيح)

[5]) سورة الفاطر آیت : ٢٨

[6]) ترمذي، دارمی، مشکاة ص ٢٤، عن ابی امامة الباهلی رضی الله عنه وعن مکحول مرسلا (حسن)

﴿ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ﴾ [1]

۶: د غير محرمو ښځو سره اختلاط، د شريعت مطهره خلاف دي، الله پاك فرمايي:

﴿ قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ﴾ [2]

او همدغه شان ښځو ته حکم شوی دی چې:

﴿ وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ ﴾ [3]

ښځه ډول او زينت صرف د خپلو خاوندانو لپاره کولی شي:

﴿ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ ﴾ [4]

د ښځو لپاره اتڼ کول په قرآن کريم کې منع دي، الله پاك فرمايي:

﴿ وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ﴾ [5]

غير محرمات ته غاړې ورکول خو پرېږده. د هغوی طرفته کتل هم منع دي. لکه چې الله پاك فرمايي:

﴿ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾ [6]

ګوهر شاهي پدې ټولو حکمونو او شرعي تقاضو باندې څه پوهيږي او د مستې ښځو سره يې تعلق ولې ساتلی دی؟

۷: د سيدنا خضر عليه السلام ددې فرمان نه وروسته چې ﴿ وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ اَمْرِيْ ﴾ بيا هم اعتراض کول په رب العالمين باندې اعتراض دی. د الله پاك په حکمتونو باندې د اعتراض کونکو ځای جهنم دی.

۸: د اولياء الله له طرفه د غلطو خبرو نسبت هغوی سره دشمني ده. حديث قدسي دی چې: ﴿ من عادى لى وليا فقد اذنته بالحرب ﴾ [7]

---

[1] سورة الاحزاب آيت: ٥٦

[2] سورة النور آيت: ٣٠

[3] سورة النور آيت: ٣١

[4] سورة النور آيت: ٣١

[5] سورة النور آيت: ٣١

[6] سورة الاحزاب آيت: ٥٩

[7] بخاري، مشكاة: ١٩٧

د ګوهر شاهي ویناوې او عمل په بې دینی او ضلالت بناء دی. د هغه نه ځان ساتل او نفرت ورنه کول ډیر ضروري دی. الله پاك دې ددې فتنې نه مسلمانان محفوظ وساتي. آمین.

کتبه محمد سراج احمد سعیدی القادری اوچ شریف بهاولپور

# د دار العلوم جامعه حنفیه قصور فتوی

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب: وهو الموفق للصواب اللهم رب زدنی علما

د استفتاء د صورت لوستلو نه وروسته واضحه شوه چې د انجمن سرفروشان اسلام باني فاسق، فاجر، ضال او مضل. ملحد او زندیق دی، په شریعة المطهره الغراء پورې ټوقې کونکی دی او دا کفر دی. د هغه د اسلام نه خارجیدو کې هیڅ شك نشته.

په الحدیقة الندیة شرح الطریقة المحمدیة للعلامة عبد الغنی النابلسی رحمه الله کې دي:

﴿ واستحلال المعصیة والاستخفاف بالشریعة ای عدم المبالات باحکامها واهانتها واحتقارها والیاس من رحمة الله والامن من عذابه وسخطه وتصدیق الکاهن فیما یخبره من الغیب کله کفر ﴾ [1]

**ترجمه**: معصیت (ګناه او نافرماني) حلال ګڼل او او د پاکیزه سپین سپېڅلي شریعت سپکاوی او توهین کول د شرعي حکمونو څخه بې پرواهي او د هغو سپك ګڼل د الله پاك د رحمت نه نا امیدي او د الله پاك د عذاب او ناراضګی نه امن. او کاهن چې کوم غیبي خبرونه ورکوي. د هغې تصدیق کول ټول په ټول کفر دی.

سیدنا خضر علیه السلام د جمهورو په مسلك لوی نبي دی. سیدنا خضر علیه السلام نبي ته قاتل ویل، یا مجرم ویل. معاذ الله. العیاذ بالله. انتهائي خباثت. ضلالت. رذالت، ذلالت او حماقت دی، نبي سیدنا خضر علیه السلام ته قاتل ویونکی خبیث النفس. بلکې اخبث بلکې اخبث الخبثاء او خارج عن الاسلام دی، په مسلمانانو باندې واجب دي چې: ﴿ اذکر الفاجر کی تهجر الناس ﴾ د فاسق او فاجر تذکره کوي چې خلك د هغه د

[1]) الحدیقة الندیة شرح الطریقة المحمدیة: ١/ ٢٩٩

چالاکی، دوکې او چلونو څخه بچ شي. ﴿ اياكم واياهم ﴾ د لاندې د هغوی د مصاحبت او ملګرتيا نه ځانونه وساتی. همدغه شان په قرآن کريم کې دي:

﴿ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ [1]

که شيطان ستا نه هيرکړي؛ نو د نصيحت نه پس د ظالمانو سره مه کښينه.

د الله پاك ددې فرمان لخاظ ساتلو سره د داسې سړي اقتصادي. معاشرتي بايکاټ او د اړيکو د پريکولو اعلان کول ضروري بلکې ډير ضروري دي

دا مقتدا نه دی. دا ګمراه دی. دا پير نه دی شرير دی. دا بزرګ نه دې ګرګ دی، دا ولي نه دی شقي دی. دا فيضان نه دی شيطان دی. د مسلمانانو لپاره د داسې سړي نه ځان ساتل ضروري دي، دا زهر قاتل دی او ريح عاصف دی. چې مسلمانان به د باطل کندې ته وغورځوي:

فارسی شعر:

دور شو از اختلاط بد یار بد بدتر بود از يار بد

داسې بدبخته سړی د مسلمان قوم رهنما نه دی. دی د حق لارې ته بوتلل نه کوي بلکې دی باطلې لارې ته قوم بوځي.

اذا كان الغراب دليل قوم سيهديهم طريق الهالكين

ترجمه : کله چې د قوم مشر کارغه وي؛ نو هغوی ته به د هلاکونکو لاره ښيي.

نبي خو معصوم وي. د ګناه صغيره او ګناه کبيره نه مبرا او منزه وي. د شرك او کفر. ظلم او کذب. غلا. خيانت. باطل عمل، حرام فعل، غرض دا چې د منهيات شرعيه او ممنوعات مليه نه د الله پاك په فضل پاك وي. په تفسير روح البيان کې ددې آيت ﴿ مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ ﴾ [2] د لاندې مصنف رحمه الله فرمايي:

﴿ اجتمعوا على أن الرسل عليهم السلام، وكانوا مؤمنين قبل الوحی ومعصومين من الكبائر ومن الصغائر الموجبة لنفرة الناس عنهم قبل البعثة وبعدها فضلاً عن الكفر ﴾

[1]) سورة الانعام آيت : ٦٨

[2]) سورة الشورى آيت : ٥٣

**ترجمه** : پدې باندې د متقدمینو، متاخرینو. اولینو او اخرینو. سابقینو او لاحقینو. د ټولو محدثینو او مفسرینو، فقهاء کرامو او اولیاء عظامو د ملت د علماء او فضلاء او مشائخ عظام اتفاق دی، چې انبیاء او پیغمبران ﷺ د وحی نه مخکې مؤمنان وو. د کبیره او صغیره ګناه له امله چې په خلکو کې د نفرت باعث جوړ شي معصوم وو: نو وروسته به هم معصوم وي. پاتې لا دا چې کفر ترې صادر شي (معاذ الله)

لهذا نبي معظم سیدنا خضر علیه السلام ته قاتل، مجرم ویل ددې ګوهر شاهي د جهنم تیاری دی، داسې سړی د الله پاك د غضب ښکار کیدونکی دی. د الله پاك او د هغه د رسول ﷺ په لعنت کې ګرفتار دی، جهنمي او دوزخي دی. مردود الشهادة دی. ناقابل خلافت او ناقابل امامت دی، همدغه شان ناقابل قیادت دی.

بیا د هغوی د قاتل کیدو سوال هم نه پیدا کیږي. ځکه چې د سیدنا خضر علیه السلام د شریعت د حکمونو نافذول په باطن باندې دي. هغوی به د باطن په اعتبار سره فیصله کوله. د سیدنا موسی علیه السلام د شریعت د حکمونو نافذول په ظاهر باندې وو. لکه چې د سرکار دو عالم ﷺ د شریعت د حکمونو نافذول او فیصلې په ظاهر باندې دي.

﴿نحن نحکم بظواهر کم ولا نحکم ببواطنکم﴾

**ترجمه** : مونږ خو ستاسو په ظاهر باندې فیصلې کوو، مونږ ستاسو د باطن په اعتبار سره فیصلې نه کوو.

سیدنا خضر علیه السلام هغه ماشوم پدې وجه قتل کړ، چې هغه بالغیدو سره خپل مور او پلار وژل او وروسته د هغوی قتل کیدل وو. خضر علیه السلام هغه وواژه. د باطني علم په بنیاد یې په باطن باندې فیصله وکده. دا د الله پاك له لوري وو. قرآن کریم یې تائید کړی دی او د سیدنا خضر علیه السلام قول یې ذکر کړی دی چې:

﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا﴾

کله چې دې جاهل، اجهل، جهال ته د فیض ظاهري او فیض باطني معلومات نشته ددې علم نه خالي او عاري دی؛ نو څوك د هغه نه استفاده او استفاضه څنګه کولی شي؟ او دا خبیث، اخبث، خباث چا ته افاضه او افاده څنګه کولی شي؟ د دواړو

طرفونو نه يې انقطاع راغلې ده، د دواړو طرفونو نه يې افتراق راغلی دی. پداسې پیری مریدی او داسې عقیدت او بیعت کې هيڅ فائده هم نشي کيدی ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ.

فارسي شعر:

ای بسا ابلیس آدم روئی هست  پس بهر دستے بناید داد دست

د شیخ جنید بغدادي رحمه الله په زمانه کې څو صوفیانو وویل: چې مونږ ته د س د لمونځ، روژې ضرورت نشته، مونږ ورسیدلو. مونږ ورسیدلو! ﴿ فقداوصلنا فقداوصلنا ﴾ مریدانو او معتقدینو د هغوی دا کلمات عرض کړه؛ نو هغوی وفرمایل: رښتیا یې وویل: ﴿ فقداوصلوا فقداوصلو ﴾ عقیدت لرونکو ورته عرض وکړو حضرت: تاسو هم د دوی تصدیق او تائید کوی؟ هغوی وفرمایل: ﴿ فقداوصلوا الی جهنم، فقداوصلوا الی جهنم ﴾ هغوی جهنم ته ورسیدل. هغوی جهنم ته ورسیدل.

## د ولایت معیار

قرآن کریم په معیار حق او معیار ولایت کې دا بیان کړی.

﴿ قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَاللهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ (١)

**ترجمه** : تاسو ووایې! که چیرته تاسو د الله پاك سره محبت کوی؛ نو زما تابعداري وکړی؛ الله پاك به هم تاسو سره مینه وکړي او د ګناهونو بخښنه به درته وکړي، بېشکه الله پاك بخښنه کونکی مهربانه ذات دی.

د رسول د اتباع نه بغير، کله هم څوك منزل مقصود ته نشي رسيدلی. څکه چې:

فارسي شعر: خلاف پیغمبر کسے راہ گزید  ہرگز بہ منزل نخواہد رسید

د علماء کرامو، صوفیاء عظامو، صلحاؤ نجباؤ، شرفاؤ، کملاؤ ابدلاء، اقطاب او اغواث بیان کړي اصول شریعت وګوری:

---

(١) آل عمران: ٣١

﴿ الشريعة كالسفينة، والطريقة كالبحر، والحقيقة كالصدف، والمعرفة كالدر، من اراد الدر ركب على سفينة ﴾

يعنې پاک او سپېڅلی شريعت د کشتی په شان دی. طريقت د سمندر په شان دی، حقيقت اصليه د صدف په شان او معرفت مطلوبه ملغلرې په شان دی. څوک چې د ملغلرې د حاصلولو اراده لري هغه دي په کشتی کې سور شي.

يو سړی په هوا کې الوځي، په اور روان وي. تر څو چې په هغه کې د شريعت اتباع نه وي، ولايت نشته. کرامت نشته. دا به يا اهانت وي او يا به استدراج وي. جاهلان، کم عقل او خبيثان په کرامت او اهانت کې فرق نه کوي. شيطان په مشرق کې وي، په لږ ساعت کې مغرب ته ورسيږي دا استدراج دی. که د يو متبع سنت بزرګ او ولي نه دا صادر شي؛ نو دا کرامت دی؛ خرق عادت دا دي: ارهاص. معجزه. کرامت، معونت، اهانت او استدراج.

**ارهاص** : د رسول اللهﷺ څخه د اظهار نبوت او رسالت نه مخکې چې کوم کارونه خلاف عادت صادر شوي، هغې ته ارهاص وايي.

**معجزه**:د رسول اللهﷺ نه د اعلان نبوت او رسالت نه وروسته چې کوم کارونه دعادت خلاف صادر شوي، هغه معجزه ده. لکه شق القمر، رد الشمس او معراج وغيره.

**کرامت** : د رسول اللهﷺ امتي. مرد کامل، د الهي دربار مقرب. غوث. قطب. ابدال، ولي الله. صحابي رسول، تابعي، تبع تابعي، ائمه مجتهدينو، اولياء کاملينو، څخه چې کوم کارونه د عادت خلاف صادر شي. هغې ته کرامات ويل کيږي او کرامات د اولياؤ حق دي. (١)

**معونت**:دعامومؤمنانو څخه چې کوم خلاف عادت کارونه کيږي، هغې ته معونت وايي.

**اهانت** : د بې باکه، فاجرانو يا کافرانو نه چې د هغوی خلاف عادت کارونه ظاهر شي، هغه اهانت دی.

---

١) عقائد النسفی مع الشرح : ١٤٥

**استدراج** : بې باکه، فاجرانو یا کافرانو نه چې د هغوی خلاف عادت کارونه ظاهر شي؛ نو هغه استدراج دی. لکه چې هندوان وایي: چې زمونږ کرشن جي! د خپلو لسو ګوپیانو سره په یو وخت کې وو، دا استدراج دی.

مسلمانانو لره د اصول شرع مذکوره په اعتبار سره پوهیدل پکار دي. چې د ریاض نوکر شاهي ټول افعال، اقوال، اعمال، احوال او کردار مذکوره ګنده. غلیظ. فحش او نجاسات دي. مسلمانانو! ددېنه وروسته شي هغه ته که تاسو ته نزدې شي: نو تاسو به په فحش او بې حیایی کې اخته شی. مسلمانانو! د هغه نه شاته شی هغه ته که تاسو نزدې شوی؛ نو په نشه او شرابو کې به اخته شی.

﴿ فَاتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ، فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ ﴾ [1] د سواد اعظم (یعنی لوی جماعت) اتباع کوی او څوك چې د هغې نه بیلیږي: نو هغه به بیلوو او جهنم کې به یې اچوو.

﴿ علیکم بالجماعة ﴾ جماعت سره یو ځای شی! داسې د عقل ړانده او په زړونو ګنده. جاهلانو او د خبیثو خلکو پسې مه ځئ!

مسلمانانو اوس به هغه ته څه وایی. کوم چې د شرابو په نشه کې پروت وي. حال دا چې د رسول الله ﷺ فرمان دی: ﴿ کل مسکر حرامٌ ﴾ هر نشه ورکونکی شی حرام دی. لهذا شراب، بنګ، چرس، افیون، ګانجا، تاړي، سپرټ. الکحل دا ټول نشه کونکي شیان دي.

نشه ورکونکی شی چې کله بهیدونکی وي. د اوبو په صورت کې: نو هغه نجس دی، لهذا شراب، بنګ، چرس او ګانجا چې کله څښل شوي وي او تاړي (پی) چې کله په هغې کې نشه راشي او سپرټ الکحل دا ټول نجس او پلیت دي او حرام هم دي. [2]

د سړو لپاره د ښځو جامې اغوستل حرام دي. د ښځو لپاره د سړو جامه اغوستل حرام دي. په حدیث کې داسې سړو او ښځو باندې لعنت راغلی دی. رسول الله ﷺ فرمایي:

---

[1] المستدرك للحاكم : ۳۹۵ (حسن بمجموع الطرق)
[2] کتب فقه، عالمگیری وغیره

﴿ لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء والمتشبهات بالرجال ﴾

**ترجمه** : الله پاك په هغه سړو باندې لعنت ويلى چې د ښځو سره ځان مشابه كوي او په هغه ښځو باندې يې هم لعنت ويلى چې د سړو سره ځان مشابه كوي.

اوس پاتې شوه مسئله د مجذوبيت. حقيقي مجذوب د شرعي حكمونو انكار نه كوي. مجذوب كه د ښځو جامې واغوندي؛ نو شرعا هغه نشي نيول كيدى، ځكه چې هغه مكلف نه دى، ځكه چې هغه سلوك باندې تير شوى. چې د الله پاك تجلي د هغه په زړه باندې واقع شوه او هغه برداشت نه كړى شوه. په هغه باندې جذب راغلو او عقل يې خراب شو، چې د هغې په وجه هغه مكلف نه دى.

رابعه بصريه رحمة الله عليها يوه پاكه ښځه وه. هغې ته ډمه ويل دا د رياض نوكر شاهي خباثت او ضلالت دى.

رياض نومې سړى او د هغه معتقدينو ته په جوماتونو كې د حلقې جوړولو په ډول ذكر كولو اجازت وركول په حقيقت كې د فتنې او فساد ځاى ته اجازت وركول دي او د جومات د خرابولو سامان پيدا كول دي، په سني مسلمانانو باندې لازم دي، چې هغوى ته هيځكله په زړه او دماغو. ذهن او فكر، منبر، محراب. جومات او مدرسه كې ځاى ورنكړې او د هغوى د صحبت نه ځان وساتې. للصحبة تاثير ولو كان نساء ...كه د نظام مصطفوي نفاذ وى؛ نو د مسلمانانو قاضي به داسې خلك جلاوطن كړي وى. [1]

هذا من عندى والله اعلم بالصواب

كتبه فقير ابو العلاء محمد عبدالله قادرى اشرفى رضوى، قصور

## د حرمينو د رئيس امام كعبه شيخ محمد بن عبدالله سبيل فتوى

د ګوهر شاهي معلون د دجل او دروغو دا حالت دى. چې هغه د خپل حجر اسود د مزعومه تصوير دروغ د رښتيا باور كولو لپاره په ائمه حرم كې يو خود ساخته

[1]) عالمگيرى، مظهرى وغيره

امام جوړ کړی او د هغه لپاره يې د ځانه نوم تجويز کړی، بيا يې دعوه کړې، چې هغه زما د حجر اسود د تصوير تصديق کړی دی، هغه وايي چې: امام حرم حماد بن عبدالله د هغه د حجر اسود د تصوير تصديق کړی، ويلي يې دي: چې دا د امام مهدي تصوير دی؛ خو کله چې پدې سلسله کې د حرمينو د سربراه شيخ محمد بن عبدالله بن سبيل سره رابطه وشوه، هغوی ته ددې ملعون د پورته ذکر شوو دعوو باندې د مشتملو اخبارونو او رسالو فايل ورکړ او هغوی ته بيان شو: چې د ګوهر شاهي معلون دا دعوه ده: چې امام حرم حماد بن عبدالله هم د هغه د حجر اسود د تصوير تصديق کړی. ويلي يې دي: چې دا د هغه د صداقت نخښه ده: نو شيخ محمد بن عبدالله سبيل دېته دروغ او دوکه وويل: ددې دعوې ترديد يې وکړ. فتوی يې جاري کړه چې داسې دعوه کونکي سړي دجال او کذاب دي. وې فرمايل: چې په حجر اسود باندې داسې تصوير نه دی ظاهر شوی او نه يو امام د هغه تصديق کړی، بلکې پدې نوم دلته کوم امام هم نه دی تېر شوی، د شيخ سبيل د فتوې ترجمه او د هغې عکس لاندې ليکل شي.

ټول تعريفونه د الله پاك وحده لا شريك لپاره دي، صلوة او سلام د هغه ذات لپاره دی چې د هغوی نه وروسته هيڅ نبي نشته او د هغوی په آل او اصحاب باندې.
اما بعد: مونږ ته د ځينو پاکستاني رسالو په ذريعه دا خبر رارسيدلی دی: چې د انجمن سرفروشان اسلام باني او سربراه کوم چې د رياض احمد ګوهر شاهي په نوم يو سړی دی، دعوه کړې ده: چې هغه مهدي دی، پدې دعوه باندې هغه دا استدلال پيش کوي: چې په حجر اسود باندې د هغه شبيه تصوير ښکاره شوی، د هغه په قول امام حرم حماد بن عبدالله ددې خبرې تصديق هم کړی، زه د حقيقت د وضاحت او د حق د اظهار لپاره دا خبره د مسلمانانو په نوم ليکم: چې د يو سړي تصوير هم په حجر اسود کې نه دی ظاهر شوی، نه د حرمين شريفين په امامانو کې چا ددې تصديق کړی دی، بلکې په حرمين شريفين کې د حماد بن عبدالله په نوم امام بالکل نشته. دا سړی رياض احمد ګوهر شاهي امام مهدی نه دی. بلکې دا سړی د ټولو نه زيات دروغجن، د ټولو نه زيات ګمراه، نور خلک هم ګمراه کوي، د ټولو نه لوی دوکه باز او په دجالانو کې يو لوی دجال دی.

# د انجمن سرفروشان اسلام فرقې په اړه ددې کتابونو مطالعه وکړئ !

- گوهر شاهی ..... از مولانا سعید احمد جلال پوری رحمه الله
- یادگار لمحات .... گوهر شاهی پبلی کیشنز
- روحاني سفر ......گوهر شاهي پبلی کیشنز
- پندره روزه صداء سرفروش ... خاص کر یکم اکتوبر تا ۱۵ اکتوبر ۱۹۹۸ء
- پندره روزه صداء سرفروش ... ۱٦ تا ۳۱ دسمبر ۱۱ رمضان ۱٤۱۹هـ
- هفت روزه تکبیر ......... ۲۰ مئی ۱۹۹۹ء
- هفت روزه تکبیر ...... ۱۵ اپریل ۱۹۹۹ء، جستس محمد تقی عثمانی اور دوسری علماء کا فتوی
- ماهنامه شهادت ........ فروري ۱۹۹۹ء مسیلمه کذاب سی گوهر شاهی تک
- ماهنامه شهادت ........ دسمبر ۱۹۹۸ء





.......

# [د الهدی انټرنيشنل فرقه]

## د الهدیٰ انټرنيشنل فرقې تاريخ

زمونږ زمانه د فتنو څخه ډکه اود دين نه د لرې والي او زړه ډکيدونکي زمانه ده. ورځ تر بلې نوي نوي فتنې پيدا کيږي، ددې فتنو تر شا د يهوديانو. عيسويانو او د مغرب د پوهانو لاسونه دي، د دين نه لرې او د دين نه نفرت کوونکي. په دين باندې د تحقيق کولو په نوم لوی لوی يونيورسټيو (په خاصه توګه د دين نه نفرت کوونکي ملکونو) کې کار روان دی او پدې تحقيق کې د هغوی دين. د الحاد او دهريت والا دين جوړول کيږي، بيا دا ذهنيت په عامو خلکو کې خپرول کيږي.

داخبره دچانه هم پټه نه ده. چې ديوځوکالو نه د ديني مدرسو خلاف مختلفو طريقو سره پروپيګنډې او تهمتونه لګول کيږي. EWG پديکې يو الهدی انټرنيشنل هم دي. چې د کوم وخت څخه په پاکستان کې دجينکو مدرسې خلاصې شوې اوپه هغې کې جينکو ته د قرآن، حديث او فقهې تعليم ورکول شروع شوي، په ملک کې يو ښه تبديلي راغله. هغه کورونه چې د دين نه لرې وو. د هغو کورونو جينکۍ هم په مدرسو کې داخلې شوې او د هغوی په ټول خاندان کې يو بدلون راغلو.

دا بدلون ددې ډلې د پريشانۍ وجه جوړه شوه. ددې په مقابله کې هغوی دالهدی انټرنيشنل په نوم نوي ادارې خلاصې شوي. چې په هغې کې به د يو کال تربيت ورکول کېده.ددېنه وروسته دا جينۍ دا تربيت نورو ښځو ته ورکول شروع کړي، چې د هغې څخه لويه فتنه پيدا کيږي.

مثال په طور د يو کال د لوست نه وروسته. په هغه عالمانو چې هغوی خپل ژوندون په دين کې لګولي وي. اعتراضونه شروع کړي او پدې کار کې مشغول شي او يوه فتنه دا هم ده. چې د ښځې او سړي په لمونځ کې څه فرق نشته. دا هم چې جماعتونو ته د ښځو راتلل صحيح دي. دا هم چې ښځه بغير د محرم نه سفرکولی شي. کومه خوا چې يې خوښه وي هغه خوا تلی شي. حال دا چې زمونږ په ملک کې زيات خلک د امام

ابو حنیفه رحمه الله اتباع کوونکي دي. ددې ښځو ذهن داسې جوړ شوی. چې د امامانو تابعداري پرېږدی او په خپله په قرآن او حدیث ځان پوه کړي او عمل پرې کوي.

مطلب دا چې د الهدی انټرنیشنل په ذریعه په ښځو کې د اسلام د شوق پیداکولو په ځای د مغربي معاشرې اثرات خپرولی شي. الله تعالی دي مونږ ټول د هرې فتنې نه وساتي او په صراط مستقیم دي راته تلل نصیب کړي اوپه دې دي راته استقامت راکړي. آمین

## د ډاکټر فرحت هاشمي صاحبې مختصر حالات

**پیدایش** : ډاکټر فرحت هاشمي صاحبه په سرګودها پنجاب کې پیداشوې وه. د جناب عبدالرحمن هاشمي صاحب لور ده چې خپله یو مشهور دیني عالم دی. ډاکټر فرحت هاشمي پدې لحاظ سره ډېره خوش قسمته دد. چې اسلام سره یې د مینې جذبه ورته د پلار نه په میراث کې پاتې ده.

**زده کړه** : ډاکټر صاحبې خپله لومړنی زده کړه په خپل پیدایشي ښار سرګودها کې کړې دی. هغې د خپل والد صاحب څخه د قرآن تعلیم هم کولو. کله چې تاسو M.A عربي مکمل کړه: نو لږ وخت وروسته د هغې واده وشو. ددېنه وروسته هغې خپل د خاوند سره د اسکاټ لینډ ګلاسکو یونیورستی ته په سفر لاړه. هلته یې د خپل خاوند سره د اسلامي تعلیماتو په شعبه کې PHD مکمل کړه. تر دې چې ډاکټر صاحبه او د هغوی خاوند دواړه په تبلیغ اسلام او حصول علم کې مشغول وو: خو بیا هم هغوی د خپلو څلورو بچو د تربیت نه غافل نه وو

**د قرآن سره محبت** : ډاکټره صاحبه لا د ځوانی په مرحله کې وه چې د تعلیم په زیاتونه کې یې ډېر زیات شوق درلود. ددې سره سره یې د قرآني تعلیماتو خپرول خپل اصلي نصب العین ګرځولی وو. هغه په خپله د یو تعلیمي خاندان څخه وه: نوپدې خبره قائله وه. چې ټولو تعلیم یافته ښځو ته دي د قرآن تعلیمات ورکول شي. د وړوکوالي څخه په تبلیغي اجتماعاتو کې ونډه اخسته. چې بالآخره نتیجه یې دا راووته. چې د هغې د شاګردانو او معتقدینو شمېر مخ په ډېریدو شو: نو ددې جهاد بالقرآن په لاره

دې سلسله کې هغې ۱۹۹٤ء کې د الهدی انټرنیشنل لتعلیمات الاسلامي برای خواتین بنسټ ډېره کېښوده. وړاندې بیا هغې په ۲۰۰۰ء کې په کراچی کې هم د الهدی انټرنیشنل لتعلیمات الاسلامي برای خواتین پیل وکړ.

لنډه دا چې ددې ټولو دیني کوششونو باوجود د ډاکټر صاحبې خیال وو. چې اوس هم ډېر کار پاتې دی. ددې مطلب دا چې هغې کلک عزم درلود. چې دا قرآن هر کور او هر یو لاس ته ورسي. سړي وي او که ښځې. ددې د تعلیماتو څخه په پوره توګه فایده واخلي.

# [د الهدٰی انټرنیشنل عقیدې او نظریې]

## د اسلام آباد نه د یوې ښځې استفتاء او د هغې په اړه لیکنه

### استفتـــاء

جناب حضرت مفتي صاحب دامت برکاتهم عالیه

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

سوال کونکې د اسلام آباد د یوې ادارې "الهدی انټرنیشنل" نه د یو کال ډپلومه کورس په اسلامک سټډیز کې کړې ده. سائله دې ادارې ته د علم د طلب په تلاش کې تللې وه. ددې د پټو عقیدونه خبره نه وه. د یو کلنیز کورس نه وروسته ددې عقیدې څه صحیح معلومات نه وو شوی: نو سوچ مې وکړ. چې پدې باندې د عالمانو صاحبانو څخه فتوی واخلم: نو دا به زما لپاره ډېره ښه وي. ددې لپاره چې د امت مسلمه لوړګانو ته صحیح عقیده او د ګمراهی څخه بچ شي. زمونږ د استازې او د الهدی انټرنیشنل د مشرې محترمه ډاکټر فرحت هاشمي صاحبې د نظریاتو خلاصه ستاسو په وړاندې پېش کول غواړم.

(۱) د اجماع امت نه جدا یوه نوې لاره خپلول.

(۲) د غیر مسلمو او د اسلام نه د بې زاره طاقتونو د نظریاتو خپلول.

(۳) د حق او باطل تلبیس.

(۴) د فقهې د اختلافو په ذریعه په دین کې شکونه او شبهات پېدا کول.

(۵) آسان دين.
(۶) د آدابو او مستحباتو خيال نه ساتل.
اوس ددې بنيادي نکتو لږ تفصيل لاندې ليکل شوی.

## (۱) د اجماع امت نه جدا يوه نوې لاره خپلول.

(۱) قضاء عمري د سنت نه ثابت نه دي. صرف توبه دي وکړی شي. د قضا لمونځ د اداکولو ضرورت نشته.
(۲) درې طلاقونه يو شمېرل.
(۳) په نفلي لمونځونو صلوة التسبيح. د رمضان په طاق شپو کې په خاصه توګه د ۲۷ شپه کې د اجتماعي عبادت اهتمام کول او د ښځو په جمع کېدو زور ورکول.

## (۲) د غېرمسلموا و د اسلام نه د بې زاره طاقتونو د نظرياتو خپلول.

(۱) عالمان د مدرسو او عربي ژبې نه لرې دي.
(۲) عالمان دين ګرانوي. په خپلوکې جنګونه کوي. عوام د فقهې په بحثنو کې اچوي. بلکې په يوه موقع خو يې وويل: که چېرې تاسو ته په يوه مسئله کې صحيح حديث ملاو نشي؛ نو ضعيف حديث واخلی: خو د عالمانو خبره مه منی.
(۳) په مدرسو کې دګرائمر. ژب ښودنې. او د فقهې د نظرياتو په ښودلو ډېر وخت ضايع کيږي. قوم ته د عربی ژبې د ښودلو ضرورت نشته. بلکې خلکو ته دي قرآن صرف په ترجمه وښودل شي.
(۴) په يوه موقع کې يې وويل: "پدې مدرسو کې چې کوم لومړي اووه يا اته کاله سبقونه ښودل کيږي. دا د دين روح نه پيداکوي. بلکې د خپلې فقهې د صحيح ثابتولو کوشش کوي" دې نه اشاره درس نظامي طرفته ده.
(۵) د زمانې د ټولو نه بدنام او تش په نوم دانشور وحيد الزمان کتابونه د طالب علمانو د تربيت لپاره ډېر ښه دي. په نصاب کې هم شامل دي او په ستالونو کې هم اېښودل کيږي. چا ترې پوښتنه وکړه چې دده په باره کې د عالمانو څه رايه ده: نو وې ويل: چې "علم د مؤمن ورک شوی ميراث دی".

## (۳) د حق او باطل تلبيس (ګډوډ) کول.

(۱) تقليد شرک دی: (څو کوم يو په حقه دی او په کوم وخت کې غلط دی. دا يې هيڅ هم ونه ويل)

(۲) په ضعيف حديث باندې عمل کول تقريبا يو جرم دی. (کله چې بخاري شريف د صحيح احاديثو مجموعه ده: نو ضعيف احاديث دي ولې قبول کړی شي)

## (٤) د فقهي د اختلاف په ذريعه په دين کې شکونه او شبهات پيدا کول.

(۱) خپل پيغام. مقصد او د متفق عليه خبرونو زيات زور په نورو مدرسو او عالمانو باندې په طعن او تهمت ورکوي.

(۲) د ايمان. لمونځ. روژې. زکوة او حج په شان بنيادي فرضونو او سنتونو. مستحباتو او مکروهاتو ښودلو په ځای يې په اختلافي مسئلو کې ګېر راګېر کړو (تهمت دی چې مونږ د څه تعصب ښکار نه يو او صحيح احايث خپروو).

(۳) د لمونځ اختلافي مسئلې رفع اليدين. فاتحه خلف الامام. يو وتر. ښځو ته جماعت ته د تلو ترغيب او د ښځو په جمعې لمونځ کولو. پدې ټولو باندې د صحيح احاديثو په حواله زور ورکول کيږي.

(۴) د زکوة په باره کې غلطې مسئلې ويل کيږي. ښځو ته د تمليک هيڅ علم نشته.

## (۵) دين آسانه دی

(۱) مولويانو له ځانه دين ګران کړی. دين مشکل نه دی، د دين هره يوه مسئله چې د کوم يو امام نه اخلی. مونږ د دين په دايره کې پاتې يو.

(۲) په حديث کې راغلي دي چې په دين کې آساني پيدا کړی. تنګي مه پيدا کوی: نو لهذا چې د کوم امام رايه آسانه معلوميږي هغه واخلی.

(۳) هره ورځ يسين لوستل د صحيح حديث نه ثابت نه دي. په نفلونو کې اصل صرف د چاشت او تهجدو لمونځ دی. د اشراقو او اوابينو هيڅ حيثيت نشته.

(۴) دين آسان دی. د ښځې لپاره د وېښتو د کاټولو هيڅ منع نشته. په

امهات المؤمنين كې د یوې وینسته کاټ وو. (معاذالله)

(٥) د دين د تعليم سره سره د شغل پروګرامونه. ښې جامې. د کالو شوق. محبت. من حرم زينة الله......

(٦) ښځې دي د دين خپرلو لپاره د کور نه ضرور بهر راووځي.

(٧) د محترمې خپل عمل د طالب علمانو لپاره حجت دی. د محرم نه بغير په تبليغي دوروکې تلل دقیام اللیل لپاره دشپې وتل. دمیډیاپه ذریعه تبلیغ. (ریډیو. تي وي. اخبار)

## (٦) دآدابواو مستحباتو خيال نه ساتل.

ښځې د ناپاک والي په حالت کې هم قرآن ته ګوتې وړی شي او آيات لوستی شي. د قرآن په کلاس کې د قرآن د اوچت يا لاندې والي څه خيال او احساس نشي کولی.

## (٧) ګنې مسئلې

(١) د قرآن د ترجمې د ښودلو نه وروسته په هره معامله کې په خپله د اجتهاد ترغيب ورکول.

(٢) د قرآن او حديث د فهم لپاره اکابرو عالمانو چې د علمونو زده کولو کوم شرطونه ښودلي. هغه بې کاره دي.

(٣) کومې فارغ التحصيل جينۍ ته چې مخې ته د دين يوه مسئله کېښودل شي: نو د هغې سوال دا وي چې دا د صحيح احاديثو څخه ثابته ده او کنه؟

(٤) ددې تپولو خبرو نتيجه داده چې کندې په کندې. کوڅه په کوڅه د الهدی برانچونه خلاص شوي، هر ډول طالباتې سره ددې که د هغې تجويد هم صحيح نه وي راځي. نورو ته سبق ښيي او خلک په مسئلو کې ګيروي.

(٥) د کور د سړو تعلق په عام طور سره د جماعت سره دی. (چیرته چې د لمونځ طريقه دحنفي فقهې مطابق ده) د کور ښځې د سړو سره بحث کوي. چې زمونږ د جماعت په مولويانو باور نشته.

# مطلوبه سوالونه

(۱) د پورته ذکر شوو مسئلو په اړه وضاحت وکړی او د شکریې وخت راکړی

(۲) د محترمې ډاکټر فرحت هاشمي ددې طریقې شرعي حیثیت او د محترمې د ګلاسکو یونیورستۍ نه د پي ایچ ډي شرعي حیثیت څه دی؟

(۳) د دوی پدې کورس کې شریکېدل او خلکوته ددې دعوت ورکول او یا د دوی سره د مرستې کولو څه حکم دی هغه راته په ډاګه کړی.

جزاکم الله احسن الجزاء

مستفتیه: مسز سیما افتخار

On year diploma holder

AL.Huda international Islam Abad

**[د الهدی انټرنیشنل عقیدې او نظریې، د قرآن او حدیث څخه یې جوابونه]**

## لومړی نظریه: د اجماع نه انکار کول

جواب: اجماع د قرآن د آیتونو او د احادیث نبویه وو څخه ثابته ده.

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا (سورة البقرة آیت ۲۴۳)

**ترجمه**: د الله رسۍ په کلکه ونیسئ او په خپلو کې بې اتفاقي مه پیدا کوی.

دا بې اتفاقي هم د اجماع امت په ماتولو سره پیدا کیږي.

همدا رنګه په قرآن پاک کې راځي وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا (البقرة ۲۴۳)

**ترجمه**: دا رنګه مونږ تاسو یو داسې امت جوړ کړي یاست. چې ډېر زیات په اعتدال وي. ددې لپاره چې تاسو په خلکو شاهدان شی او په تاسو رسول الله ﷺ شاهد جوړ شي. ددې امت اقوال او اعمال چې په اتفاق سره دي. هغه ټول د الله تعالی په نزد صحیح دي، ځکه چې دا امت په اعتدال سره دی. ددې امت په خپلو کې اتفاق او اجماع حجت او حق دی. (احکام القران للجصاص ۱، ۱۰۱)

پدې اجماع باندې دومره ډېر حديثونه روايت شوي چې د تواتر حد ته رسيدلي دي. (المحصول: ۴/ ۱۰۹)

د تواتر حد دېته وايي: چې يو قول يا فعل په دومره لوی تعداد سره نقل شي. چې د هغوی ټولو په دروغو باندې اتفاق کول ممکن نه وي. ددېنه په کومه زمانه کې هم انکارنه وي شوی، تقريبا څلور څلوېښت صحابه کرامو چې په هغې کې پينځه عشره مبشره هم دي. پديکې خلفاء راشدين هم داخل دي. ددې ټولو روايتونو څخه د اجماع حجيت ثابتيږي.

"ان الله لا يجمع امتى او قال امة محمد صلى الله عليه وسلم على ضلالة ويدالله على الجماعة ومن شذ شذالى النار" (ترمذي، ابوب الفتن: ۲/ ۴۹۰. مستدرک حاکم: ۸/ ۱۱۵. مشکواة: ۳۰)

**ترجمه** : الله تعالى به زما امت په کومه ګمراهی متفق نه کړي. د الله تعالى لاس په جماعت باندې دی او کوم خلک چې ځانته لاره اختياروي. هغوی به جهنم ته وغورځول شي"

ددې حديث په شرح کې ملاعلي قاري رحمه الله فرمايي:

"قال المظهر فى الحديث دليلٌ على حقيّة اجماع الامة اى لايجتمعون على ضلالة ومعصية والمراد اجماع العلماء منهم ولاعبرة باجماع العوام." (مرقاة شرح المشکواة: ۱/ ۲۴۹)

**ترجمه** : "علامه مظهر رحمه الله فرمايي: پدې حديث کې د اجماع امت په حق باندې د کېدو دليل دی، چې زما امت په کوم غلط او د ګناه په کار باندې جمع کېدی نشي. ددېنه مراد د عالمانو اجماع ده. د عوامو د اجماع اعتبار نشته"

هم دا رنګه په يو بل روايت کې راځي:

" ثلاثة لا يغل عليهن قلب مسلم اخلاص العمل لله والنصيحة للمسلمين ولزوم جماعتهم فان دعوتهم تحيط من ورآئهم" (ابن ماجه کتاب المناسک: ۲۱۹. مشکوة: ۳۵، مستدرک حاکم ۱/ ۸۸ مسند احد احمد ۳/ ۲۲۵)

**ترجمه** : دري حالته داسې دي: چې د هغې په موجودګی کې د کوم مسلمان زړه خيانت نشي کولی، (۱) په عمل کې د الله تعالى لپاره اخلاص. (۲) د مسلمانانو خېرخواهي.

(۳) د جماعت لزومه اتباع کول. ځکه چې ددې دعا سره د هغوی احاطه شوې ده.

خلاصه دا چې د اجماع حجت کېدل د پوره امت عقیده وه. او دا اجماع د فقهې دریم مأخذ دی.

## د قضاء لمونځونو ادا کول

د اهل سنت والجماعت په نزد که چیرې د چا لمونځونه قضاء شي: نو د هغې قضاء را ګرځول ضروري دي، همداخبره په ډېرو حدیثونو سره د امت د جمهورو متفق علیه مسئله ده.

(۱) "عن ابي عبيدة بن عبدالله بن مسعودٍ رضیَ الله تعالی عنهُ قال: قال عبدالله ان المشركين شغلوا رسول الله صلى الله عليه وسلم عن اربع صلواتٍ يومَ الخندقِ حتّٰى ذهب من الليلِ ماشآء الله فامر بلالا فاذن ثم اقام صلی الظهرَ ثمَّ اقام فصلی العصر ثم اقام فصلّی المغربَ ثمَّ اقام فصلّی العشاءَ.

(ترمذي: ۱/ ۴۳)

**ترجمه** : حضرت ابو عبیده بن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی. هغه د حضرت عبدالله رضي الله عنه څخه روایت کوي: چې د غزوه خندق په ورځ مشرکینو رسول الله ﷺ د ځلورو لمونځونو نه بند کړی وو. تر دې چې د شپې څه برخه تېره شوه. څومره چې الله تعالی غوښته. بیا رسول الله ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته حکم وکړ. هغه اذان وکړ. بیا یې اقامت وویلو: نو بیا مو د ماسپښین لمونځ وکړ. بیا یې اقامت وکړ: نو د مازیګر لمونځ مو وکړ. بیا یې اقامت وکړ: نو د ماښام لمونځ مو وکړ او بیا یې اقامت وکړ: نو د ماسختن لمونځ مو ولوست.

(۲) عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال من نسی صلوةً فلیصلها اذاذکرها لا کفارة لها الاذلك" (بخاري: ۱/ ۴۸. مسلم ۱/ ۲۷. ابوداؤد: ۱/ ۶۴)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی: چې نبی کریم ﷺ وفرمایل: کوم سړی چې لمونځ کول هېر کړي یا ویده پاتې شي: نو د هغې کفاره صرف داده: چې کله ورته یاد شي: نو ودي کړي.

(۳) " عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما انه کان یقول من نسی صلوة فلم یذکرها الا وهو مع الامام فاذا سلم الامام فلیصل الصلوة التی نسی ثم یصل بعدها اخری (موطا امام مالک ۱۵۵)

**ترجمه** : "حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې کوم سړی نه لمونځ کول هېر شي، بیا امام سره د لمونځ لوستو په وخت هغه ته خپل پرېښودل شوی لمونځ رایاد شي: نو چې امام سلام وګرځوي. هغه ته پکاردي چې لومړی هغه خپل قضاء شوی لمونځ ولولي بیا د هغې نه وروسته نور لمونځ وکړي"

## د امت د عالمانو د قضاء لمونځ د کولو فتوی

امام جصاص رحمه الله پدې سلسه کې فرمايي:

(۱) " وهذا الذی ورد به الاثر من ایجاب قضاء الصلوة المنسیة عند الذکر لا خلاف بین الفقهاء فیه وقد روی عن بعض السلف منه قول شاذ لیس العمل علیه" (احکام القرآن للجصاص ۳: ۲۸۸)

**ترجمه** : " دا چې اثر په هیره سره د قضا لمونځ د ادا کولو دي په یاد راتلو. ددې په قضاء کې د فقهاؤ څه اختلاف نشته. دا چې د ځینو سلفو نه کوم قول روایت دی. هغه شاذ دی. په هغې عمل نشته"

صاحب رحمة الامة ارشاد فرمايي:

(۲) واتفقوا علی وجوب قضاء الفوائت." (رحمة الامة ۱۴۶)

**ترجمه** : " د علماؤ پدې خبره اتفاق دی. چې د پاتې شوو لمونځونو قضاء کول ضروري دي"

مشهور شارح مسلم علامه نووي رحمه الله فرمايي:

(۳) " فیه وجوب قضاء الفریضة الفائتة سواءٌ ترکها بعذر کنوم او نسیان اوبغیر عذر" (شرح مسلم للنووي ۱/ ۲۳۱ .وکذا احکام القرآن ابن العربي ۳: ۱۹۲)

**ترجمه** : " پدې سره د قضاء شوي لمانځه فرضیتْ ثابتیږي. برابره خبره ده. چې هغه د عذر په وجه پرې ایښی وي او که هغه په هېره ترې پاتې شوی وي"

# دويمه نظريه: درې طلاقونه يو شمېرل

که چيرې چا درې طلاقه يو ځای خپلې ښځې ته ورکړه، يا يې په يو مجلس کې ورته درې طلاقه ورکړه؛ نو اوس به دا درې طلاقه درې شمارل کيږي او که يو؟

**جواب**: پديکې دجمهورامت او د ائمه اربعه وو مسلک هم دا دی چې درې به درې شمارل کيږي، همدا خبره د ډېرو روايتونو څخه معلوميږي. مثلاً

(۱) **فطلقها ثلاث تطليقات عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فانفذه رسول الله صلى الله عليه وسلم** (ابوداؤد: ۱/ ۳۰۶)

**ترجمه**: "(سهل بن سعد) د حضورﷺ په وړاندې درې طلاقه ورکړل: نو بيا هغهﷺ نافذ کړه."

همدارنګه د محمد بن لبيد په روايت کې راځي:

(۲) "**اخبر رسول الله صلى الله عليه وسلم عن رجل طلق امراته ثلاث تطليقات جميعاً فقام غضبان ثم قال ايلعب بكتاب الله و انا بين اظهركم حتى قام رجل و قال يا رسولَ الله صلى الله عليه وسلم الا اقتله**" (نسائي: ۸۲)

**ترجمه**: "حضورﷺ ته دا خبر ملاو شو. چې يو سړي خپلې بي بي ته په يو ځای درې طلاقه ورکړي وو؛ نو هغهﷺ په غصه شو او ودرېدی. بيا نبي کريمﷺ وفرمايل: چې ولې زما په موجودګۍ کې د الله د کتاب سره لوبې کيږي، تر دې چې يو سړی ودرېد او هغه وويل: چې آيا زه هغه ووژنم"

په ډېرو روايتونو کې دا خبره شته، (مثلا بخاري: ۲/ ۷۹۱، مسلم: ۱/ ۴۶۳، السنن الکبرى: ۷/ ۳۷۷، دارقطني ۲/ ۴۳۸، مجمع الزوائد ۴/ ۳۳۶، ابوداؤد ۱/ ۳۰۰)

که په څه روايتونو کې ددې خلاف څه وي. د حضرت عمرؓ هغه فتوى چې هغوی په خپل فرمان کې ورکړې وه: هغه داسې که چا په يو مجلس يا يو ځای درې طلاقه ورکړه؛ نو هغه هم درې واقع کيږي. پدې باندې د صحابه کرامو ؓ او تابعينو اتفاق شو، ددې وجې نه ائمه اربعه د چا په مسئلو چې د امت د اکثريت خلکو عمل دی. د

هغوی ټولو په همدې اتفاق دی. (عمدة القاري: ۹/ ۵۲۷، فتح القدير ۳/ ۲۰۵، اعلام الموقعين: ۲/ ۲۷، فتح الباري ۲/ ۲۹، ميزان الشعراني: ۳/ ۷۹ وغيره)

ابن حجر رحمه الله فرمايي: پدې خبره کې د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو اجماع شوې ده، بيا چې څوک ددې مخالفت کوي؛ نو هغه د اجماع نه منکر او د پرهېزودونکی بې دی، د جمهورو اتفاق دی چې د اجماع نه وروسته اختلاف کول به مردود وي. (فتح الباري شرح البخاري: ۹/ ۲۹۳)

## نفلي لمونځونه، صلوة التسبيح وغيره په جمع کول

د احنافو په نزد په نفلي لمونځونو کې تراويح، صلوة کسوف او خسوف نه علاوه په جمع سره لمونځونه لوستل مشروع نه دي. که دوه يا درې سړي په پټه بغير د څه اعلان او اهتمام نه د نفلو جمع وکړي؛ نو د هغې صرف سړو ته اجازت دی: خو د ښځو لپاره په کور کې د لمونځ کولو تاکيد راغلی دی. هغوی ته خو د فرض لمونځ هم په جمعې سره د کولو اجازت نشته؛ نو بيا د نفل لمونځ او صلواة التسبيح وغيره به په جمعې سره د کولو څنګه اجازت وي؟

## مولويان دي د مدرسو او عربی ژبې نه لرې اوسي

## [د عالمانو اهميت]

عالمان د انبياؤ عليهم السلام وارثان دي. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارک دی. مثلاً

"العلم ميراثي وميراث الانبياء قبلي" (کنز العمال: ۱/ ۷۷)

**ترجمه** : علم زما او زما نه د لومړنيو پېغمبرانو ميراث دی.

"اکرموا العلماء فانهم ورثة الانبياء فمن اکرمهم فقد اکرم الله ورسوله" (خطيب بغدادي بحواله کنز العمال: ۱/ ۸۵)

**ترجمه** : دعلماؤ عزت کوی! ځکه چې هغه د انبياء کرامو وارثان دي. چا چې د عالمانو عزت وکړ، هغه د الله جل جلاله او د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم عزت او لويي وکړه.

"العالم امين الله في الارض" (کنزل العمال: ۱/ ۷۷)

**ترجمه** : عالم په ځمکه د الله تعالی امانتدار دی.

ددې فضائلو په رڼا کې چې اوس کوم خلک د علماء حق توهین کوي، د هغه په باره کې مفتیان لیکي: چې که د دین د علم په وجه څوک د عالمانو توهین کوي: نو دا کفر دی. د هغه لپاره د ایمان او نکاح تازه کول لازم دي. کنه نو فسق دی. توبه به ضرور باسي.(شامي: ۲/ ۲۸۶)

مولانا مفتي محمودالحسن ګنګوهي رحمه الله په خپله فتوی کې فرمایي: که د علماء حق په وجه څوک کنزل کوي: نو اوس د هغه د ایمان صحیح پاتې کېدل مشکل دي. د سوء خاتمې ډېره خطره ده. د هغه لپاره توبه کول لازم دي. (فتاوی محمودیه ۱۴/ ۸۱)

د مدرسو د اهمیت په باره کې ابن الحسن فرمایي:

(۱) قرآن، حدیث او د اسلامي علمونو او فنونو نه د علم وغیره د ربط او تعلق جوړولو واحده ذریعه هم دا مدرسې دي.

(۲) دجماعتونو لپاره دمناسب صلاحیت والا دخطیبانو، امامانو او دا سلامي تعلیماتو لپاره د استاذانو او د مدرسو لپاره د مدرسینو فریضه هم دا مدرسې سر ته رسوي

(۳) د اسلامي تعلیماتو په رڼا کې د ژوند په مختلفو برخو کې چې عوامو ته کومې مسئلې پېښېږي، د هغې د فقهې مطابق حل د پاره د دارالافتاء قیام او ددې لپاره د ماهرو تکړه عالمانو او اهل بصیرت مفتیانو د ورکولو او جوړولو ذمه واري هم دا مدرسې پوره کوي او همدا یې سر چینه ده. (دیني مدارس ماضي حال مستقبل ۷۳)

(۴) د احوالو د اصلاح کولو لپاره په معاشره کې د مختلفو طرفونو، اندازونو او طریقو سره کوم کوششونه چې کیږي. دهغې اصل بنیاد هم دا مدرسې دي (معارف القرآن)

بهر حال نن چې د دین کوم شکل او صورت پاتې دی. دا هم ددې مدرسو او عالمانو یو لوی احسان دی.

## د عربي ژبې اهمیت

دعربي ژبې اهمیت، ګټه او فایده د اهل علمو څخه پټه نده. روایات پدې متفق دي، چې په جنت کې د حضرت آدم علیه السلام ژبه عربي وه. کله چې یې دنیا ته تشریف راوړ: نو

هم به يې عربي لوسته. (معارف القرآن)

او الله تعالی چې څومره کتابونه نازل کړي. هغه ټول په لوح محفوظ کې په عربی ژبه کې وو: خو حضرت جبرئيل عليه السلام به ددې کتابونو ترجمه د هغه نبيانو په ژبه کې کوله. فرمايل به يې: د قرآن مجيد خصوصيت دا دی: چې څنګه په لوح محفوظ کې وو، هم هغه ډول په ځمکه نازل کړی شوی دی. (روح المعاني)

مولانا محمد يوسف بنوري رحمه الله د عربی د اهميت په باره کې فرمايي:

" د اسلام او د عربی ژبې په خپلو کې يو مضبوط تعلق دی. چې هغه د بيان محتاج نه دی، د اسلام قانون په عربی ژبه کې دی. د اسلام آسماني صحيفه قرآن حکيم په عربی ژبه کې دی. د اسلام د پېغمبر د خاتم الانبياء حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ژبه هم عربي ده. د حضور پرنور صلی الله عليه وسلم ټولو تعليماتو. هداياتو او ارشاداتو ټوله ذخيره په عربی ژبه کې ده "(بينات)

حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي:

"تعلموا العربية فانها من دينكم" (ايضاح الوقف والاستبداء ١/ ١٥)

**ترجمه** : عربي ژبه زده کړئ: ځکه چې دا ستاسو د دين څخه ده:

حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه ته حضرت عمر رضی الله عنه په يو خط کې وليکل چې:

"اما بعد فتفقهوا في السنة وتفقهوا فى العربية واعربو القرآن لانه عربي " (اقتضاء الصراط المستقيم: ٢٠٧)

علامه ابوالزناد رحمه الله د خپل پلار رحمه الله نه نقل کوي:

ماتزندق من تزندق بالمشرق الاجهلا بكلام العرب" (المدخل الي العربية)

**ترجمه** : په مشرق کې چې څومره زنادقه پېدا شوي، هغه د عربی ژبې نه د ناواقفيت په بنياد پيدا شوي وو"

حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله فرمايي چې:

لايقبل الرجل بنوع من العلوم مالم يتزين علمه بالعربية

**ترجمه** : "د علم د قبوليت لپاره د عربی ژبې سره مينه لرل ضروري دي"

حضرت ابن تيميه رحمه الله فرمايي: چې د عربي ژبې، ادب او د اسلامي عقيدو په منځ کې د جوړونو او هډوکو په شان مضبوط تعلق دی. (اقتضاء الصراط مستقيم: ۱۲۴)

امام رازي رحمه الله فرمايي: چې د قرآن او حديث علمونه د ضرورت مطابق زده کول فرض دي. عربي ژبه ددې لپاره د کنجی او چابی حيثيت لري؛ نو ددې حاصلول هم فرض دي.

علامه ابن نجفي رحمه الله فرمايي: چې که اهل اجتهاد او فتاوی والا د عربی لغت نه واقف نه وی: نو هغه به خپله هم ګمراه وی او نور خلک به يې هم ګمراه کړي وو. (الجصاص: ۳، ۲۴۵)

مطلب دا چې د عربی ژبې اهميت د شريعت په نظر کې ډېر زيات دی. چې انکار ترې نشي کېدی.

## د علامه وحيدالدين خان د کتابونو مطالعه کول

داهل سنت والجماعت عالمان فرمايي: چې د علامه وحيدالدين خان نظريې وخت په وخت بدليږي. د هغه د عقيدو او نظريې د اهل سنت والجماعت څخه مختلف دي. ددې وجې نه د هغه د کتابونو مطالعه کول د نقصان نه ډک دي. (د تفصيل لپاره د ډاکټر عثمان ندوي کتاب "وحيدالدين خان علماء اور دانشوروں کي نظر ميں" وګوری؛ ددې مطالعه به درته زياته فايده درکړي)

## تقليد شرک دی

د تقليد په تعريف کې حضرت حکيم الامت مولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله فرمايي: چې تقليد وايي: د چا قول صرف په ښه ګمان سره منل. چې دی به دده دا قول به د دليل سره موافق وي. د هغه څخه د دليل غوښتنه ونه کړي. (الاقتصاد: ۴، د تفصيل لپاره د ډاکټر عثمان ندوي کتاب "وحيدا لدين خان علماء اور دانشوروں کي نظر ميں" وګوری؛ ددې مطالعه به د عقلمندو لپاره زياته فايده منده وي)

او تقليد صرف په هغه مسئلو کې کيږي. چې په کتاب الله او سنت رسول الله کې په صراحت سره ملاوې نشي.

# تقليد ناجائز دی

که چيرې دا تقليد د حق په مخالف کار کې وشي. لکه څنګه چې به د مکې کفارو او مشرکينو د رسول الله د مخالفت لپاره د خپلو ګمراهو خلکو تقليد کولو؛ نو دا ناجائز دی او که چيرې په حق باندې د عمل کولو لپاره تقليد وکول شي. که وايې چې زه په خپله د مسئلو استنباط نشم کولی او مجتهد په کتاب او سنت زيات پوهيږي. ددې وجې نه د هغه نه د الله او رسولﷺ په خبرو باندې ځان پوه کول غواړم؛ نو دا تقليد بيا جائز دی.

لکه چې په قرآن مجيد کې راځي:

(۲)وَ اِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ۭ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِي الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ۭ(سورة النسآء آيت. ۸۳)

**ترجمه** : کله چې هغوی ته د امن يا د خوف څه معامله راپيښه شي؛ نو هغه ډېره مشهوره کړي، که چيرې د الله پيغمبر او په خپلو کې چې کوم اولی الامر دي، هغوی ته يې راوړي وي؛ نو په هغوی کې چې کوم اهل استنباط (يعنې مجتهدين) دي. هغوی به په ښه طريقه حقيقت معلوم کړی وو.

ډېرو احاديثو نه دا ثابتيږي چې سړی دې د مجتهد په خبره اعتماد وکړي او د هغه د وينا مطابق دې عمل وکړي.

# د يو امام تقليد ولې لازم دی؟

دې باره کې شاه ولی الله رحمه الله فرمايي: ددې څلورو واړو مسلکونو (حنفي. شافعي، مالکي او حنبلي) په اختيارولو کې يو لوی مصلحت دی. ددې ټولونه په اعراض کولو کې ډېر فسادونه مخې ته راځي، د ټول امت د ارباب علم او فضل چې د چا په قيادت او سيادت اتفاق دی. (عقدالجيد فی احکام الاجتهاد والتقليد :۱۳)

داسې يو قابل ذکر عالم او بزرګ به پيدا نشي چې هغه پدې څلورو واړو کې دَ چا هم تابعدار نه وي.

علامه نووي رحمه الله فرمايي: پدې څلورو امامانو کې د يو امام اتباع لازمه ده. که چيرې ددې خبرې اجازت وي. چې انسان کله غواړي او د کوم امام اتباع کول غواړي: نو کولی يې شي. ددې نتيجه به دا وي. چې خلک به مذهب کې آساني لټوي او د خپل نفس د خواهش مطابق به په هغې باندې عمل کوي، د حلال. حرام. واجب او جائز تولو اختيار به په خپله خلکو ته حاصل شي، آخر دا چې د شرعي حکمونو پابندي به نيمه پاتې شي. البته په لومړی زمانه کې د يو امام تقليد ځکه ضروري نه وو. چې په هغه زمانه کې فقهي مذهبونه په پوره توګه نه مدون او ترتيب شوي: خو اوس په ټولو دا لازمه ده. چې هغوی دې يو مسلک خوښ کړي او بيا دې د هغه مذهب تقليد جاري وساتي (المجموع شرح المذهب للنووي: ٩٠)

## د تقليد نه کولو نقصانونه

په خپله د غير مقلدينو تکړه عالم مولانا محمدحسين بټالوي د تقليد پرېښودلو په اړه لاندې نقصانونه ليکي:

" د پنځويشتو (٢٥) کالو د تجربې نه مونږ ته دا خبره معلومه شوه چې کوم خلک د بې علمی سره د مجتهد کيدو دعوه کوي او مطلقا تقليد نه مني. هغوی په آخر کې اسلام ته هم سلام وکړي او خدای په آماني ترې واخلي. د کفر او ارتداد اسباب نور هم ډېر دي: خو د ديندارو لپاره د بې دينه کېدو لپاره د کم علمی سره سره ترک تقليد ډېر دروند سبب دی. په خپله په اهل حديثو کې موجود بې علمه يا کم علمه خلک مطلقا د تقليد نه کولو دعوه لري. هغوی د دغه نتيجونه لري دي. ددې ډلې عوام وخت په وخت آزاد او خود مختاره جوړ شي." (اشاعة السنة ٤: ١٨٨)

د تقليد لپاره به ددې کتابونو مطالعه زياته فايده منده وي (١) تقليد ائمه مولانا محمد اسماعيل سنبهلي (٢) اجتهاد و تقليد مولانا قاري محمد طيب رحمه الله (٣) تقليد کی شرعی حيثيت مولانا محمد تقي عثماني.

## په ضعيف حديث باندې عمل کول جرم نه دی

په بخاري کې ټول صحيح احاديث دي: نو بيا مونږ ولې ضعيف احاديث قبول کړو؟.

**جواب** : مولانا عبدالرشيد نعماني رحمه الله ليکلي:

" د صحيحو حديثونو د معيار پيمانه صرف په بخاري او مسلم کې نه ده. بلکې د حديث د صحت دارومدار پدې دی، چې د هغې اسناد د اصول حديث په شرطونو باندې پوره وي؛ نو بيا امام بخاری او امام مسلم نه علاوه په سوونو د حديثو امامانو د حديثونو مجموعې ترتيب کړي، په هغې کې چې کوم حديثونه په مذکوره شرطونو پوره وخيژي، هغه صحيح دي او دا هم ممکنه ده، چې پدې کتابونو کې يو حديث داسې هم وي، چې په سند کې هغه د امام بخاري او امام مسلم نه د لوی ميعار والا وي، د مثال په توګه ابن ماجه په صحاح سته کې شپږم نمبر دی: خو پديکې څه داسې حديثونه دي، چې د هغې سند داسې اعلی دی، چې د بخاری او مسلم هم داسې نه دی." (ما تمس اليه الحاجة)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي:

د اعمالو په فضايلو کې ضعيف حديث باندې عمل کول هم صحيح دي، هغه ته به پوره ثواب ملاويږي"

علامه سيوطي رحمه الله فرمايي: " په حکمونو کې په همدې عمل کول صحيح دي: خو پديکې به احتياط وي" (طحطاوي، على الرد المختار: ١/ ٨٧)

ابن قيم رحمه الله او علامه سيوطي رحمه الله فرمايي: " چې په ضعيفو حديثونو باندې عمل کولو ته به مستحب ويل کيږي" (اعلام الموقعين، تقريب التهذيب)

مولانا ظفر احمد عثماني رحمه الله فرمايي:

" په در مختار کې دي: په فضايل اعمال کې ضعيف حديث باندې عمل کېدی شي، علامه ابن عابدين شامي رحمه الله ددې په حاشيه کې ليکي: ابن حجر رحمه الله په شرح اربعين کې فرمايي: چې په ضعيف حديث باندې عمل ځکه صحيح دی چې که هغه په حقيقت کې صحيح وي؛ نو د هغې حق په عمل کولو سره ادا شو. کنه نو پدې باندې عمل کولو سره د حلال او حرام يا د غير حق ضايع کول مرتب نه وي." (مقدمه اعلاء السنن" په ضعيفو روايتونو د عمل کولو په سلسله کې د اعلاء السنن مقدمه ډېره فايده منده ده)

# د ښځو په جمع کې شريکېدل

د احنافو په نزد د ښځو جماعت ته د لمونځ لپاره تلل مکروه تحريمي دي. ځکه چې په حديث کې راځي:

صلواة المرأة في بيتها افضل من صلواتها في حجرتها وصلواتها في حجرتها افضل من صلواة في حجرتها.

**ترجمه** : حضور ﷺ وفرمايل: چې ستاسو د ښځو لمونځ په کور کې زيات بهتر دی.

همدا ډول حضرت عايشه رضي الله عنها فرمايي:

لوكان رسول الله صلى الله عليه وسلم راى ما احدث النساء لمنعهن المسجد كمامنعت نساء بنی اسرائيل (بخاري: ١/ ١١٩ .مسلم: ١/ ١٨٢)

**ترجمه** : که چيرې نبی کريم ﷺ د ښځو دا اوسنی حالت کتلی وی: نو ضرور به يې جماعت ته د تګ نه منع کول. څنګه چې د بنی اسرائيلو ښځې منع شوي وې.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به ښځې د جمعې مبارکې په ورځ د جماعت نه بهر ويستلې او فرمايل به يې: چې خپلو کورونو ته ځئ: هغه ستاسو لپاره زيات بهتر دی.(مجمع الزوائد: ١/ ١٥٦)

همدا ډول نبي کريم ﷺ د حضرت ابو حميد ساعدي کوروالا چې کله نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه،وې ويل: چې اې د الله رسوله ﷺ! زه ستاسو سره لمونځ کول خوښوم: نو حضور ﷺ ورته وفرمايل: ما ته معلومه ده چې ته زما سره لمونځ کول خوښوې: خو ستا لمونځ ستا د کور په کمره (حجره) کې غوره دی. ستا د کور نه او ستا په کور کې لمونځ کول بهتر دي. د قوم په جماعت کې د لمونځ کولو نه، د قوم په جماعت کې لمونځ کول بهتر دي. زما سره په جماعت کې د لمونځ کولو نه، ددې وينا د اورېدو نه وروسته د ابوحميد ساعدي رضي الله عنه کور والا بيا کله هم جماعت ته رانغله حتى لقى الله عزوجل تر دې چې هغه وفات شوه.(مسند احمدترغيب وترهيب:٥٨،مجمع الزوائد: ١/ ١٠٠)

همدا ډول په نورو ډيرو حديثونو کې هم ښځې جماعت ته د راتلو څخه منع شوي. الترغيب والترهيب: ١/ ٦٩. ١/ ١٨٨،عمدة القاري: ٢/ ٢٨،مجمع الزوائد: ٢/ ٣٣وغيره

کتابونه وګورئ؛ او يوه بله بهترينه رساله هم ليکل شوې ده "خواتين اسلام کی بهترين مسجد" مولانا حبيب الرحمن قاسمي استاد حديث دارالعلوم ديوبند.

# د ښځو امامت کول

د ښځو جمع پداسې حالت کې چې ښځه امامت کوي. ددې ثبوت د خيرالقرون څخه تر اوسه پورې نه ملاويږي. د حضرت عايشې رضي الله عنها روايت دی

**لا خير في جماعة النساء** (اعلاء السنن ۴/۲۱۴. و مجمع الزوائد: ۱/۱۵۵. طبراني في الاسط. مسند احمد)

**ترجمه**: د ښځې په جمع کې څه خير نشته"

ښځې نه سړو ته لمونځ ورکولی شي او نه ښځو ته. (اعلاالسنن: ۴/۲۱۵)

همدا ډول حضرت علي رضي الله عنه فرمايي: چې ښځې دې امامت نه کوي. (مدونة الکبری: ۱/۸۶)

پدې باندې د ټولو امامانو اتفاق دی: چې دا په څه ځايونو کې د ځينو صحابياتو څخه نقل دي چې هغوی به امامت کولو. دا عمل د اسلام په لومړي دور کې وو. بيا منسوخ شو. د ابوداؤد په شرح بذل المجهود کې راغلي:

**ويروى في ذلك احاديث ولكن كانت في ابتداء الاسلام ثم نسخت** (بذل المجهود: ۱/۳۲۱)

ترجمه: روايت شوی. چې ښځو به امامت کولو؛ نو هغه په ابتداء د اسلام کې وو. بيا منسوخ شو"

همدا ډول مولاناعبدالحی لکهنوي رحمه الله فرمايي:

**"وحمل فعلها اى عائشة رضى الله تعالى عنها في الجماعة في ابتداء الاسلام قال في الفتح الحاصل انه منسوخ** (حاشية هدايه: ۱/۱۹۳)

**ترجمه**: د حضرت عايشې رضي الله عنها عمل به محمول کولی شي چې په ابتداء د اسلام او فتح کې دی، چې د هغې حاصل دا دی: دغه عمل په اول کې وو، بيا منسوخ شو"

۱ دا ويل چې دين مشکل نه دی، مولويانو موږ ته سخت کړی دی.

(د دين کومه يوه مسئله چې هم د کوم يو امام څخه اخلې؛ نو اختسلی يې شی؛ او موږ د دين د دايرې څخه نه وځو)

د اهل سنت والجماعت عالمان فرمايي: چې د هر يو امام اتباع او تقليد واجب دی، ځکه چې د نفس پرستی او خواهشاتو زمانه ده. د هر امام په مسلک کې څه آساني شته، مشکلات هم ورسره دي، که چيرې د هر يو امام په آسانه مسئلو عمل وکړی شي؛ نو خلک به د خپل نفس په خواهشاتو عمل شروع کړي. علامه نووي رحمه الله فرمايي: په هر سړي لازم دي چې هغه يو مسلک خوښ کړي او بيا صرف د هغه تاکلي مسلک تقليد وکړي. (المجموع شرح المذهب للنووي :ص٩٨)

حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمايي:

" وبعدَ المِأتين فِيهم تَهذيب للمجتهِدين وقل من كانَ لايعتمد على مجتهدٍ وكان هذا هوَالواجبُ فی ذلك الزمان."الخ

**ترجمه**: "ددويمې صدی په تهذيبونو کې د متعين مجتهد د اتباع رواج شوی وو او ډېر کم خلک داسې وي، چې هغوی د يو خاص مجتهد په مذهب باندې اعتماد نه کوي، پدې زمانه کې هم دا وجب او ضروري وه."

ددې وجې نه حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه پيشن گويي کړې وه:

انتم اليوم فی زمان الهوی فيه تابع لعلم وسيأتی عليكم الزمان يكون العلم فيه تابع للهوی (احياء العلوم: ١/ ٨٦)

**ترجمه**: "نن تاسو پداسې زمانه کې يی! چې په هغې کې د نفس خواهشات د علم تابع دي. په تاسوبه داسې زمانه راشي.چې په هغې که به علم د نفساني خواهشات تابع وي."

د نفس خواهشات په مزه مزه سړی کفر او الحاد ته رسوي. ددې ځلورو واړو امامانو مثال د علاج د ځلورو طريقو په شان دی. هغه ځلور طريقې دا دي: (١) ايلوپيتهک (٢) هوميوپيتهک (٣) طب يوناني (۴) ويدک.

د ټولو علاجونو په طريقو کې اختلاف دی، د ټولو مقصد د انسان صحت دی.
همدا ډول د څلورو واړو امامانو مقصد هم د جنت لاره ښودل دي. بيا چې يو سړي يوه ورځ د يو علاج او بله ورځ د بل علاج کوي؛ نو دې سره به د صحت په ځای په ناروغی کې اخته شي، په يوه طريقه علاج کولو سره به فايده ورته وشي. همدا ډول د يو امام په تابعدارۍ کې به فايده وي. يوه مسئله د يو امام او بله مسئله د بل امام ددېنه به نقصان کيږي. فايده نشي کيدی.

(هره ورځ سورة يسين لوستل د صحيح حديث نه ثابت نه دي. په نفلونو کې اصل صرف چاشت او تهجد دي، د اشراقو او اوابينو څه حيثيت نشته)

## د سورة يسين ثبوت د صحيح احاديثو څخه

محدثين حضرات فرمايي: چې يسين شريف لوستل دا د ډېرو صحيحو احاديثو څخه ثابت دي. دا هم چې سورة يسين د اکابرينو د هرې ورځې معمول وو. ددې فضائل هم ډير دي. مثلا:

(١) سورة يسين د قرآن مجيد زړه دی. (ابوداؤد. مسند احمد. ابن ماجه. نسائي. حاکم)

(٢) عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمايي: چې د حضور ﷺ دا ارشاد ما ته رارسېدلی دی: چې کوم سړی سورة يسين د ورځې په پيل کې ولوستل شي. د هغه د تمامې ورځې ضررتونه به پوره شي. (مسند دارمي)

(٣) چا چې د شپې له لورې د الله د رضا لپاره سورة يسين ولوست. د هغه مغفرت به وشي. (مؤطأ امام مالک. ابن حبان. ترغيب لابن السنی)

(۴) کوم سړي چې د شپې سورة يسين ولوست. بيا هغه مړ شو؛ نو هغه شهيد مړ شو. (مظاهر حق. شرح او ترجمه مشکوة)

(۵) په ډېرو حديثونو کې دا ډول فضيلتونه راغلي دي. (مظاهر حق. معارف القرآن: ٧/ ٦٢، فضائل قرآن (شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله) کې يې هم کتلی شي.)

## د اشراقو ثبوت د صحيح احاديثو څخه

(۱) کوم سړی چې د سهار لمونځ وکړي. بیا په هغه ځای کېناست. ذکر یې کولو. بیا یې دوه رکعته (د اشراق) وکړه: نو هغه ته به د یو حج او عمرې ثواب ملاویږي. (الترغیب والترهیب: ۱/ ۱۶۴. ترمذي)

(۲) همدا ډول حضرت سهل بن معاذ د خپل پلار نه روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم سړی چې د سهار د لمونځ نه فارغ شي. بیا په خپل ځای کېنښني. بیا د اشراق د دوه رکعته لمونځ کولو پورې یې د ژبې نه د خیر د خبرو څخه سېوا بل څه نه وي وتلي؛ نو د هغه ګناهونه که د سمندر د ځګ برابر ولې نه وي؟ ورته معاف به کړی شي. (ابوداؤد. و کذا في مسند احمد)

## د اوابینو د لمونځ ثبوت هم د صحیح احادیثو څخه

د اوابینو ذکر هم په احادیثو کې ډیر راغلی:

(۱) په یو روایت کې راځي: کوم سړی چې د ماښام نه وروسته شپږ رکعته داسې ولولي. چې د هغې په منځ کې څه خرابه خبره ونکړي؛ نو دا شپږ رکعته د هغه د دوولسو کالو د عبادت برابر شمېرل کیږي. (ابن ماجه. ترمذي. ابن خزیمه. بحواله الترغیب والترهیب: ۱/ ۲۲۷)

(۲) د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دی: چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم سړی چې د ماښام نه وروسته د اوابینو شل رکعته ولولي: نو الله تعالی به د هغه لپاره په جنت کې یو کور جوړ کړي. (ترمذي و هکذا فی الترغیب والترهیب)

## دریمه نظریه: د ښځو لپاره وېښته کاټول جائز دي

(د وېښتو کاټولو هیڅ ممانعت نشته. په امهات المؤمنین کې د یوې وېښته کاټ شوي وو)

**جواب**: که چیرې کومه ښځه وېښته کاټوي: نو د عذر په وجه به کاټیږي. لکه د حج په موقع یا د څه بیمارۍ په وجه. د ازوج مطهراتو دا عمل په ضرورت حمل دی. ځکه

چې ازواج مطهرات په ټول عمر کې د بل چا سره نکاح نه شوه کولی. ددې وجې نه هغوی ﷺ تر آخري عمره پورې په عدت کې وې. ددې وجې نه به هغوی د ترک زینت لپاره وېښته کاټول؛ خو بیا هم د هغوی وېښته د سرو د وېښتو په شان نه وو. د هغوی وېښته وفره وو. وفره هغه وېښتو ته وایي چې د اوږو نه تر ښکته پورې وي؛ خو د ازواج مطهرات نه علاوه د نورو ښځو عدت څلور میاشتې او لس ورځې وي. ددې وجې نه د هغوی وېښته کاټول به د سړو سره مشابه وي. بل لوري ته به د تشبه بالکفار په وجه ناجائز وي. په ټولو ازوج مطهراتو کې صرف د حضرت عایشې ﷺ وېښته واړه وو. بل طرفته دا خبره هم ده. چې د حضرت عایشې ﷺ وېښته مبارک د بیماري له امله واړه شوي وو. (جمع الفوئد ۱: ۳۱۲)

ددې حدیث په باره کې محدثینو هم بحث کړی او دې حدیث ته یې صحیح نه دي ویلي. (د تفصیلي جواب لپاره امداد الاحکام ۴: ۳۵۴ وګورئ)

دا ویل چې ښځې دې د دین د خپرولو لپاره د کور نه ضرور بهر ووځي.

(د محترمې خپل عمل د طالباتو لپاره حجت دی. د محرم نه بغیر په تبلیغي دورو کې تلل او د قیام اللیل لپاره د شپې وتل او د میډیا په ذریعه تبلیغ کول)

د ښځو سفر د محرم سره علماء کرامو حق او جائز ګرځولی. همدا خبره د ډېرو روایتونو څخه ثابته ده. مثلا:

"عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لاتسافر المرأة الا مع ذی محرم" (بخاري: ۱/ ۲۵۰)

**ترجمه**: حضرت عباس ﷺ د نبي کریم ﷺ ارشاد نقل کوي. حضور ﷺ وفرمایل: چې یوه ښځه دې هم بغیر د محرم نه سفر نه کوي

په یو بل روایت کې د حضور ﷺ ارشاد دی:

عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال لایحل لامراة تؤمن بالله والیوم الاخران تسافر مسیرة یوم ولیلة ولیس معها ذو محرم" (بخاري ۱: ۱۴۸. وکذا مسلم ۱: ۴۳۳)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ د حضور ﷺ ارشاد نقل کوي: حضور ﷺ وفرمایل: چې

په الله او رسول باندې ايمان لرونکي ښځو لپاره حلال نه دي. چې هغه بغير د محرم نه د يوې ورځې يا يوې شپې په اندازه سفر وکړي.

ددې وجې نه د امام ابويوسف ﷫ په مذهب که چيرې د امن حالات وي. ديندارې وي؛ نو د درې ورځو د مسافت په برابر ښځه سفر کولی شي او که د خطرې حالات وي. لکه څنګه چې نن سبا دي؛ نو پداسې حالاتو کې دې ښځه يوه ورځ او يوه شپه هم د محرم نه بغير سفر نه کوي. د نن سبا عالمان همدا وايي: چې ښځې دې بغير د محرم نه د کور نه بهر نه وځي. ځکه چې د فتنو زمانه ده.

دا ويل چې د آدابو او مستحباتو خيال ساتل ضروري نه دي.

مثلا د ناپاکی په حالت کې قرآن مجيد ته ګوتې وړل. يا يې لوستل جائز دي. د فرحت نسيم هاشمي نظريه. په نوای وقت اخبار په ١٧ مارچ ٢٠٠٢ کې چاپ شوې ده.

علماء فرمايي: چې د ناپاکی يعنې د حيض او نفاس وغيره په حالت کې د ښځې لپاره قرآن ته لاس وړل او يا هم د قرآنکريم تلاوت کول ټول ناجائز عملونه دي. بغير اودا سه هم قرآن ته لاس وړل حرام دي؛ خو د تلاوت کولو اجازت شته. همدا خبره د قرآن. احاديثو. د جمهور امت او د ائمه اربعه وو د مذهب نه معلوميږي. لکه:

لَا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ (سورة الواقعة)

**ترجمه**: لاس دې نه لګوي. دې قرآن سره مګر پاک خلک.

(١) "عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لایمس القرآن الا طاهر" (طبراني. مجمع الزوائد: ١/٢٧٩)

**ترجمه**: د حضرت عبد الله بن عمر ﵄ څخه روايت دی: رسول الله ﷺ وفرمايل چې قرآن مجيد ته دې د پاک سړي نه سېوا بل څوک لاس نه وروړي.

(٢) عن حکیم بن حزام رضی الله تعالی عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم لما بعثه الی الیمن قال لاتمس القرآن الا وانت طاهر" (مستدرک حاکم ٣/ ٤٨٥. دارقطني)

**ترجمه**: حضرت حکيم بن حزام ﵁ څخه روايت دی نبي کريم ﷺ چې کله هغه د يمن حاکم جوړ کړ او هلته يې ولېږلو: نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې ته قرآن ته لاس مه

وړه؛ خو پداسې حالت کې چې ته پاک يې۔
همدا ډول د حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام راوړلو واقعه ده. چې حضرت عمر رضی الله عنه خپلې خور او اوښې ته وويل: هغه کتاب چې تاسو لوست ما ته يې وښايې؛ پدې خبره د هغوی خور وفرمايل: چې ته ناپاک يې او د الله تعالی کتاب ته صرف پاک خلک لاس لګولی شي. ددېنه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه غسل يا اودس وکړ. بيا د هغوی خور هغوی ته هغه پاڼه ورکړه، چې په هغې سورة طه ليکل شوی وو (دار قطني: ۱ ۱۲۳)
علامه محمد يوسف بنوري رحمه الله فرمايي

" ذهب الجمهور وابوحنيفة والشافعي واحمد رحمهم الله تعالى واكثر العلماء والائمة الى منع الحائض والجنب عن قرآءة القرآن قليلها وكثيرها (معارف السنن: ٤٤٥)

**ترجمه** : " جمهور عالمان، امام ابوحنيفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام احمد رحمه الله، اکثر عالمان او امامان ټول د حيض او جنابت په حالت کې د قرآن د تلاوت منع کوي. هغه زيات وي او که کم۔
همدا ډول مفتي اعظم پاکستان مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايي:
د جمهور امت او څلور واړه امامانو پدې باندې اتفاق دی. چې قرآنکريم ته د لاس لګولو لپاره پاکوالی شرط دی. ددېنه خلاف کول ګناه ده. د ظاهري نجاست نه د لاس وينځل، د اودس په حالت کې، د جنابت په حالت کې نه کېدل، ټول پکې شامل دي.
همدا د حضرت علي رضی الله عنه، ابن مسعود رضی الله عنه، سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه، سعيد بن زيد رضی الله عنه، علامه زهري، نخعي، حماد، امام مالک، امام شافعي او امام ابوحنيفه رحمهم الله تعالى مسلک دی (معارف القرآن ۸: ۲۸۶)

## د کمرې تصوير (عکس) جائز دی

چونکې د کمرې تصوير عکس دی. ددې وجې نه په کمرې باندې عکس اخستل مباح دي. هغه مجسمې، نقشې او تصويرونه چې هغه بعينه نه وي. د هغې مقصد تعظيم او شرک کول نه وي؛ نو داسې تصويرونه ناخوښه نه دي (کيسټ، اسلام او فوټو ګرافي)

علماء فرمايي چې د جاندار (روح والا) تصوير حرام او ناجائز دی. د پاکستان لوی مفتي محمّد شفیع رحمه الله فرمايي: څنګه چې تصوير اخستل ناجائز دي. همدا رنګه د فوټو نه تصوير جوړول يا يې په پريس باندې چاپول او يا يې په سانچه او مشين وغيره کې اچول دا ټول نا جائز دي (تصوير کې شرعي احکام: ۶۱)

په ابتداء کې د ځينو خلکو اختلاف وو. چې په کمرې سره تصوير اخستل جائز دي: خو د هغه علماؤ رجوع مفتي محمدشفيع رحمه الله په خپل کتاب (تصوير کې شرعي احکام: ۶۱) کې کړې ده. (مقدمه تصوير کې شرعي احکام)

ځکه چې په احاديثو کې مطلقا تصوير ته ناجائز ويل شوی ددې وجې نه به پديکې هر قسمه تصوير داخل وي. لکه:

عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ان الذین یصنعون هذه الصور یعذبون یوم القیامة، یقال لهم احیوا ما خلقتهم (بخاري شريف ۲/ ۸۸۰)

**ترجمه**: " حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: دا خلک چې تصوير جوړوي د قيامت په ورځ به ذوی ته عذاب ورکول کيږي. ورته وبه ويل شي. چې دا کوم صورت تا پيدا کړی، پديکې ساه هم واچوه!"

د غير ذي روح تصوير جوړول جائز دي، لکه څنګه چې په حديث پاک کې راځي. حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته يو سړی راغی، هغه ووېل: اې ابن عباس رضي الله عنه زه يو داسې سړی يم. چې زما د معاش ذريعه زما د لاسونو هنر دی. زه تصويرونه جوړوم. آيا زما لپاره دا کار کول صحيح دي؟

ابن عباس رضي الله عنه ورته وفرمايل: زه به هغه خبره تاته وکړمه کومه خبره چې ما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه اورېدلې ده: کوم سړی چې تصوير جوړ کړي. هغه ته به الله تعالی عذاب ورکوي. تر دې چې هغه په دغه تصوير کې روح وانچوي، هغه به پديکې روح کله هم وانچول شي. چې دا يې واورېدل: نو د هغه رنګ زيړ شو او هغه سړي يوه اوږده ساه واخسته. ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل: ښه به وي که ته خامخا تصوير جوړوې: نو ددې ونو او د داسې شيانو تصوير جوړه چې په هغې کې روح نه وي. (مشکوة: ۳۸۶)

همدا مذهب د جمهور امت او څلورو واړو امامانو دی. لکه څنګه چې علامه بدرالدين عيني رحمه الله فرمايي:

"وفي التوضيح قال اصحابنا وغيرهم تصوير صورة الحيوان حرامٌ اشد التحريم وهو من الكبائر سواء صنعة لمايتهن او بغيره فحرام بكل حال لأن فيه مشابهة بخلق الله وسواء كان في ثوب او بساط او دينار او درهم او فلس او اناء او حائط واما ما ليس فيه صورة حيوان كالحجر ونحوه فليس بحرام سواءٌ كان في هذا كله ماله ظل وما لا ظل له وبمعناه قال جماعة العلماء فيهم مالكٌ والسفيان وابو حنيفة وغيرهم انتهى" (عمده القاري ۲۲/۷۰)

**ترجمه**: په توضيح کې زمونږ عالمانو ويلي چې د حيوان تصوير اخستل ناجائز دي. دا په لويو ګناهونو کې شمېرل کيږي. هغه که د کمرې په ذريعه وي. که ددېنه بغير وي. په هر حال کې حرام دي. مشابهت د خلق الله په وجه دی. هغه که په جامه. قالين. درهم. روپو. لوښو او دېوال کې وي او که د حيوان شکل نه وي. لکه کاڼي او نور څه وي: نو دا حرام نه دي. د هغې سورې وي او که نه. همدا خبره جمهورو عالمانو. امام مالک رحمه الله، سفيان ثوري رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله وغيره کړې ده."

خلاصه دا چې د جمهور امت او څلورو واړو امامانو په نزد د تصوير اخستل که په هر حال کې وي حرام دي. فوټو ګرافي دا هم د تصوير په حکم کې ده، ددې په اړه د ټولو عالمانو اتفاق دی. (د تصوير په مسئله باندې د پاکستان د لوی مفتي محمد شفيع رحمه الله د رسالې "تصوير کې احکام" مطالعه وکړئ!)

## د پردې په باره کې رخصت دی

د مخ پرده نشته، د اوښې. د ترور خاوند وغيره څخه هم پرده نشته، همدا رنګه د واده شوو هلکانو څخه پرده نشته. په غير واده شوو هلکانو کې احتياط کول پکار دي.

د پردې حقيقت دا دی چې سرې دې ښځې ته په غور سره نه ګوري. ښځه سړي ته کتلی شي، په بد نظر سره کتل بد دي او په ښه نظر سره کتل څه خرابه خبره نه ده. (کيسټ شرعي پرده)

دا نظريه د قرآن او حديث په لحاظ غلطه ده. ځکه چې په قرآن کې د الله تعالى ارشاد دی: "يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ"

ددې په تفسير کې محمد بن سيرين رحمه الله وغيره فرمايي: چې ښځه به صرف يوه سترګه خلاصوي او باقي جسم به پټوي، همدا خبره د ډېرو احاديثو څخه معلوميږي. چې ښځه به د غير محرمو سړو څخه خپل مخ پټوي.

په يو روايت کې راځي: چې حضرت عايشه رضي الله عنها فرمايي: چې د حج په ورځو کې به کله څوک زمونږ مخې ته تېريدل؛ نو مونږ به خپل مخونه پټول.

همدا رنګه په يو بل روايت کې راځي: چې يوه ښځه د ام خلاد رضي الله عنها په نوم چې کله هغې ته د خپل ځوی د شهادت خبر ملاو شو؛ نو هغه د تحقيق لپاره د حضور ﷺ په خدمت کې حاضره شوه، د هغې په مخ باندې نقاب وو. چا وويل: ددې پرېشانی په حالت کې يې هم په مخ باندې نقاب دی: نو ام خلاد رضي الله عنها وفرمايل: زما ځوی ورک شوی دی، زما غيرت خو نه دی ختم شوی. (ابوداؤد: ٨/ ٣٤٤)

د فقهاؤ وينا ده: چې ښځه مخ، لاس او قدم ښکاره کولی شي. دا حکم د لمونځ په باره کې دی. چې په لمونځ کې دا ښکاره کړي؛ نوځه ګناه نشته. همدا رنګه که د محرم مخامخ ښکاره کړي: نو څه ګناه نشته او دا چې غير محرم څخه د پردې حکم دی: نو پديکې ددې ټولو د پټولو حکم د قرآن او حديثو له مخې ضروري دي.

خو تر کومه چې د اوښي او د ترور د خاوند او د واده شوي خادم وغيره تعلق دی؛ نو دا ټول نامحرم دي، د دوی نه مکمل پرده کول ضروري دي، ځکه چې دا غير محرم دي. (د نور وضاحت لپاره "شرعي پرده کيون اور کيسي؟" کتلی شی)

## څلورمه نظريه: د سړي او ښځې د لمونځ طريقه يوه ده

دا ويل چې: حضور ﷺ فرمايي: لمونځ داسې کوی: څنګه چې ما په لمونځ کولو ګوری، پديکې سړو او ښځو ته يو شان خطاب دی.

دا خبره هم د امت د اجماع خلاف ده. چې د ښځو د لمونځ طريقه د سړو څخه بدله ده. پدې خبره باندې ډېر حديثونه. صحابه کرام رضي الله عنهم. تابعين رحمهم الله او د

څلورو واړو امامانو مذهبونه متفق دي.

عالمانو د سړو او ښځو په لمونځ کې دا فرق ښودلی.

(١) ښځو ته په ابتداء کې لاسونه صرف تر سینې پورې پورته کول وو. پدیکې هم د ټولو اتفاق دی.

(٢) په اتفاق د عالمانو سره ښځې به په سینه باندې لاسونه تړي (السعایه ٢ ١٥٦)

(٣) ښځې به د ښي لاس تلی د چپ لاس په شا باندېږدي. پدې هم د ټولو اتفاق دی. سړي به د کوچنی او کتې ګوتې څخه حلقه جوړوي او د چپ لاس مړوند به نیسي (شامي ١ ٣٣٩)

(٤) سړو ته په رکوع کې دومره ښکته کېدل پکار دي. چې ملا او کوناتي ټول برابر شي: خو ښځو ته صرف دومره ښکته کېدل پکار دي، چې د هغې لاسونه پنډو ته ورسیږي. (فتاوی عالمګیریه ١: ٧٨)

(٥) سړو ته به د رکوع په حالت کې په خلاصو ګوتو پنډې نیول پکار دي: خو ښځو ته ګوتې خلاصول نه دي پکار. (فتاوی عالمګیریه ١: ٧٤)

(٦) د سړو لپاره په رکوع کې څنګلې د ترخونو څخه بیل ساتل پکاردي. ښځو ته څنګلې د ترخونو سره پیوستول پکار دي

(٧) په سجده کې سړو ته څنګلې د ځمکې څخه بیلې ساتل پکار دي. ښځو ته د یو ځای کولو حکم دی. (فتاوی عالمګیریه ١ ٧٥)

(٨) سړو ته په سجده کې شا د پتونانو څخه او لاسونه د ترخونو څخه بیل ساتل پکار دي. ښځو ته یې یو ځای کول پکار دي (فتاوی عالمګیریه ١/ ٧٥)

(٩) سړو ته د سجدې په حالت کې د دواړو پښو ګوتې درول پکاردي. ښځو ته داسې نه دي کول پکار. (فتاوی عالمګیریه ١/ ٧٥)

(١٠) سړو ته په التحیات کې په چپه پښه کښیناستل پکار دي او ښی پښه په ګوتو باندې درول پکار دي. ښځو ته د چپ کناتي په طرف کیناستل پکار دي او دواړه پښې ورته ښي طرفته باسل پکار دي. (فتاوی عالمګیریه ١: ٧٥)

دا لس فرقونه په احادیثو کې هم بیان شوي دي.

# د الهدیٰ انټر نیشنل په باره کې د مفتیانو رایې

د اسلام آباد د ښځې په استفتاء باندې د شیخ الحدیث او رئیس د دارالافتاء دارالعلوم کراچی حضرت مولانا مفتی محمّد تقي عثماني صاحب د الهدیٰ انټرنیشنل په باره کې جواب:

**الجوابُ حامداً ومصلّیًا:**

په سوال کې چې د کومو نظریو ذکر شوی. هغه که د هر چا وي او هر څوک وي. اکثري عقیدې یې غلطي دي. ځینې عقیدې یې پکې په واضحه توګه د ګمراهی دي. د مثال په ډول (۱) د امت اجماع ته اهمیت نه ورکول. (۲) علی الاطلاق تقلیدکول شرک ګڼل. (۳) د پاتې شوو لمونځونو د قضاء راګرځولو ضرورت نشته.

مطلب یې دا دی: د څوارلس سوه کالو په تاریخ کې د مسلمانانو اکثریت د یو امام تقلید کړی.

(د فرحت هاشمي) ځینې نظریې د جمهور امت څخه خلاف دي. لکه درې طلاقونه یو منل. څه یې بدعت دي: لکه صلوٰة التسبیح په جمع کول. یا د قیام اللیل په اهتمام سره کول. یا ښځو ته په جمعې سره د لمونځ کولو ترغیب کول. څه پکې ډیر ګمراه کن دي. لکه څوک چې قرآ نکریم صرف په ترجمه لولي. د هغه لپاره د اجتهاد دعوه ضروري ګڼل. یا خلک دېته تیارول چې کوم مذهب کې آساني وي. هغه پخپله خوښول. یا په چا باندې خپل عمل حجت منل. پدیکې څه نظریې د فتنې نه ډکې دي. لکه د عالمانو او فقهاؤ څخه خلک بد ګمانه کول. د دین چې کومې تعلیمي ادارې د اسلام د تعلیم د خپرلو لپاره کار کوي. د هغو اهمیت د خلکو د ذهن نه کمول، د لږ وخت لپاره کورس کول د ټول دیني علم لپاره کافي ګڼل. دا کومې مسئلې چې مجتهد د قرآ ن او حدیث څخه د خپل جور علم په بنیاد راویستي. هغه باطل ګڼل، هغه د قرآن او حدیث څخه خلاف ګڼل او پدې باندې ډیر زیات زور ورکول.

کوم شخصیت یا اداره چې دا پورته ذکر شوي نظریې ولري. ددې تعلیم او تبلیغ کوي. هغه نه صرف دا چې ډیر د ګمراهی څخه ډک او د فتنو حامل دی. بلکې

ددېنه په مسلمانانو کې د افتراق او اختلاف خپريدو يوه غټه خطره ده. که څوک د آسانيو په لالچ په دين کې داسې کوششونه کوي، بيا به د ذکر شوو نظريو په وجه هغه د ګمراهی ښکارندوی وي. لهذا کومه اداره يا شخصيت چې ددې نظريې حامل وي او تبليغ يې کوي. په خپلو درسونو کې دا قسم ذهنونه جوړوي. د هغوی په درسونو کې شرکت کول او ددې دعوت ورکول ددغه نظريو تاييد کوي. چې په يو شان هم جائز نه دي. ددې سره سره چې د هغوی سره هر قسم سندونه وي. د ګلاسکو يونيورستی ډګري په خپله هم د اسلامي علومو په لحاظ سره څه حيثيت نه لري. بلکې د غير اسلامي ملکونو په يونيورسټو کې مستشرقينو د اسلامي تحقيق په نوم په اسلامي حکمونو کې شکونه او تشبيهات پيدا کړه، د دين د تحريف يوه سلسله د ډيرې زمانې شروع ده. دې غير مسلمو مستشرقينو په اسلام کې د تحريف پيدا کولو کوششونه کړي، ددې نصاب او نظام يې پداسې اندازې سره جوړ کړی. چې ددې لاندې تعليم حاصلوونکي. الاماشاء الله اکثره د دجل او فريب ښکار شي. په عالم اسلام کې فتنې پيدا کوي. لهذا د ګلاسکو يونيورستی کومه يوه ډګري نه صرف دا چې د کوم سړي د مستند عالم جوړيدو څه دليل دی. بلکې ددېنه په ديني علمونو کې شک او شبهات پيدا کيدل هم څه لرې نه دي. بل طرفته د الله تعالی داسې بندګان هم دي. چې ددې يونيورسټيو څخه يې ډګريانې حاصلې کړي دي او د فاسدو عقايدو څخه بچ پاتې شوي دي: خو د هغوی شمېر ډېر کم دی: نو بيا دا چې دا ډګري نه د چا د مستند عالم کېدو علامه ده او نه صرف ددې ډګری په وجه څوک مطعون کولی شي. پدې شرط چې د هغه عقايد او اعمال صحيح وي.

دا پورته ذکر شوی جواب په هغو نظريو مشتمل دی. چې سائلې په خپلې استفتاء کې ذکر کړي دي. اوس چې کوم سړی ددې نظرياتو قائل دی. خپل حکم دې خپله معلوم کړي په جواب ورکونکي يې حکم ښکاره کول لازم نه دي. والله سبحانه اعلم

احقر محمد تقي عثماني

دارالافتاء دارالعلوم کراچی

۲۱۴/ ۴/ ۱۴۲۲ه

# د جامعه فاروقیه کراچي فتوی

د الهدی انټرنېشنل ویلفئیر فاونډیشن (رجسټرډ) اسلام آباد تر سیوري لاندې جوړ شوی. انسټیټیوټ آف اسلامک ایجوکیشن برائ خواتین په باره کې د یو څو سوالونو جوابونه پکار دي

د الهدی انسټیټیوټ آف اسلامک ایجوکیشن د ښځو لپاره په یو کلني کورس (ډپلومه آن اسلامک ایجوکیشن) کوي. پدې کورس کې د څو مسئلو ذکر وړاندې راغلی دی. په شرعي حیثیت سره د هغو د وضاحت غوښتنه کوو

**سوال** : (١) : د ښځې د آواز پرده نشته. توجیه یې داده: چې صحابه کرامو ﷺ په د حضرت عایشې ﷺ د مسئلو نه پوښتنه کوله. که چیرې په پرده کې اوس هم د آواز پرده وي: نو د هغه وخت او اوس وخت په دین کې څه فرق شته که کومه تبدیلي راغلې ده؟

**جواب** : د ښځې د آواز پرده شته. ددې مطلب دا دی: چې دوی دې بغیر د ضرورت نه غیر محرم ته خپل آواز نه اوروي، که چیرې د غیر محرم سره د پردې نه شاته د خبرو کولو ضرورت راشي: نو په خبرو کې دې د نزاکت او لطافت څخه ځان وساتي. داسې چې فطرتا د ښځو په آواز کې وي.

په قرآنکریم کې دي

[فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا]

**ترجمه** : تاسو په خبرو کې نزاکت مه کوئ، داسې سړي ته چې خیال وشي. چې د هغه په زړه کې خرابي وي او د قاعدې مطابق خبره وکړئ. (سورة الأحزاب ٣٢)

حضرت تهانوي ﷫ فرمايي: مطلب دا لکه څنګه چې د ښځو په خبرو کې قدرتي نرمي او نزاکت وي. داسې وخت چې کله د ضرورت په وجه نامحرم سره خبرې کول وي: نو تکلف او اهتمام سره دا فطري انداز بدلول پکاردي او په خبرو کې داسې انداز اختیارول پکاردي چې په هغې کې خشکي او سختوالی وي. دا دعفت حفاظت دی، دا بد اخلاقي نه ده. د چا زړه ته پدې سره تکلیف نه رسیږي مګر د مخکې نه

د مريض سړي زړه ته. د فاسدې طمعې ختمولو لپاره تکليف لازم دی. (خلاصه تفسير للتهانوي رحمه الله .د معارف القرآن: ۷/ ۱۲۵)

حضرت مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايي: د خبرو په اړه چې کومې لارښوونې شوي، د هغو د اورېدو نه وروسته ځينو امهات المؤمنين به چې غير محرم سړي سره يې د ضرورت پر مهال خبرې کولې؛ نوپه خپلو خولومبارکوبه يې لاسونه کېښودل. چې دې سره آواز بدل شي، ددې وجې نه د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه په يو روايت کې دي:

**ترجمه** : "نبي کريم صلی الله عليه وسلم ښځې د هغوی د خاوندانو د اجازت نه بغير (د ضرورت نه بغير غير محرم سره) د خبرو څخه منع کړي دي. (رواه الطبراني بسند حسن. تفسير مظهري)

بهر حال پدې حديث کې د ښځو د پردې په اړه احتياطي پابندی لګول شوي. په تمامو عباداتو او احکامو کې ددې رعايت ورکول شوی. چې د ښځو کلام دې جهري نه وي. چې سړی يې واوري، که امام غلطي وکړي؛ نو سړو ته لقمه (فتحه) په ژبې سره ورکول پکار دي؛ خو ښځو ته په ژبې سره د لقمې ورکولو پر ځای دا تعليم ورکولی شي. چې دوی دې د خپل لاس په شا باندې دويم لاس ووهي چې دې سره آواز پيدا شي او امام خبردار شي. په ژبې سره دې ورته نه وايي، حاصل دا چې د ښځې لپاره حکم دا دی: چې د نا محرمو سره د ضرورت په وخت د پردې شاته خبرې کول جائز دي: خو په لهجه کې به سختي راولي، چې د سړي په زړه کې د ښځې طرفته کشش پيدا نشي او په شريعت کې بغير د پردې خبرې کول يا د پردې سره خو د ضرورت نه پرته جائز نه دي.

خبرې تر ضرورت او ديني مسئلو تر حده پورې محدود دي او هغه هم ټولې د پردې نه وروسته. په قرآنکريم کې دي:

فَسۡـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ"

**ترجمه** : که د ازواج مطهرات څخه پوښتنه کوی؟ نو د پردې شا ته يې کوی؛ ددې وجې نه به صحابه کرامو د پردې کولو نه وروسته پوښتنه کوله، بيا "د مسلمانانو مور بي بي" او د نن زمانې د ښځو او د صحابه کرامو رضي الله عنهم په معاشره کې د نن د ګنده معاشرې سره قياس کول څومره بد ترين حماقت او کم عقلي ده، مطلب دا چې شريعت نه دی

بدل شوی او نه د حضور ﷺ نه وروسته چا ته د شريعت د بدلولو اختيار شته؛ خو چې د کومو قيدونو او شرطونو سره الله تعالی او د هغه رسول ﷺ ورکړی دی او د هغو قيدونو او شرطونو خيال ونه ساتل شي؛ نو بيا اجازت هم باقي نه پاتې کيږي.

**سوال** : (۲) د ښځې د نوم سره د پلار نوم چليږي نه د خاوندنوم؟

جواب :زمونږ په عرف کې د واده نه وروسته د ښځې پيژندګلو د خاوند سره تړلی شي د خاوند نوم لګولو سره د نسب د التباس څه خطره نه وي، ددې وجې نه د هغه د نوم په استعمال کې کومه ګناه نشته، کوم ځای کې چې د پلار د نوم عرف او رواج وي، د خاوند د نوم په وجه څه غلط فهمي پيدا کيږي: نو هلته دې د پلار نوم ولګول شي.

**سوال** : (۳) د تعليم په طريقه کې داهم دي چې د تعليم پر مهال بهسرې استاذان هم سبق ښيي، طالباتو صرف نقاب کړی وي او په منځ کې څه پرده نه وي.

**جواب** : شريعت د پردې سړي او ښځې په يو ځای کېدو سخته پابندي لګولې ده، څنګه چې سړو ته حکم دی، چې هغوی دې پردی ښځو ته نه ګوري، همدا رنګه ښځو ته هم حکم شوی، چې هغوی دې پردو سړو ته نه ګوري، په حديث کې راځي: يو نابينا صحابي حضرت عبدالله بن ام مکتوم ﷺ چې کله د حضور ﷺ خدمت کې حاضر شو؛ نو هغه ﷺ خپلو ازواجو رضی الله عنهنّ عرض وکړ، چې دی خو نابينا دی، مونږ نه ويني: نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: چې تاسو صاحبانې خو نابينا نه يې؛ ولې تاسو دی نه وينی؟ بيا دا چې هغوی خپله پرده وکړه. (ترمذي شريف)

**سوال** : (۴) د الهدی د مسئولې کېسې په خدمت کې پيش کوم دا واوری او د خپلې رايې اظهار راته وکړی، چې ډاکټره صاحبه د ډپلومه کورس منتظمه ده.

**جواب** : د ډاکټرې صاحبې درس مې د مختلفو ځايونو څخه واورېد ، د هغې په درس کې د اصول تفسير د قواعدو او آدابو خيال نه دی ساتل شوی، د هغې د بيان انداز هم ډير بې احتياطه دی، په درس کې صرف د قرآن مجيد په ترجمه او تفسير باندې اکتفا شوې ده، ورسره د آيت د تلاوت اهتمام نشته. دا طرز عمل ډير زيات خطرناک او د اصل قرآن څخه اعراض کول دي، په هغې کې د تحريف سبب دی، قرآنکريم د حروفو

او معانيو دوارو مجموعه ده، علماؤ بلكل ددې اجازت نه دى وركړى چې د قرآن ترجمه دې بغير د متن نه چاپ كړى شي. يا دې بغير د آيت.د تلاوت نه صرف ترجمه او تفسير ولوستل شي، په بيان دې اكتفا وكړى شي. داسې عمل تحريف فى الدين او د اصل د ضايع كېدو مقدمه او سبب دى چې حكم يې دا دى: دا هم حرام او ناجآئز عمل دى، پدې باندې د ټولو تفسيرونو د ماهرينو اجماع ده. ځكه چې كله د قرآن پاک صرف ترجمه چاپ شي: نو هر سړى به په آسانى سره د خپلو عقايدو او نظرياتو په رڼا كې چې كوم شان غواړي ترميم او كمى زياتى په آسانى سره كولى شي. لوستونكي او اورېدونكي به هم دا خيال كوي چې قرآن هم دا دى. حال دا چې هغه به قرآن نه وي او د تحريف نه ختمېدو يوه لړى به پيل شي. چې د اصل قرآن د ضايع كېدو باعث به وګرځي.

ددې څخه دا شک نه دي كول پكار چې څه ترجمې خو اوس هم داسې شته. چې د غلطيو څخه ډكې دي، د قرآن پاک د متن سره چاپ كيږي؟ ځكه چې كه ددې په ترجمه كې څه اختلاف وي؛ نو په اصل كې به هم خامخا وي. بيا د اختلاف خيال اصل ته نه رسي: كه چيرې ددې په ځاى صرف ترجمه په ترجمې سرهٔ پاتې شي: نو اصل به د نظر نه غايب شي؛ نو په هغه وخت كې به دا اختلاف كلام الله ته منسوب شي. بيا به څه وخت وروسته دا ګمان شروع شي. چې اصل حكم ددې څخه مختلف دى. دې سره په عقيدو كې خرابي راځي او په عمل به دا اثر وشي، چې ترجمې او كيستې به اخلي او په خپلو كې به جګړې كوي اوپه ډېرې آسانى سره به د غلطو ترجمو او تفسيرونو موقع په لاس خلكو ته ورځي. ځكه چې هر كتونكى او اورېدونكى حافظ نه وي. د اصل طرف ته رجوع كول هر وخت آسان كار نه دى.

يو غلط رواج به شروع شي چې خلک به صرف په ترجمو او كېستو اورېدو باندې بسنه كوي، د اصل قرآن نه به اجنبي اوبې تعلقه شي، ددې تلاوت اهتمام به په قلاره قلاره ختم شي.

دا طريقه د اهل كتابو د يهودو او نصارى وو څخه پيدا شوې. مسلمانان د هغې په نقش او قدم باندې د تلو څخه منع شوي، الله دې نه كړي كه دا طريقه مروج

(خپره) شوه؛ نو څنګه چې یهود او نصاری وو د خپل اصل کتابونو حفاظت ونه کړ.
مسلمان به هم خپل اصلي کتاب ورک کړي، حال دا چې ددې حفاظت فرض دی او
پدیکې خلل راوستل حرام او ناجائز دي، دا هم چې د ښځو په آواز سره د ترجمې او
تفسیر خپرول منع اوحرام دي، ځکه چې هر کس او ناکس به دا اوري او دا د ډیرو
فسادونو جرړه ده.
مطلب دا چې د ذکر شوي ترجمې په قیمت سره اخستل. اوربدل او خپرول یې ټول
ناجائز او حرام دي، ددې په ځای دي د یو محقق عالم داسې کېښتونه واورول شي.
چې په هغې کې د ترجمې او تفسیر سره اصل کلام هم وي، والله سبحانه و تعالی اعلم)
**سوال** (۵) : آیا د یو مسلک اتباع ضروري ده. یا دا چې د چا زړه کوم یو غواړي، هغه
دي اختیار کړی شي؟ د غیر مقلدینو د مطمئن کولو په اعتبارسره ووایی. دا هم بیان
کړی چې د حضورﷺ په زمانه کې خو نه فقه وه. نه داسې نورې خبرې وې. چې د
حضورﷺ په زمانه کې نه وې او د هغوی ﷺ نه وروسته پیدا شوي وې. لکه: ښځې
جماعت ته د تلو نه منع کول. د ښځو د آواز پرده. (ددې په باره کې زمونږ د جماعت د
امام وینا ده: چې د هغې زمانې په اعتبارسره پرده د مخ نه پرته د نور بدن وه. د نن
سبا د خرابو حالاتو او ماحول په وجه د عالمانو د پردې په باره کې اتفاق دی. ښځې
بغیر د څه ضرورت نه د کور نه بهر (سره د مکملې پردې نه).وتلو نه منع کول وغیره.
جواب: د امې سړي لپاره د یو متعین امام اتباع کول ضروري ده. د دین مسئلې په دوه
قسمه دي. یو هغه چې د حضورﷺ نه په واضحه توګه نقل شوي وي او دا هغه
مسئلې دي چې هر یو کس یې پېژني دا د دین مسئله ده. ددې په باره کې خو نه یو
مسلمان ته عالم له د تلو ضرورت راځي او نه څوک ځي. لکه د لمونځ. روژې. زکوة او
حج وغیره فرض کېدل. هر چا ته معلوم دي.
دویم قسم هغه مسئلې: چې په هغې کې د اهل علمو طرفته د رجوع ضرورت
پیښیږي. هغه د عامو خلکو د ذهني سطحې څخه پورته وي. پداسې حالت کې دوه
صورتونه ممکن دي. یو دا چې مونږ په خپله د قرآن او حدیث مطالعه پیل کړو او
زمونږ په خپل عقل اوپوهه کې چې کومه خبره راشي هغه دین وګڼو او عمل پرې

شروع کړو. دویم صورت دا چې کوم کسان د قرآن او حدیث ماهران دي. د هغوی طرفته رجوع کول او هغوی چې د خپل مهارت. اوږدې تجربې او خدا داد بصیرت سره په قرآن او حدیث کې د غور کولو نه وروسته کومې نتیجې ته رسېدلي دي. په هغې اعتماد وکړي، اول صورت ته رایه وایي. او دویم صورت ته تقلید وایي. اوهغه د عقل او فطرت د تقاضې عین مطابق دی.

د شریعت د ماهرینو د یوې یوې مسئلې لپاره په قرآن او حدیث باندې د غور کوونکو سړو مثال به داسې وي، لکه یو سړی چې په سخته ناروغی کې اخته وي او د فن د ماهرینو سره مشوره کول د خپل شان مخالف ګڼي او ددې سخت مرض حل هغه خپله دا راباسي چې د طب مستند او ښه ښه کتابونه راوغواړي او د هغې مطالعه شروع کړي، بیا د خپلې مطالعې په بنیاد حاصله تجربه په خپل ځان وکړي: نو امید دی چې اول خو به څوک عقلمند سړی داسې حرکت نه کوي. که کوم سړی واقعي پدې خوش خیالی کې اخته شي. چې د ماهرینوسره د رجوع پر ځای به د خپلو ناروغیو علاج د خپلې مطالعې په زور خپله کوي: نو هغه ته به د صحت دولت کله هم نصیب نه شي.

بیا چې څنګه په طب کې د خپلې خوښې سړی قبر ته نږدې شي. همدا رنګه په دین کې خپلې رایې والا انسان خپل ځان خپله د زنادقه وو غار ته رسوي. همدا وجه ده چې زمونږ وړاندې چې څومره ګمراه او ملحدې فرقې تیرې شوي. هغوی ټولو د خپل خوښی لاره خپله کړې وه او لوی لامل یې د تقلید پرېښودنه ده.

حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله فرمایي: چې د څلورمې هجري صدی په لومړنیو ورځو کې به داسې کیدل چې کوم سړي ته به د مسئلې د معلومولو ضرورت وو: نو هغه به د کوم عالم نه د مسئلې پوښتنه کوله. په هغې به یې عمل کولو: خو د څلورمې هجري صدی نه وروسته الله تعالی امت د څلورو امامانو متفق کړ، په هغه زمانه کې هم دا د خیر خبره وه، ځکه چې اوس په خلکو کې د دیانت اوتقوی ډېر کمی راغلی دی.

که د متعين امام د تقليد پابندي ونه شي: نو هر سړی به د خپلې خوښې مسئلې خوښوي، په هغې به عمل کوي او د دين څخه به د لوبو يو شی جوړ کړي. بيا د خود داری هم يو علاج شته، چې نفس د کوم تکړه عالم په فتوی باندې د عمل کولو پابند کړی شي او هم دغې نوم تقليد شخصي دی.

د غير مقلدينو له طرفه چې دا ويل کيږي: د حضور ﷺ په زمانه کې فقه نه وه جوړه شوې، د تقليد رواج ډير وخت وروسته پيل شو. دغې وجې نه هغه بدعت دی. بلکل جهالت او په غلطه دي. ځکه چې اول خو به دې سره دا لازم شي چې د غير مقلدينو نه علاوه چې د هغوی وجود په ديارلسمه صدی کې هم نه وو. پاتې د محمد رسول الله ﷺ ټول امت ګمراه شوی دی. نعوذبالله او دا بلکل هم هغه نظريه دد کومه چې شيعه مذهب د حضرات صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين په اړه پيش کوي.

چونکې اسلام تر قيامته پورې راغلی دی: نو ددې وجې نه د ټول امت د يوې لمحې لپاره په ګمراهی باندې متفق کېدل باطل دي.

دويم دا چې د حضور ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ په زمانه کې به هم دا رواج وو. چې ناپوهه او عامو خلکو به د اهل علمو څخه د مسئلې پوښتنه کوله او د هغوی په فتوو به يې د دليل غوښتنه نه کوله بلکې عمل به يې پرې کولو او هم دې ته تقليد ويل کيږي. مطلب دا: سره ددې چې د تقليد لفظ به په هغه وخت کې نه استعمالېدو: خو د تقليد په معنی به خلکو هغه وخت هم عمل کولو: نو بيا ددې نوم تقليد اوس هم تاسو مه منی. اقتدا او اتباع يې ومنی: خو اقتداء او اتباع د کوم امام وکړی!

دريم دا چې فرض کړی په هغه وخت کې د تقليد رواج نه وو، بيا هم دې ته بدعت نه شي ويل کېدی. ځکه چې په شريعت باندې ټګ فرض دی. کوم سړی چې به د يو معين امام د تقليد نه بغير په شريعت باندې د تلو کوشش کوي. هغه به کله هم د نفس او شيطان د مکر او فريب څخه محفوظ نشي.

ددې وجې نه بغير د خطرو نه په دين باندې د عمل کولو لپاره يو اځنی لاره هغه د تقليد ده، د کوم تکړه امام پيروي کول. که په معروضي خيال وکتل شي: نو غير مقلدين هم د يو څو مسئلو نه سېوا د اهل ظاهر محدثينو پيروي کوي. ددې وجې نه

مطلب دا چې هغوی د تقليد د لفظ څخه انکار کوي: خو په غير ضروري وجه هغوی هم ددې لفظ نه نشي خلاصېدی. ځکه چې دين څه عقلي ايجاد نه. بلکې د منقولاتو نوم دی او په منقولاتو کې هر راتلونکي ډلې ته د ځان نه د لومړی طبقې خلکو په طريقو باندې تلل لازم دي. دا يو فطري شی دی، چې د هغې نه بغير په شريعت باندې عمل کول ممکن نه دي (اختلاف امت اور صراط مستقيم وګوری)

**سوال** : (۶): د الهدی د مسئولې د طريقه کار په باره کې ستاسو څه خيال دی؟ او دا هم بيان کړی چې هغې د امريکې نه پي.ايچ.ډي کړې ده. د امريکې نه په اسلامياتو کې د تخصص کولو څه حيثيت دی. وضاحت يې وکړی.

**جواب** : هغوی چې د کوم ځای څخه تعليم کړی. د هغې نه موږ خبر نه يو. باقي د هغې په طريقه کې د شرعي حدودو هيڅ پابندي نشته، لهذا بلکل صحيح نه ده. په عام طورسره د مغرب نه تعليم حاصلوونکي د مستشرقينو د فکرونو څخه د متاثره کېدو نه بغير نشي پاتې کېدی. د جدت پسندی په خيال کې د اسلام په منل شوو حکمونو کې د تحريف او شک پيدا کېدو لويه خطره ده، همدا د مغربي تعليمي ادارو مقصد دی او هغوی پکې تر ډېره حده کامياب شوي هم دي، لهذا دا بيا د هر مسلمان فرض دي چې د داسې ادارو او مجلسونو څخه په مکمله توګه ځانونه وساتي او نورو ته دي هم ددې وينا وکړي چې هغوی د داسې مجلسونو ځانونه وساتي.

**سوال** : (۷) : پدې کورس کې شرکت کول او نورو خلکو ته دعوت ورکول او د دوی کتابونو لوستل څنګه دي؟ وضاحت وکړئ. منـــــنه.

**جواب** : پدې کورس کې شرکت کول او نورو خلکو ته ددې دعوت ورکول او نشر و اشاعت کې يې مرسته کول ټول ناجائز عملونه دي.

(۳) اکوړه خټک پشاور.

(۴) نصرة العلوم ګوجرانواله.

(۵) جامعة اشرفيه لاهور.

دې ټولو د جامعه فاروقيه کراچی د فتوې تصديق کړی دی او ليکلي يې دي چې زمونږ هم د جامعه فاروقيه د فتوی سره په مکمل ډول اتفاق دی.

د الهدی انټرنيشنل فرقې په اړه د نور تحقيق لپاره د لاندينو کتابونو مطالعه زياته فايده منده ده.

(١) ڈاکٹر یت کا فتنه اور الهدٰی انٹرنیشنل......مفتی محمد رضوان

(٢) الهدی انٹرنیشنل کیا هے؟ (دوه برخې)......مفتي محمد اسماعيل طورو

(٣) هدايت يا گمراهی.......مولانا مفتي مطيع الرحمن صاحب.

(٤) عمدة الاثاث فی الطالقات الثالاث .......مولانا محمدسرفراز خان صاحب صفدر

